# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۃ العصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الشہید الایوبی
القندھاری السلیمانخیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

ناشر
مکتبۃ القراۃ والتجوید
کانسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحیم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاریخ کې بې سارې په زر گونو جدید او نوو مسئلو باندې مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبد الله الایوبي

الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبة القراءة والتجوید

کانسي روډ شالدره کوټه

الطبعة الأولى

١٤٢٥ هجري – ٢٠٠٤ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد
کوټه – پاکستان

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD
QUETTA

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو.
د دعا په هيله احمدي! واتساپ
٠٧٤٩٨٤٩٥٦٩



ألحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده.

وبعد: هغه څښتن لره دي حمد او ثناء وي چې دخپلو بندګانو د لارښوونې لپاره ئې د انبياء کرامو عليهم الصلوة والسلام لړۍ نه ادامه ورکړه، ترڅو چې ئې افضل الرُسل عليه الصلوة والسلام د انسانانو لپاره رحمة للعالمين را وليږه.

محترمو لوستونکو! په دې کښې هيڅ شک نشته چې علماء دين د انبياء کرامو وارثين دي. همدا علماء دي چې موږ ته ئې خپله عقيده، حلال، حرام، روا او ناروا راوښودل او دا د دين هغه خلانده ستوري دي چې ددوی دا لړۍ د اصحاب صفه د بوخو غريبو او مسکينو صحابه کرامو څخه راپيل کيږي.

او دا علماء

هغه ددين جوړونکي انسانان دي چې په هروخت کې ئې د دين و خدمت ته ملا تړلې او د مادي اسبابو، وسائلو، اقتصادي ستونځو پرواه ئې نه ده کړې

که په حقيقت سره ئې په خير نظر وګورو، نو دا حقيقت به د لمر په څير راته څرګند شي چې زموږ د چاپيريال علماء هر يو ددې ور دی چې د سرو زرو سره وتلل شي، ولې چې د خاتم النبيين ﷺ د

ختم نبوت څخه وروسته بل هيڅ نبي نه راتلای سي او نه ئي هم ضرورت سته، خو د انبياء کرامو دغه دنده د علماوو په برخه سوه چي نبي کريم عليه السلام فرمائي: ﴿العلماء ورثة الانبياء﴾ او دا هم څرګنده ده چي انبياء کرامو عليهم السلام څه د دراهمو او دينارونو وارثين نه دي جوړ کړي، بلکه د علم وارثين ئي جوړ کړي دي.

همدغه علماء دي چي د ډېرو ستونځو او مشکلاتو سره سره ئي د ديني کتابونو، درس، تصانيفو، تراجمو او حواشيوو نه ډېر قيمتي وختونه وقف کړي دي. او د امت اسلاميه ددې جوړې لپاره ئي په مختلفو ژبو باندي عقيدوي، نظرياتي او د وخت پر نورو مسئلو باندي قلم اوچت کړی.

خو رابه سو و ډېر مطلب ته چي د هغه ځلانده ستورو د لړۍ سرخيل علامه عصر حضرت مولانا عبيدالله ايوبي سليمانخيلي کندهاري دی. چي د ډېرو مشکلاتو سره سره ئي د پوره افغان ملت لپاره ډېر نه ستړي کېدونکي خدمات کړي دي.

او دا چي د افغانستان په ټول تاريخ کښي د قرآن مجيد يو داسي بيه زړه پوري تفسير چي هم دی په ډېره ښه او آسانه توګه زباړه او ورسره د وخت مسائلي او د وخت د منکرينو سوالات او هغو ځوابونه ئي په ډېر ښه انداز سره حل کړي.

## بېشکه چي دا خدمت ئي وهر افغان ته يو لوی وياړ دی

دا چي حضرت ايوبي د نورو مروجه درسي کتابونو د شروحاتو او حواشيوو د حل سره سره د قرآن مجيد دا تاريخي خدمت وکړ، زموږ د سر شمله ئي را اوچته او زموږ سرونه ئي په افتخار سره را لوړ کړه.

## تاريخ به ئي خدمتونه هېر نه کړي

که تاريخ او اهل تاريخ ورسره غداري ونه کړه، نو به ئي د تاريخ په پاڼو کي نوم په سرو زرو وليکل سي. او دا چي زموږ بيده او دقرآني علومو څخه بې برخي وګړي ئي په قرآني تعليماتو ښالبسته او بيداره کړه، د الله تعالی په دربار کي، ورته د ښه ژوند او صحت دعاء او په آخرت کي ورته د جنتونو غوښتنه کوو.

قلم دې د تل لپاره ګرنده‌ئ او صحت دې ورسره مل وئ

دده يو ادنی خوشه چين

قاري فضل الحق حقاني

مدير مکتبة القرائة والتجويد کوټه

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده تعالی ونصلی ونسلم علی رسوله الامین وعلی آله وصحبه اجمعین ○

پاکه خدایه داخلیږم لوی دریاب ته
نااوبـازه ودي دونـه لـوی غرقـاب تـه

نه کښتی سته نه لاسونه او نه پښې
پـه امیـد دکامیابي رب الاربـاب تـه

یعنی غواړم چی تفسیر دقرآن وکړم
ملغلـرې پـه پښتـو کړمـه خپـل کـام تـه

دا دریاب دی بی ساحله بیله شګه
زمـا خرنګـه پـام سـو ودي کـار تـه

په پښتو کی عام الفهم تفسیر نه وو
داسـبب وو چی راهی سـوم دی کـار تـه

بی توفیقه ستا ای پاکه ذولجلاله
امکـان نسـته رسـیدل ودی مـرام تـه

زماعاجزدی اعتماد ستاپرقدرت
چـی بی علمـه کـي واصـل وداسـي کـار تـه

پاکه خدای زما د ژوند حاصل به داوی
چـی تفسـیر دقـرآن ورسـوم پـای تـه

څوک چی وایي په دریاب کي دُرر نسته
اوبـازغواړي چـي خـان ورسـوي پـای تـه

زه عاجزعبیدالله یمه داوایم
چي په مرسته دخدای کار ورسیږي پای ته

دا ابیات هم زما حمد او هم دعا ده

دقبلیدو لــه خای وخــدای پــاك تــه دی پاتــه

دا به زما دخوشحالی یولویه ورخ وی

چـــی تفسیرورســـومه وه النـــاس تـــه

دابه هم خیرباقی زما عاصی وی

چی کوچنی ولوی یولـــه زما تفســـیرته وي ناســـته

﴿قال الشاعر﴾

بقدر الکد تکتسب المعالی ✣ ومن طلب العلی سهر اللیالی

تروم العز ثم تنام لیلاً ✣ یغوص البحر من طلب اللآلی

﴿وقال الآخر﴾

احب الصالحین ولست منهم ✣ لعل الله یرزقنی صلاحا

﴿وینسب إلى علي رضي الله عنه﴾

رضینا قسمة الجبار فینا ✣ لنا علم وللجهال مال

فإن المال یفنی عن قریب ✣ وإن العلم یبقی لایزال

﴿ولنعم ماقیل﴾

ینبغی للعالم ان یکون متبوعا فی العلم ✣ ولایکون تابعا للدینار والدرهم

﴿دست تضرع برداشتن﴾

الهی یا الهی یا الهی ✣ ندارم جز امیدت تکیه گاهی ✣ زکن موجود کردی جمله عالم

مرا از ذنب خود کن عذر خواهی ✣ ندارم توشه راه قیامت ✣ بجز شرمندگی و روسیاهی

ندارم طاعت مقبول درگاه ✢ بجز اشکت بداست آه آهی ✢ بحق وحرمت فرقان اعظم ✢

کرم کن برمن وگم کرده راهی شفیع آور دوام روی محمد ﷺ ✢ عبید را عفوکن جمله گناهی

﴿رشید بیان﴾

په پښتوبه دین بیان کړم ✢ سنادپاره بې آسان کړم

چې طلب دعلم فرض دی ✢ لازم سوی لکه قرض دی

دفقیر محمد عبیدالله الکندهاري الایوبي السنی الحنیفي النقشبندي دخوا اعلامیه وه علماء او طالبانو ته داده : چې زه فقیر په ټولو خپلو کتابو کي او په خپلو ټولو حاشیو کي د کتابو خصوصاً په تفسیر کي د قرآن کریم او په کتابو کي د عقائدو دینیه وو او د احکامو فقیه وو فقط ناقل او د فوائد څخه د علماوو خوشه چین یم .

البته په عقلي کتابو کي بعض توجیهات یا جوابونه د خپل عقل ناقص دخوا کوم. بعضي د حسد په دریاب کي ډوب ملایان یا کتب فروشان وایي چي عبیدالله سارق دی د فوائدو د علماوو .

ګرانو حاسدانو! که نقل د کتابو څخه د فن او علم سرقه وي نو زموږ ټوله شریعت او دین خو په نقل پوري مربوط دی نو د هغه په باره کي څه وایاست ؟ .

بیت : چشم بداندیش که برکنده باد عیب نماید هنرش در نظر

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# باعث د تفسیر د قرآن عزیز څه وو؟

گرانو لوستونکو! د ډیري زماني څخه د درویش په زړه کي دا خبره په بار بار راګرځیدله چي ده قرآن عظیم الشان تفسیر دي په هغسي پښتو چي په عمومي افغانستان کي هغه پښتو رواج وي او په غلاقه کي د پښتو هم مروجه ده. بلوچستان کړي وایي ډیره به د دغي علاقي د پښتنو دپاره لوی دیني خدمت وای. درویش حالات سابقه او حاضره د ګران هیواد افغانستان مطالعه کړه، داورته ښکاره سوه چي افغانستان که څه هم قدیم الاسلام هیواد وو، لکن په علمي لحاظ د منقولي علوم په اعتبار خصوصاً د آحادیثو نبویه ﷺ په اعتبار او د قرآن عزیز د تفسیر او ترجمي په اعتبار یعني په مورني ژبه پښتو ډیره تیته وه، هم ددي کبله به طالبان ددغو دوو مبارك علومو د زده کړي دپاره همسایه ملکو ته سفرونه کوله حتی هندوستان ته هم تله او تردي اوسه یعني ۱۴۲۴ هـ ق پوري دا سلسله جاري ده. او همدا سبب دی چي عوام که څه هم لیك او لوست یي زده وي چونکه د احادیث مبارکه وو او د قرآن عظیم د ترجمي څخه په پښتو کي محروم پاته دي. ډیر د افغانستان عوام دخپل سني حنیفي مذهب څخه مخالفه ډلو لکه وهابیه، سلفیه، اهل ظاهر الحدیث، پنج پیریه وو خپلو خپلو مذهبو ته جلب کړه او د مذهب حنیفي په سپکاوي یي مبتلاء کړه او تر دي اوسه هم دا سلسله جاري ده یعني مخالفي مذکوره ډلي د احادیثو مبارکه و ترجمي او د قرآن عظیم الشان ترجمي د خپلو مذاهبو سره سمي ورته کوي او مذهبي حنیفي لا څه کوي نفس تقلید د ائمه مجتهدینو د مذاهبو اربعه وو غلط او بي خایه بولي حتی هره مسئله چه دوی ته مقلدینو رحمهم الله بیان کي. دوی ورته وایي چه دا مسئله په کوم حدیث او یا

په کوم آیت سره ثابت ده او دوی نه پوهیږي چه مقلدین خو د خیرالقرون د ائمه مجتهدینو رحمهم الله مقلدین دي چه هغه ائمه رحمهم الله د احادیث نبویه ﷺ او د قرآن په ترجمه ددوی تر امامانو ښه پوهیدله.

په دي باره کښي د علامه شیخ الاسلام مفتی محمدابراهیم الیاسیني رحمه الله المتوفی ۱۳۸۴ ه ق یو څو په زړه پوري اشعار په فارسي ژبه واوري!

حکم از سنت وکتاب رسید ✦ مجتهد را صواب رسید

قول مستنبطونه کن یاد ✦ که بمستنبطان ثواب رسید

په دي بیت کي اشاره وه هغه آیت ته ده ﴿لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهُ مِنْهُمْ﴾

همچنین حکم فاجتهدوا از حدیث نبی ✦ موجب اجر بحساب رسید

په بیت کي اشاره وهغه حدیث نبوی ﷺ ته ده قال رسول الله ﷺ اذا حکم الحاکم فاجتهد واصاب فله اجران واذا حکم واجتهد فاخطأ فله اجرٌ واحدٌ. رواه البخاری ومسلم. یعني مجتهد په صور کي د حق رسیدو او دخطاوتلو دواړه مستحق دثواب دی.

چشم لامذهبي نه بیند حق ✦ شپر است وبآفتاب رسید.

ودر جای دیگر میگوید:

ما غلام رسول بزدانیم ✦ پیروان امام نعمانیم

آنکه تقلید را شده تارک ✦ مرد و ترجیع بر سرش خوانیم ✦ یعني إنا لله وإنا إليه راجعون

او دغه رنګه وائي:

راه سنت نه غیر تقلید است ✦ ما برین شاه راه شادانیم

بقیاسیکه مجتهد کرده ✦ عاملان حدیث وقرآنیم

**پوه سه!** چه په میزان الاعتدال صفحه ۷۱ کي د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله څخه روایت دی چي ترجمه يي داده ـ موږ عمل اولاً په قرآن کریم کوو او وروسته يعني که په قرآن کریم کي هغه صراحتاً موجود نه وو، نو بیا عمل په حدیث نبوي ﷺ کوو او وروسته تر هغه بیا عمل په حکمنامو د اصحابو کرامو رضی الله عنهم کوو يعني چي د ټولو پر اتفاق دي او که چیري د صحابه رضی الله عنهم په مابین کي اختلاف وو نو بیا موږ عمل په قیاس کوو . يعني په قیاسولو د موجوده مسئلي پر يوه بله مسئله چي په قرآن یاحدیث سره ثابته وي په سبب د علت جامع بین المسئلتین.

انتهی ـ ونیزمیگوید :

هرکه دانست از حقیقت راز ✤ او به تقلید شود دمساز
راه اسلام راه تقلیداست ✤ دیده حق اگر نمایي باز
راه نادیده پیروی تو بگیر ✤ دامنی از امام واقف راز
عشق و حب نبی ﷺ اگر داری ✤ کینه مجتهد برون انداز

او بل ځای وایي :

سخن ناصحانه میگویم ✤ به نوع فسانه میگویم
در صراط سوی مذهب حق ✤ فتوای عالمانه میگویم
ترک تقلید در زمانه ما ✤ بد زشرب چمانه میگویم «یعنی پیمانه شراب»
ترک تقلید عین گمراهیست ✤ من به تو شفقانه میویم
اتباع سنت نبی به تقلید است ✤ این سخن مومنانه میگویم

امام شعراني رحمه الله په میزان کي وایي : اقوالهم کلها ومذاهبهم ای المجتهدین رح کالثوب المنسوج من الکتاب والسنة الی آخره .

یعنی مذهبونه د څلورو امامانو مجتهدانو رح لکه یوه جامه چي اودل سوي وي د قرآن کریم او د سنت نبوی ﷺ څخه .

او په بل ځای کي یي ویلي دي :

حق شده مذهب امام چهار ❖ رهروان راه شه ابرار

خدمت دین احمد مرسل ❖ کرد هریک بیرون زحد شمار

گفته هر یک که چون حدیث نبی ﷺ ❖ یابی آنجا تو قول ما بگذار

کین هم سعی ما بدین نبی است ❖ بهر آن عمر کرده ایم نثار

درویش وایي چي تعصب نه وی او دغه ډلي چي مخالفي د تقلید دي پر گریوان د انصاف سر ننباسي ، دا به ورته معلوم سي چه موږ خو هم په حقیقت کي مقلدین یو .

نهایت فرق زموږ او د مشهورو مقلدانو د مذاهبو اربعه وو دادی چی موږ مقلدان یا د ابن تمیه یو او یو د محمد بن عبدالوهاب النجدی یو وغیرهما من ائمتهم او مشهور مقلدین د ائمه اربعه مشهوره ورحمهم الله مقلدان د خیرالقرون الثلثه د امامانو دي .

قال علیه الصلوة والسلام خیرالقرون قرني ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم. رواه اصحاب الحدیث اکثرهم

او امامان دفِرَقِ مذکوره وو د خیرالقرون څخه ډیر لیري دي .

**پوه سه!** چی دغه فِرَقِ دآیت او حدیث د تاویل څخه سخت منکره دي . دوی وایي چی کلمات قرآنیه او احادیث نبویه پر خپل ظاهر باندي محمول دي او قیاست د مجتهد خو بیخي نه مني .

**واقعه** : یو عالم د وهابیانو چي ښه ستر عالم وو او عارضي په سترګو ړوند سوی وو . یو وخت یي وه خپلو هم مسلك خلګو ته تقریر کاوه او پر تاویل د آیت او د حدیث یي سخت انکار وکړی او وي ویل چي ( الرحمن علی العرش استوی) پر خپل ظاهر محمول دی یعنی خدای پاك جسم دی او پر عرش یي مکان دی . (وکذالك یدالله فوق أیدیهم) کل شیئ هالك إلا وجهه وامثالها . پر خپل ظاهر محمول یعني خدای پاك لره تیوله دغه اعضاء او اندامونه سته . یو بل سنی مقلد عالم جید هلته حاضر وو نو وهابی عالم ته یي وویل چه د قرآني کلماتو هیڅ تاویل نه دی روا؟ وهابی ورته وویل چي هیڅ تاویل یي نه دی روا بلکه محمول پر خپلو معانی د ظاهره لغویه باندي دی . نو مقلد عالم ورته وویل چي په قرآن کي راغلی (ومن کان فی هذه اعمی فهو اعمی. الآیة) او ته په سترګو ړوند یي نو دغه آیت چي پر ظاهر حمل سي نو ته به په آخرت هم ړوند یي . نو وهابي حیران سو.

**پوښتنــــه** : تا پښتو تفسیر ته دپښتنو د ضرورت بیان وکړی ، نو د پیښور علماء حضراتو خو په پښتو ژبه لوی او کوچنی تفسیرونه تصنیف کړي دي . ایا په هغو تفسیرو سره د افغانستان د پښتنو ضرورت نه دفع کیدی ؟

**جواب** : د پیښور دعلماوو سعی دي خدای قبول وګرځوي ، په دي باره کي عاصي ددوی ډیر ممنون دی . لکن خبره داده چي د افغانستان د پښتنو او د پیښور د پښتنو په تلفظ کي او په رسم خط کي ډیر فرق سته. د افغانستان عوام د پښتو سره چندان علاقه نه لري . نو درویش د خپلي

قومي ژبي په تلفظ او رسم خط کي ضرورت محسوس کړی . د مثال په توګه : پیښور والاوایي : مُنګک ، موږ وایو موږک او دغه رنګه ددي آیت په ترجمه کي (من سندس واستبرق) پیښور والا داسي لیکي : نرم وریخم او پرړه وریخم . موږ وایو نازک وریښم او پنډ وریښم . وامثال ذالك كثيرة . او بل داچي په دیني علمي خصوصاً قرآني چارو کي د قوم او وطن خدمت کول ډیر زیبا وي .

وقد وردحب الوطن من الایمان. په هرصورت عزم دفقیر د پښتو تفسیر اوس ډیر ټینګ دی .

همت بلند دار که نزد خدا وخلق ❋ باشد بقدر همت تو اعتبار تو

**پوښتنه:** ستا د تفسیر آوازه د ډیرو کلو څخه جاري وه نو تر دا اوسه د تاخیر سبب یي څه وو؟

**جواب** : تر ټولو ښه خبره داده چي دکار دکولو دبندګانو حواله و تقدیر الهي ته وسي .( والله خلقكم وماتعملون) لکن چونکه فقیر ډیر دمخه د خپلو بعضي مخلصانو سره په باره کي د تصنیف د تفسیر مشوره کوله او قاري فضل الحق صاحب سره هم . خو ټولو په یوه خوله د تفسیر د تصنیف په باره کي اجازه لاڅه کوي بلکه جدي غوښتنه یي شروع او دا یي خیال سو چي درویش به سبا یا بله ورځ شروع په تفسیر وکړي نو څکه بعضي مخلصانو په ژبه نور طالبان وغیره کړه چي مولوي عبیدالله تفسیر جوړه وي . او مولوي قاري فضل الحق صاحب چي د درویش د اکثرو کتابو طبع کوونکی دی د ډیرو کتابو پر وقایو د تفسیر ایوبي حنیفي په نامه نوشته کړي . هغه وو چي قبل الوقت خلګ خبر سوه . او انتظار په

اور وسوه او ما دخپل کم علمی په سبب او د قرآن عظیم الشان د تفسیر د لوی خطر په سبب دا کار من یوم الی غد خنداوه .

جامي ﷫ وایي :

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ✧ بامیدی رسد امید واري

**ابیات :**

حاسدان تر حساب تیردي خدایه خیر
دښمنـــان تـــر شـــمیرډیردي خدایـــه خیـــر
آفتونه څومره ډیردي خدایه خیر
مرضـــونه هـــم بیحـــده ډیـــر دي خدایـــه خیـــر
دفقیردعمرشپي ډیري تیري سوي خدایه خیر
تـــول اعضـــاء پـــر ضـــعف روان دي خدایـــه خیـــر
بي توفیق ستا ددي کار امکان نسته خدایه خیر
ددي کـــار امیـــد یـــي ډیـــر دی خدایـــه خیـــر

بسم الله الحمن الرحیم اولاً و آخراً ونصلی علی رسوله الکریم سرمداً وعلی آله واصحابه ذکوراً و إناثاً.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# مقدمة علم التفسير اختصارًا

**پوه سه!** چي تفسير باب د تفعيـل دی ، مجرد يي فَسَرَ دی په معنی د بيان او كشف دی . ومعناه العلمي : قيل هو علم باحث عن معاني نظم القرآن بحسب الطاقة البشرية وبحسب مايقتضيه القواعدالعربية.

يعني تفسير چي ديوعلم نوم دی معنی يي داده چي تفسير هغه علم دی چی دی بحث او بيان كوي د معناوو دكلمات د قرآن كريم په اندازه د طاقت بشري او پر اندازه د هغو قاعدو چی علوم عربيه يي بيانوي . من علم الصرف وعلم النحو وعلم المعاني وعلم البيان وعلم البديع وعلم اللغة العربية وغيرها. او علامه تفتازاني رحمه الله په ډيره مختصره توګه داسي وايي : چي علم تفسير هغه علم دی چي بحث كوي د اصولو څخه د كلام الله په حيث د دلالت پر مراد. د اصولو څخه مراد د علامه رح كلمات قرآنيه من حيث الافراد والتركيب دي .

او روح المعاني والاډير مفصل تعريف ددي علم داسي كړی دی: چي تفسير يو علم دی چی بحث كوي د كيفيت څخه د نطق په الفاظو د قرآن لكه په علم قرائت كي چي بيانيږي او بحث كوي د معاني څخه د هغو الفاظو . او بحث كوي د احكامو څخه دهغو معاني وو لكه حل وحرمت وغيرذالك . او دا مدلولات كه دحال د افراد وي او كه د حال دتركيب وي. او پيژندل د ناسخ او منسوخ . او شان نزول د آيتو مباركه وو . او توضيح د هغه حكم او يا قصي كول چي په قرآن كي مجمل راغلي وي ، ومتممات ذالك آه . دا وه معنا د تفسير لغوي او علمي .

او تاویل د اول څخه جوړ دی ، د اول معنا لغوي رجوع ده او په فرق کي د تفسير او تاويل اختلاف دی . ابوعبیده ﷫ وایي چي د تاویل او تفسیر معنا یوه ده او غالب اصفهانی وایي چي تفسیر عام دی تر تاویل یعني تاویل په بیان سره د جملو او د معانی وو د کتب الهیه و پوري خاص دی . او تفسیر عام دی که بیان دجملو او دمعانیو د کتب الهیه وي او که د نورو کتابو لکه د نحو مثلا د کتابو بیان کول . او مشهوره مذهب دادی چي تفسیر بیان د معانیو د قرآن په نقل د اصحابو کرامو﷢ څخه یا د تابعینو څخه . او تاویل بیان د معاني وو د قرآن بیله نقله بلکه موافق د لغت عربي او صرف او نحوي وغیرذالك سره . او د صوفیه کرامو رح په نیز بي فرق ډېر دقیق دی .

**پوه سه!** چي علم تفسير یو ډېر شريف علم دی ولي چي په متفقه طور علماء منقول او معقول وايي چي شرف د علم په اندازه د شرف د موضوع د هغه علم او په قدر د شرافت د معلوماتو او دمسائلو د هغه علم او په مقدار د شرف د غرض او د غاية دهغه او په سبب د کثرت احتياج د خلکو دی هغه علم ته .

وعلم التفسير مشتمل على تلك الكمالات على اكمل وجهٍ فإن **موضوعه** كلام الله تعالى المنزل على رسوله افضل الرسل ﷺ .

نو هيڅ کلام برابر د کلام الهي سره نسي کيدای ، خصوصاً هغه کلام الهي چي معجزه باهره ده عليه الصلوة والسلام ده نبوت ده لکه چي خدای جل سلطانه دقرآن مبارك په اعجاز کي داسي ويلي دي : (إن كنتم) که تاسي ياست اي کافرانو (في ريب) په شك کي (ممانزلنا على عبدنا) يعني د هغه قرآن په باره کي چي موږ نازل کړی پر خپل بنده يعني

محمد ﷺ په ۲۳ کاله زمانه کي دنبوت چي ۱۳ کاله په مکه مکرمه کي د قرآن نزول کیدی او ۱۰ کاله په مدینه منوره کي ، شك په دي معنا چي کفارو به ویل چي علیه السلام دا قرآن د خانه جوړوي . (فاءتوا بسورة من مثله) نو تاسي هم راتگ وکړی په اندازه د یوه کوچني سورت د قرآن چي (أعطیناك الکوثر) دی ولي چي تاسي خو هم عرب بلیغان یاست لکه علیه السلام لکن بیاهم هیڅ چادعوه قدر هم ده اتیان بالمثل کړی نه ده ، او معلومات د علم التفسیر دادی چي مراد دخدای ﷻ چي پر هغه کلام الهي دلالت کوي څه شی دی؟ یعني عقائد حقه ، احکام شرعیه ، قصص د انبیاء علیهم السلام او د دوی امتو چي تر علیه السلام قبل تیر سوي وه او امثال موضحه وغیرها . او هر عاقل پوهیږي چي تر دغو معلوماتو اشرفه بلکه مساوي معلومات د بل علم نسته

او **غایه** د علم التفسیر نیك بختي د دنیا او آخرت نو تر دي لویه غایه به کم شي وي او احتیا دخلکو ده علم التفسیر خو ظاهر دی حتی چي صحابه کرام ﷺ سره د صفاوالي د ذهنو ددوی او سره د بلاغت او فصاحت ددوی د قرآن پاك په تفسیرو کي سوال ته علیه السلام مجبوره سوي وه . لکه چي په قرآن مبارك کي به تفصیل راسي او فقیر به یي بیان هم وکړي انشاء الله تعالی

**شهانه فائده**: چي سليمان رحمه الله د امام نسفي رحمه الله څخه نقل كړي چي په قرآن مبارك كي حروف د الف با آه هر يو څو واره راغلي دي:

| | |
|---|---|
| الألف: ۴۸۷۴۰ واره | الباء: ۲۱۴۲۰ واره |
| التاء: ۱۴۰۴ واره | الثاء: ۱۰۴۸۰ واره |
| الجيم: ۳۳۲۲ واره | الحاء: ۴۱۳۸ واره |
| الخاء: ۲۵۰۳ واره | الدال: ۵۹۹۸ واره |
| الذال: ۴۹۳۴ واره | الراء: ۲۲۰۶ واره |
| الزاى: ۱۶۸۰ واره | السين: ۵۷۹۹ واره |
| الشين: ۲۱۱۵ واره | الصاد: ۲۷۸۰ واره |
| الطاء: ۱۲۰۴ واره | الظاء: ۸۴۲ واره |
| العين: ۸۴۷۰ واره | الغين: ۱۲۲۹ واره |
| الفاء: ۹۸۱۳ واره | القاف: ۸۰۹۹ واره |
| الكاف: ۸۰۲۲ واره | اللام: ۳۳۹۲۲ واره |
| الميم: ۲۸۹۲۲ واره | النون: ۱۷۰۰۰ واره |
| الهاء: ۲۰۹۲۵ واره | الواو: ۲۵۵۰۶ واره |
| لام الف: ۱۴۷۰۷ واره | الياء: ۲۵۷۱۷ واره |

**فائــده**: عدد درجات الجنة بعدد حروف القرآن وبين كل درجتين قدرمابين السماء والارض وجملة آيات القرآن = ۶۵۰۰ انتهى.

**فائده** : في مرئة التفسير صحيح طريقه تر ټولو داده چي سړی تفسير د قرآن په قرآن سره وکړي يعني يو آيت كه د قرآن مبارك مجمل راغلی وي تلاش وكړه شايد په بل ځای کي دقرآن به مفصل راغلي وي ، نو تفسير د هغه مجمل په هغه مفصل سره وکړه . او هغه چي په قرآن مبارك کي نه وو بيا رجوع وه احاديثو قوليه او فعليه ته وكړه ولي احاديث قوليه هم وحی الهي دي . قال الله تعالی (وماينطق عن الهوی إن هو إلا وحي يوحی) دا قدر فرق لري چي قرآني آيات په لمانځه کي تلاوت كيږي ځکه وحی متلو يي بولي او د احاديثو مباركه وو تلاوت په لمانځه کي نسته ځکه وحی غير متلو يي بولي او كه په سنت نبوي ﷺ کي هم سړی نسو كاميابه بيا دي رجوع وه اقوالو ته د صحابه كرامو ﷺ وکړي كما مر سابقاً .

په حديث صحيح کي راغلي دي چي څه وخت رسول كريم ﷺ معاذ ﷺ وه يمن ته حاكم مقرر كړی نو عليه السلام دده څخه پوښتنه وكړه چي ته به په څه شي سره حكم كوي ؟ معاذ ﷺ ورته وويل : بكتاب الله ﷻ . عليه السلام ورته وويل كه دي هغه حكم په كتاب الله کي نه كړی پيدا ؟ معاذ ﷺ ورته وويل چي په سنت د رسول الله ﷺ به حكم كوم . عليه السلام ورته وويل كه هغه حكم په سنت نبوي ﷺ کي هم نه وو؟ معاذ ﷺ ورته وويل چي بيا به اجتهاد په خپل رايه سره كوم . نو عليه السلام دی پر خيگر په لاس وواهه يعني د خوشحالی لـه كبلـه او داسي يي وويل (الحمدلله الذي وفق رسول رسوله لمايرضی رسول الله . رواه اصحاب السنن)

**مهمه خبره** : مفسر لره دقرآن د دغو شیانو څخه چاره نسته .
۱:- معرفت د مفرداتو دقرآن بحسب وضع اللسان العربي . ویکتفل له علم اللغة . مجاهد رحمه الله وایي چي څوك چي په لغاتو د عربو عالم نه وي هغه ته تفسير د قران نه دی روا ، او بايد سړی په علم لغت کي تلاش وکړي چي ممکنه دي يو لفظ به مشترك وي ، سړی به يي يوه معنا پيژني او په آيت کي به بله معنا مراد وي .
۲:- پيژندل د احكامو چي كلمات عربيه وي په افراد او تركيب كي چي په علم النحو كي بيانيږي .
۳:- علم المعاني چي په هغه سره خواص د تركيبو د كلام عربي معلوميږي .
۴:- علم البيان چي په هغه سره دلالات د آياتو د قرآن كريم يعني حقيقت مجاز دلالت مطابقي او تضميني او التزامي وغيرها معلوميږي .
۵:- علم البديع چي په هغه سره اقسام د تحسين الكلام معلوميږي .
۶:- تعيين د مبهم او بيان د مجمل او ناسخ و منسوخ او شان نزول د آيتو چي دا تول په علم حديث سره معلوميږي.
۷:- پيژندل د عام او خاص او مطلق او مقيد وغيرذالك . چي دا امور په اصول الفقه كي بيانيږي .
۸:- زده کړه د هغه شيانو ده چي پر خدای پاك اطلاق محال وي لکه جسميت ،مكان ، اولاد وغيرذالك او يا ثابتول خدای ﷻ لازم دي لكه علم اوقدرت وغيرذالك من الصفات الجمالية والجلالية چي دا په علم كلام سره معلوميږي يعني علم عقائد د متقدمينو رح . انتهى ما فى التفسير.

درويش وايي چي په اوسني زمانه کي تفسير د قرآن هغه کسان کوي چي ددغو علومو هيڅ شا به نه وي پکښي .

**مقوله** : نه هر که سر بتراشد قلندري داند

**مقوله** : انجير خوردن نه کار هر مرغيت. والله المستعان .

**فائده جليله** : درويش وايي چي فضائل د تلاوت د قرآن عظيم الشان خصوصاً د هغه چا دپاره چي په ترجمه يي هم پوهيږي تر حد او اندازي ډير دی . چنانچه په کتابو کي د احاديث مبارکه جلا او مستقل بابونه ورته ايښول سوي دي چي د هغو ټولو بيان په دي مختصره مقدمه کي گنجائش نه لري . لکن بيا هم په طور د ( مشت نمونه خروار ) اوپه مقتضى د ماقيل : ( مالايُدرك كله لا يُترك كله) څو صحيح حديث ذکر کوم. حضرت العلامه سيدمحمد حقي نازلي په خپل کتاب خزينة الاسرار کي وايي : قال رسول الله ﷺ : (فضل كلام الله على سائر الكلام كفضل الله ﷻ على خلقه اى مخلوقه)

**ترجمه**: فضيلت د کلام الله ﷻ چي قرآن مبارك دی پر ټولو نورو خبرو لکه فضيلت د ذات کبرياء دی پر ټولو مخلوقاتو.

وقال صلى الله عليه وسلم : من أراد ان يتكلم مع الله ﷻ فليقرء القرآن.

**ترجمه**: که څوك اراده لري چي زه دخدای پاك سره خبری وکړم نو تلاوت د قرآن مبارك دي وکړي

أخرجه الخطيب البغدادى ﷫ والديلمي ﷫ عن أنس ﷺ وقال عليه الصلوة والسلام : لو لا قوله تعالى ولقد يسرنا القرآن للذكر ما أطاقت الالسن

ان تتكلم به (اى من عظمته ومهاتبه)

**ترجمه:** که نه وای دا قول دخدای ﷻ چي په تحقیق سره موږ آسانه کړی قرآن دپاره د تلاوت . نو به ژبو دخلکو طاقت نه درلودای چي خبري دي وکړي په قرآن سره یعني تلاوت دي وکړي (په سبب د عظمت او هیبت د قرآن مبارك .

وقال علیه الصلوة والسلام : مَن قرء القرآن فکانما شافهني.رواه الدیلمي .

**ترجمه:** علیه السلام وایي چي که چا د قرآن مبارکت تلاوت وکړی ګویا زما سره یي مشافهتاً خبري وکړي .

قال الله جل سلطانه : واتبعوا أحسن ما أنزل إلیکم . وقال الامام الهمام الغزالي رحمه الله فی أحیاء العلوم عن یحي بن معاذ رحمه الله من لم یکن فیه ثلاث خصالٍ فلیس بمحب یؤثر کلام الله تعالی علی کلام الخلق ولقاء الله علی لقاء الخلق والعبادة علی خدمة الخلق .

**ترجمه:** که په چا کي نه دري خویه نو هغه محب نه دی یعني د خدای ﷻ او د رسول الله ﷺ چي دی به خوښ لري کلام د خدای چي قرآن دی پر خبرو د خلکو . او ملاقات دخدای ﷻ پر ملاقات د خلکو او عبادت دخدای ﷻ پر خدمت دخلکو . القول الصحیح .

**پوه سه!** چي په حدیث صحیح کي چي په بخاري او نورو ټولو کتابو کي روایت سته . قال رسول الله صلی الله علیه وسلم أنزل القرآن علی سبعة أحرفٍ فاقرءوا ماتیسر منه . ددي حدیث په تفسیر کي یعني چي سبعة احرف سره شیئ مراد دی اختلاف عظیم دی لکه چي په شروحو د صحاحو سته کي مذکور دی . لکن علامه سلیمان جمل رحمه الله وایي چي

صحيح داده چي مراد هغه اوه قرءات دي چي په شهرت او تواتر سره د عليه السلام څخه منقول دي او صحابه كرامو ﷺ حفظ او ضبط كړي دي او اميرالمومنين جامع القرآن عثمان ﷺ په مصاحفو كي نوشته كړي دي او صحابه ﷺ يي په صحت سره حكم كړى دى.

**فائدة جديدة**: په اسباب النزول كي وايي: چي سُور قرآنيه په اعتبار د ناسخ او منسوخ څلور قسمه دي.

۱):- هغه قسم سورتونه دي چي نه ناسخ په كښي سته اونه منسوخ او هغه ۴۳ سورته دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱: فاتحه | ۲: سوره يوسف | ۳: يس | ۴: الحجرات |
| ۵: الرحمن | ۶: الحديد | ۷: الصف | ۸: الجمعه |
| ۹: التحريم | ۱۰: الملك | ۱۱: الحاقه | ۱۲: نوح |
| ۱۳: الجن | ۱۴: المرسلات | ۱۵: النباء | ۱۶: النازعات |
| ۱۷: الانفطار | ۱۸: المطففين | ۱۹: الانشقاق | ۲۰: البروج |
| ۲۱: الفجر | ۲۲: البلد | ۲۳: الشمس | ۲۴: الليل |
| ۲۵: الضحى | ۲۶: انشراح | ۲۷: القلم | ۲۸: القدر |
| ۲۹: القيامه | ۳۰: الزلزله | ۳۱: العاديات | ۳۲: القارعه |
| ۳۳: التكاثر | ۳۴: الهمزه | ۳۵: الفيل | ۳۶: قريش |
| ۳۷: الماعون | ۳۸: الكوثر | ۳۹: النصر | ۴۰: لهب |
| ۴۱: الاخلاص | ۴۲: الفلق | ۴۳: الناس | |

وقسم فيه ناسخ و منسوخ كلاهما. او دا قسم۲۵ سورتونه دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱: البقره | ۲: آل عمران | ۳: النساء | ۴: المائده |
| ۵: الانفال | ۶: التوبه | ۷: ابراهيم | ۸: مريم |
| ۹: الانبياء | ۱۰: الحج | ۱۱: النور | ۱۲: الفرقان |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۳: الشعراء | ۱۴: الاحزاب | ۱۵: سباء | ۱۶: المومن |
| ۱۷: الشوری | ۱۸: الذاریات | ۱۹: الطور | ۲۰: المجادله |
| ۲۱: الواقعه | ۲۲: المزمل | ۲۳: المدثر | ۲۴: التکویر |
| ۲۵: العصر | | | |

وقسم فیه ناسخ فقط . او هغه شپږ سورته دي .

| | | |
|---|---|---|
| ۱: الفتح | ۲: الحشر | ۳: المنافقون |
| ۴: التغابن | ۵: الطلاق | ۶: الاعلی |

وقسم فیه منسوخ فقط. او هغه ۳۹ سورته دي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱: الانعام | ۲: الاعراف | ۳: یونس | ۴: هود |
| ۵: الرعد | ۶: الحجر | ۷: النحل | ۸: الاسراء |
| ۹: الکهف | ۱۰: طه | ۱۱: المومنون | ۱۲: النمل |
| ۱۳: القصص | ۱۴: العنکبوت | ۱۵: الروم | ۱۶: لقمان |
| ۱۷: الم السجده | ۱۸: فاطر | ۱۹: الصافات | ۲۰: ص |
| ۲۱: الزمر | ۲۲: حم السجده | ۲۳: الزخرف | ۲۴: الدخان |
| ۲۵: الجاثیه | ۲۶: الاحقاف | ۲۷: محمد | ۲۸: ق |
| ۲۹: النجم | ۳۰: القمر | ۳۱: الامتحان | ۳۲: المعارج |
| ۳۳: القیامه | ۳۴: الانسان | ۳۵: عبس | ۳۶: الطارق |
| ۳۷: الغاشیه | ۳۸: التین | ۳۹: الکافرون | |

او انشاء الله العزیز دا ټوله بیان به یا په دې تفسیر کې او یا په نورو عربي تفسیرو کې به تاسې ته واضح سي .

مقدمه سره د اختصار پای ته ورسیده اوس په تفسیر د قرآن عزیز شروع کیږي . الهي! ستا په فضل او کرم سره ما عاصي عاجز ته توفیق راکړې چې دا تفسیر تر پایه ورسوم . آمین .

## أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ

زه پناه غواړم ، من پناه میخواهم او یا کومک غواړم ، یاري میخواهم .

**پوه سه!** چي حکمت په اعوذبالله قبل القرائت کي اجازه غوښتل دي د خدای جل جلا له څخه په تلاوت کي د قرآن عظیم الشان ، فی روح البیان . قانون دادی چي څوك ورسي وه دروازي تـه د یو باچـا د باچاهانو ، نو دي سرای تـه د هغـه باچـا نسي داخلیدای بیله اجازي د باچـا ، نو دغـه رنګه څوك چي اراده د قرائت د قرآن پاك وکړي ګویـا دی د خپل عظیم دوست یعني خدای پـاك سره مناجات کوي ، نو بایـد اجازه وغواړي . اجازه غوښتل یي اعوذبالله ده .

او بل سِر د اعوذبالله دادی چي یو څوك چي د رب العزت سره راز او نیـاز کـوي ، او د پـاك کـلام دده د تـلاوت اراده لـري بایـد خپـل خولـه د بدبویي څخه پري مینځي . زموږ خولي چونکه په غیبت ، بهتان ،دروغو وغیره سره بدبویه دي ، نو باید موږ خپلي خولي د بدبویي څخه اولاً پري مینځو او بیـا د پـاك کـلام الهـي تـلاوت وکـړو . پـري مینځـل د خـولي اعوذبالله ده . هم ددي کیله په سورت نحل کي خدای ﷻ وایي :

**فإذا قرئت القرآن فاستعذ بالله من الشیطان الرجیم .**

**سوال** : نحات وایي چي جزاء به تر شرط وروسته وي ، او دغه رنګه دوی وایي چي "فاء" دپاره د تعقیب ده ، نو دا دواړي خبري خو دا تقاضا لري چي اعوذبالله آه دي قرائت د قرآن پاك وروسته وایي . والامر لیس کذالك ولـي چـي اعوذبـالله آه تـرتلاوت القـرآن وروسـته نـه ده بلکـه دمخـه ده.اجماعاً؟

**جواب** : مراد د ( اذا قرئت القرآن الآیت ) دادی ( إذا أردت تلاوة القرآن فاستعذبالله) په روح البیان کي وایي چي دا معنا که څه هم مجاز ده لکن ډیر شائع ده حتی لکه حقیقت عُرفي دی . کما فی قوله تعالی : (إذاقمتم إلى الصلوة) الآیة فقهاء رحمهم الله یې تولـه دا معنی کوي : إذا أردتم القیام الی الصلوة.

حاصل د جواب دادی چي اراده د قرائت القرآن خو تر قرائت القرآن دمخه ده . لکه اودس چي وروسته تر ارادة القیام الی الصلوة دی ، نو دواړه سوالونه دفعه سوه .

**پوښتنه**: ددي آیت مبارك خو دا مقتضا ده چي سړی دي تر قرائت دمخه (استعیذبالله) آه وایي ؟

**جـواب**: هو ، لکن جمهور علماء رحمهم الله وایي چي اعوذبالله آه دي وایي او په حدیث شریف کي هم راغلي دي هکذا ، یعني اعوذبالله آه أقرئنیه جبرئیل عن القلم عن لوح المحفوظ.

**فائده**: اعوذبالله آه که‌څه هم جمله خبریه ده ، لکن په حقیقت کي سوال دی د بنده د رب العزت څخه چي خدایه ته ماته پناه راکړه ، لکن تفاولاً یي جمله خبریه راوړه. کما في قول القائل : غفرالله لي ، ای اللهم اغفر لي.

په تفسیر کبیر کي وایي چي د رب جل وعلا او د خدای پاك او د بنده ګانو ترمابین یوقرارداد سته . قال الله تعالی : ( أوفوا بعهدي أوف بعهدکم) یعني تاسي وفا وکړئ په هغه وعده سره چي تاسي زما سره کړي ده ، زه به وفا وکړم په هغه وعده چي ما ستاسي سره کړي ده ګویا بنده وایي چي ما سره سره د نقصان ده بشریت وفا وکړه په وعده د ربوبیت ستا او

عبودیت خپل ، نو ته یاالله سره سره د کمال فضل او کرم احق یي چي په وعده د ربوبیت خپل وفا وکړي او ماته پناه او خلاصون راکړي د شیطان څخه . وکذا خدای جل شانه ویلي دي ( أدعوني أستجب لکم ) یعني تاسي زما څخه درخواست او غوښتنه کوی زه به مو د غوښتني قبلونه کوم ، نو ګویا قائل د اعوذبالله آه وایي چي خدایه ما په ویلو سره د اعوذبالله آه تقدیراً کما مَرَّ ده تاسي سوال د خلاصونه ده شیطان وکړی ، نو ته په خپل کرم سره زما ددغه درخواست قبلونه وکړی او ماته پناه راکړی .

قوله بالله . پوه سه ! چي قاضي بیضاوي رحمه الله په لفظ کي د الله څو رقمه د اشتقاق ددغه لفظ مبارك دعوه کړي ده او مناسبتونه یي بیان کړي دي لکن مذهب د اهل تحقیق کما في التفسیر الکبیر و روح البیان دادی چي لفظ مبارك مشتق د شي څخه نه دی .

**پوښتنـــه** : څه سبب دی چي اهل العلم په دي لفظ مبارك کي عظیم اختلاف لري چي هیڅ په بل لفظ کي دومره اختلاف نسته ، څوك وایي اسم دی ، څوك وایي صفت دی ، بعض وایي مشتق دی او بعض وایي غیر مشتق دی ، څوك وایي عَلَم د ذات الهي دی ، څوك وایي اسم جنس دی . الی غیر ذالك من المذاهب حتی چي ټوله مذاهب په دي لفظ کي تخمیناً وه ۲۵ ته رسیږي ؟

**جواب** : ددي سر علامه تفتازاني رحمه الله په حاشیه کي د کشاف بیان کړی دی . دی وایي چي لکه چي عقول او اوهام په ذات د خدای کي مختلف دي په سبب ددي چي ذات الهي پټ دی په حجابو سره د کبریا یعني چي بعض الناس وجود ده خالق العالم نه مني لکه دهریه . او بعض عالم لره دوه خالقه وایي ، خالق الخیرات چي دوی وایي د هغه نوم یزدان دی او

بل خالق الشرور دی چي دوی وايي دهغه نوم اهرمن يا شيطان دی ، لکه دا چي مذهب د ثنويه وو دی.

او بعض خلک خو خدای ته شريک نه وايي لکن خدای ﷻ ته ولدوايي لکه نصاری چي عيسی ابن الله بولي يا يهود چي عزير عليه السلام ابن الله . او بعض خلک خدای ﷻ خو واحد لاشريک بولي لکن بيا هم خدای ﷻ لره مکان او جسميت او اعضاء وايي لکه هغه ډله چي (الرحمن على العرش استوى° يدالله فوق أيديهم ) و امثال ذالك من الآيات والاحاديث پر معنای ظاهر حمل کوي چي هغو ته وهابيه وايي . قال عليه السلام : ستفرق أمتي ثلاث و سبعون فرقة كلهم فى النار إلا الناجية . الحديث . نو دغسي انوار دده جلال پر دغه لفظ مبارك د الله چي علم د خدای دی فيض سوه او دا لفظ هم تر اختلاف لاندي راغلی كما عرفت آنفاً .

**پوه سه !** امام رازي رازي رحمه الله په تفسير کبير کي وايي چي اعوذبالله من الشيطان الرجيم ° ويونکی دي په نيت کي ټوله هغه منهيات الدينيه او محظورات اسلاميه ولري خوا د عقائدو په حصه کي وي او يا د عملياتو په حصه کي وي لکه زنا وغيره چي د شيطان دخوا څخه سرې ته ارائه کيږي ، يعني شيطان يې د مسلمان په زړه کي محبت اچوي .

نو خدای ﷻ به يې د عقائدو د ټولو فرقو د ضلال كما عرفت او د ټولو منهياتو عمليه څخه به نجات ورکړي په برکت د جملة الاستعاذة وما ذالك على الله بعزيز.

درويش وايي : وهذاالمعنى الذي بينه الرازي رحمه الله هو الحقيق بالقبول واما ماقال صاحب روح البيان چي ويونکی د اعوذبالله آه سره د ما مر

ذكرناه من الآفات الدينية من حيث العقيدة والعمل . د هغو امراض او آفاتو نجات دی هم په نيت كي ولري لكه : حرق ، غرق ، فقر ، عمی وغيرها من الامراض. دا معنا په دي ځای کي صحيح نه ده ولي چي استعاذه خو دلته مقيد دی په هغو شيانو سره چي د شيطان دخوا څخه وي او شك نسته چي امراض مذكوره وغيرها خو د شيطان دخوا څخه نه دي كمالا يخفی . نو به يي نيت څرنګه صحيح وي صحيح وي . اللهم الا ان يقال چي مراد د روح البيان والا استعاذه مقيده نه ده بلكه مراد دده مطلق او فقط ويل دي د اعوبالله . فنية جميع المحظورات الدينية والآ فات البدنية صحيح .

**پوه سه !** چي د يو سړي سره چي د يو چا خوړی سپی مخامخ سي نو كه دا مسافر د هغه سپي په جګړه اخته سي ، د سفر څخه به هم پاته وي او شايد هغه سپی به دغه مسافر هم وداړي . او كه مسافر پر مالك د سپي ږغ وكړي چي دا خپل سپی دی راسه وي وګرزوه ، نو مالك د سپي چي صرف ته ووايي چغه هغه سپی مسافر پريږدي . دغه رنګه موږ لكه مسافر يو او شيطان لكه سپی ، كه موږ د شيطان سره په خپل قوت په جنګ سو شايد شيطان به پر موږ كامياب سي . او كه موږ د اعوذبالله آه په ويلو سره پر خدای پاك نعره وكړو چي خپل سپی شيطان دي زموږ څخه چغه كړه ، نو د ضرر څخه به يي خلاص سو بقدرته تعالی .

قوله من الشيطان . پوه سه ! چي لفظ د شيطان فيعال دی مشتق دی شطن څخه دی په معنا د بَعدُ دی ، نو شيطان معنا داده چي لري كړه سوي د خدای جل سلطانه د عظيم رحمت څخه .

د ابـن عبـاس رض څخـه روايـت دی چـي شيطان چي عصيـان وكړی د امر الهيِ څخه يعني د آدم عليه السلام د سجدي كولو څخه استكباراً انكار وكړی كما سيئاتی فی القرآن ، نو شيطان يي نوم سو . ددي حديث څخه دا معلوميږي چي د شيطان نوم وروسته تر ملعونيت پر ده ايښوول سوی دی . درويـش وايـي چـه د ابليـس نـوم يـي هـم وروستـه تـر انكـار د سجدي په برخه سو . او دمخه نوم يي عزازيل وو يعني د خدای پاك په دربار كي عزت مند شخص او بل نوم يي نائل وو ، نائل معنا كامیابه .

سعدي شيرازي رحمه الله وايي :

تكبر عزازيل را خوار كرد ❊ بزندان لعنت گرفتار كرد

وفی روضة الاخيار : الشياطين ذكور و اناث يتوالدون و لايموتون . يعني شيطانان نر او ښځي لري . زيږيـده يـي كيږي او مري نه بلكه تر قيامت پوري باقي به وي . او پيريانان نر او ښځي لري ، زيږيده يي كيږي او دمخه تر قيامت مري . لكه موږ انسانان . او ملكي نه نر لري او نه ښځي او توالد هم نه لري او خوراك او څښـاك هم نه لري . او د جن د وجود څخه منكر يوه ډله ده د جاهلانو څخه د حكماوو او د طبيبانو و نحوهم .

او روح البيان والا وايي : چي پيريان څوك وايي اجسام هوائيه دي او بعض وايي چي اجسام ناريه دي او په خپل قدرت سره پر صورت د مارانو ، دسپو ، دغاترو ، د غويو ، دخرو او د انسانانو په شكل ځان كولای سي . او عقول او افهام لري چي د هغه په سبب دوی مكلف دي او سخت سخت عملونه كولای سي . لكه په قصه كي د سليمان عليه السلام به راسي انشاء الله يعني په دي تفسير كي .

او حکماء مشائین او اشراقیین بیا نور څه وایي چي په دي تفسیر کي يي راوړه مناسب نه دي چي د عامو مخاطبانو تر ذهن لوړ دی .

**فائده** : علامه زمخشري د وجود څخه د جن منکر وو ، سره ددي چي په قرآن کریم کي ذکر د جن سته او په حدیثو مبارکه وکي په صحیح طور دا ثابته ده چي آنحضرت ﷺ په لیلة الجن کي وه جناتو ته تبلیغ د اسلام کړی دی او ډیرو نفرو د جنیاتو ایمان هم راوړی دی . او زمخشري مُعاصر د مفتي الثقلین حضرت الهمام محمد الغزالي رحمه الله وو چي امام غزالي رحمه الله په ډیرو وارو د زمخشري سره په وجود کي د جن بحث هم کړی وو لکن زمخشري دده سره قناعت نه وو کړی .

نو یو شپه جنیات وه حضورته د امام الثقلین حاضر سوي وه او امام د حوادثو څخه د وخت ددوی څخه پوښتنه وکړه ، هغو ورته وویل چي زمخشري یو تفسیر د قرآن شروع کړی او تر نیمي يي رسولی دی ، نو امام الثقلین ورته وویله چي تاسي ورسی هغه تفسیر يي راوړی . دوی چي تفسیر راوړی ، امام رحمه الله امر وکړی چي دا حصه تفسیر تاسي نوشته کړی . څه وخت چي تفسیر تکمیل سو ، نو امام رحمه الله زمخشري راوغوښتی او دا تفسیر يي ورښکاره کړی . زمخشري چي مطالعه کړی تعجب يي وکړی او وي ویله که زه ووایم چي دا تفسیر زما دی ، نو زما تفسیر خو په کور کي محفوظ ما ایښی وو ، نو دلته چا راوړی ، او که زه ووایم چي دا تفسیر ستا دی نو دا څرنګه زما د تفسیر سره په ټولو الفاظو او معنا کي یو شی دی ؟! نو حضرت امام الثقلین رحمه الله وده ته وویله چي تفسیر خو ستا دی لکن ماته پیرانانو راوړی او مو هغه نقل کړی او ستا تفسیر مو بیرته کور ته در واستاوه . فاعترف الزمخشري في مجلسه

المذکور بوجود الجن.

**پوښتنه** : ددي قصې څخه خو دامعلومیږي چي جنیات په غیبو خبر دي؟

**جواب** : جنیات خو په غیبو نه دي خبر لکن چونکه په هر کور کرخي نو دا تفسیر په کور کي د زمخشري ددوی په سترګو لیدلی وو.

**مسئله** : جن ته علم الغیب نسته لکه د بعضي عوامو چي دا عقیده ده ، په دلیل ددي قول د خدای جل وعلاشانه : (تبینت الجن ان لوکانوا یعلمون الغیب مالبثوا فی العذاب المهین) فی قصة سلیمان علیه السلام.

**فائده** : **پوښتنه** : د اعوذباالله په ویلو کي خو دا ښکاره کیږي چي دا ویونکی د غیرالله څخه بیریږي او سره ددي چي حقیقت د عبودیت خو دادی چي سړی به ده خالق څخه بیریږي ، نه د مخلوقه څخه ؟

**جواب** : په تفسیر کبیر کي وایي چي د اعوذ باالله په ویلو کي رجوع د مخلوقه څخه وه خالق ته او د خپل تمام احتیاج د سبب څخه وه خالق مقتدر ته رجوع کول دي ، په تحصیل کي د ټولو حاجاتو او په دفع کي د مضراتو ، که دیني وي او که دنیوي . وهذا موافق لقوله تعالیٰ : (ففروا إلی الله) او په استعاذه ویلو کي دلیل دی پر خپل عجز . او اهل الحق وایي چي عجز آخري مقام د مقاماتو څخه د معرفت او ولایت دی حتی وایي چي : متی قرب العبد الی الرب تبارك وتعالی زاد عجزه وانکساره.

سلطان العارفین بایزید بسطامي رحمه الله په یو مناجات کي وایي :

چار چیز آورده ام شاه که در گنج تو نیست ✤ عاجزي و مسکیني فقروګناه آورده ام

**فائده**: اعوذ باالله باید په حضور قلبي سړی ووايي يعني قول او قلب دي سره برابر وي ، او که سړی په شيطاني چارو مبتلا وي او بيا هم اعوذ باالله وايي ددي داسي مثال دی چي خوله دي وايي اعوذباالله او فعل دي وايي اعوذباالشيطان .

**بيت**: برزبانت با صمد پيدا ودر دل با صنم ❊ ای بباطن كافر ظاهر مسلماني چه سود

بعض اهل المعرفت وايي :

أخاف من الله ای من عذابه و أخاف ممن يخاف الله ای من سوء دعائه و أخاف ممن لايخاف الله ای من سوء افعاله فاالشيطان لما لم يخف الله نخاف منه لان العبد ينبغي له ان يتخذ عدو الحبيب عدواً .

**قوله الرجيم**: يعني راوغوځول سوي د آسمانو څخه په ذريعه د ملكو ، پس له دي چي دی ملعون ابدي سو .

روح البيان وايي چي (رجيم) د صفاتو څخه د شيطان تر ټولو لوی مذموم صفت دی او شيطان لره په قرآن كريم كي نو اسماء او صفات مذمومه سته .

**تنبيه**: مراد د شيطان څخه دی او دده اولاد دی ،ولي چي د هر سړي سره خو لوی شيطان نه ملګری كيږي كما جاء فی الحديث النبوي ﷺ أن الشيطان يبعث سراياه فاقربهم اليه منزلة.الحديث . او بعض علماء وايي چي د شيطان په كلمه كي د استعاذي هر سركښه دخدای ﷻ څخه كه انسان او كه حقيقت شيطان وي . وقد ورد فی القرآن العزيز : شياطين الإنس والجن .

ورد الإستعاذة فی کل یوم ولیلةٍ کما فی خزینة الأسرار ۱۱ واره یا ۴۱ واره یا اویا ۷۰ واره او یا سل ۱۰۰ واره.

درویش وایي چې د اعوذبالله په تفسیر او تحقیق کې خو مسئلې ډیرې وې لکن ترکنا التطویل دفعًا للملال.

## بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

**پوه سه !** امام فخر الدین الرازي رحمه الله په اول کې د سورت فاتحه چې د بسم الله څخه شروح کیږي داسي وایي چې ما په یو مجلس کې پر خوله راغله چې سورت فاتحه دونه عظیم الشانه سورت دی چې امکان ددي سته چې د فوائدو څخه ددي سورت لس زره مسئلې استنباط کړل سي.

بعض حاسدانو او بعض جاهلانو د ملایانو او بعض اهل البغی والعناد چې دا خبره واوریده، دا زما خبره یې د چټیاتو څخه وبلل، نو ما چې شروع په تصنیف ددي تفسیر وکړه نو دا خبره مې راپیاد سوه او ددي خبري امکان خو څه کوي په تحصیل کې مې کوشش وکړی.

درویش وایي چې حضرت الامام ددي مبارك سورت څخه لس زره مسئلې د قوت څخه وه فعل ته راوړي کما لایخفی علی من یُراجع الی تفسیره.

**پوه سه !** چې په دي آیت مبارك کې اختلاف د مذاهبو قدیماً و حدیثاً موجود دی. په ائمه ثلاثه و کې امام شافعي رحمه الله یې جزء د الحمدلله بولي، بلکه د هرسورت چې په اول کې یې بسم الله وي یعني ماسوی د سورت توبه څخه په هغو ټولو کې بسم الله جزء د هغه سورت بولي.

او امام مالك رحمه الله یې جزء د قرآن هم نه بولي.

او مذهب د حنفیانو دادی چي بسم الله د هیڅ سورت جزء نه ده سوی د سورت النمل یعني فی قوله تعالی ( إنه من سلیمان و إنه بسم الله الرحمن الرحیم ) بلکه بسم الله الرحمن الرحیم آیت مستقله دی د قرآن عظیم . دپاره د فصل بین السور نازل سوي دي . والدلیل دادی چي د الحمدلله سورت یا نور سورتونه په جهري لمانځه کي په جهر سره ویل کیږي او بسم الله په هیڅ سورت کي په جهر سره نه ویل کیږي ، نو که بسم الله جزء د سورت وایي نو باید لکه نور سورتونه دا هم په جهر سره ویل کیدای .

**پوه سه !** چي هیڅ سورت قرآني دونه نومان نه لري لکه الحمدلله . وذالك یدل علی شرفها من جمیع سُورالقرآن کما ذهب الیه اهل التحقیق من المفسرین وغیرهم .

۱: فاتحة الکتاب : ددي نامه وجه داده چي په مصاحفو کي اول دا سورت لیکل کیږي او تعلیم د ترجمي د قرآن هم ددي ځخه شروع کیږي او په لمانځه کي د قرآني سورتو ځخه اول په دي شروع کیږي . او بعض مفسرین وایي چي اول سورت چي پوره نازل سوی دی هم دغه الحمدلله آه ده . وقیل لان الحمدلله فاتحة کل کلام وفیه نظر .

۲: فاتحة القرآن : او ددي نامه وجه هغه ما مر ده .

۳: ام الکتاب

۴: ام القرآن : ولي ام الشي اصل ته د شي وایي . او دا سورت مبارك مشتمل دی پرتولو معانی د قرآن مبارك اجمالاً قاله البیضاوي . وفصله الامام الرازي رحمه الله .

۵: القرآن العظیم : ولي چي دا سورت مبارکه مشتمل پر تولو معاني و د

قرآن کما مر رواه ابوهريرة ﷺ عن النبی ﷺ.

**پوښتنه** : په قرآن مبارك كي خو قرآن عظيم پر سبع مثاني عطف دى او عطف تغاير د معطوف او معطوف عليه غواړي ، نو څرنګه به فاتحه قرآن عظيم سي . (ولقدآتيناك سبعاًمن المثاني والقرآن العظيم) آيت كريمه ؟

**جواب** : مفسرين قرآن عظيم عطف تفسير د سبع مثاني بولي . په دي دليل چي په وخت ددي آيت عظيم قرآن ټوله نه وو نازل سوى .

۶: السبع المثاني : سبع يي په دي بولي چي دا سورت مبارك په اتفاق سره اوه ۷ آيته دي . رواه الدار القطني عن النبی ﷺ . او مثاني يي په دي بولي چي دا سورت په هر ركعت د لمانځه مكرريږي . اخرجه ابن جرير عن عمر ﷺ . وقيل لانها نزلت مرتين مرةً فی مكة شرفها الله تعالى و مرةً فی المدينة حين تحولت القبلة و تكرار نزولها لاظهار شرافتها . قال صاحب الاتقان لانها على قسمين ثناء و دعاء . او ده نوري توجيهاتي هم كړي دي . او چاويلي دي چي څوك چي يو آيت ددي سورت ووايي ، ثواب يي برابر دى د يوې سبع د قرآن د تلاوت سره .

۷: الوافيه : ولي ددي سورت تلاوت ساتونكى د قاري د ټولو آفتو او امراضو څخه . لماورد فی الحديث النبوی ﷺ عن عمران بن حصين ﷺ چي فاتحة الكتاب او آيت الكرسی نه وايي دادوه يو بنده په خپل سراى چي بيا دي آفت ورسيږي ورته يعني صاحب الدار ته په دغه ورځ كي د عين انس او جان سره . او د ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دى چي امام حسن بن علی ﷺ رضی الله عنهما يو وخت ناجوړى سو فاغتم النبی ﷺ يعني په ناجوړى يي غمجن سو ، نو جبرئيل عليه السلام راغلى او عليه السلام ته يي وويله چي ته هغه سورت چي (فا ء) نه وي پكښي

۴۰ واره پر اوبو ووایه او لاسونه او پښې او مخ او ټوله بدن دده په وریږي مینځه خدای پاك به یي جوړ کړي انشاء الله تعالی . او علیه السلام هغه وکړه او هغه وسوه.

**پوه سه !** چې دا ترتیب د حسن بن علی رض دپاره خاص نه دی بلکه په حُسن عقیده سره دنورو مریضانو سره هم خدای جل سلطانه داغسې کوي انشاء الله تعالی .

۹:سورت الکنز: سُمیت بذالك لما رُوی عن انس ﷺ عن النبی ﷺ قال قال الله تعالی سورة الفاتحة کنز من کنوز عرش .

او په احیاء العلوم کې امام غزالي ﷺ وایي چې حضرت علی ﷺ وویل : (لو شئتُ) یعني که زه وغواړم بار به کړم څلویښت ۴۰ اوښان په تفسیر او اسرارو د فاتحة الکتاب .

۱۰: الکافیة : ولې دا کفایت کوي د قرائت مفروضه څخه دلمانځه . و وجه التسمیة لایجبُ اطراده فلایرد مایرد ان غیرها ایضاً تکفي عن القرائة المفروضة لقوله تعالی ﴿فاقرءوا ماتیسر من القرآن﴾ او د عُباده بن الصامت ﷺ څخه روایت دی . قال قال رسول الله ﷺ أمُ القرآن عوض عن غیرها ولیس غیرها عوض عنها یعنی فی الثواب والاشتمال علی جمیع معارف القرآن.

۱۱: سورة الاساس : ولی اصل او اول سورة کامله دی چې په قرآن کې نازل سوی دی . لکه د دیوال تادای . وقیل : چې ناجوړی سو څوک د ابی الشعبی ﷺ د درد څخه د تشې . فقیل له علیك باساس القرآن وهی

فاتحة الكتاب . وعن ابن عباس رضی الله عنهما لکل شيئ اساسٌ و اساسُ القرآن الفاتحة. الحديث .

۱۲: سورة النور : ولي دا سورت مشتمل دی پر انوارو د ظاهر او باطن . کمارُوی عن أنس ﷺ فی حدیث طویل عن النبی ﷺ .

۱۳: سورة الحمد : لان اول كلمتها الحمد

۱۴: سورة الشكر : لإشتمالها على الشكر فی مقابلة نعمة الربوبية . و ورد فی الحديث النبوی ﷺ كما اخرجه ابن جرير والحاكم والديلمي قال رسول الله ﷺ اذا قلت الحمدلله رب العالمين فقد شكرت الله تعالى .

۱۵: سورة الحمد الاولى : ولي چي داسورت اولین سورت دی چې حمد د خدای ﷻ پکښې ذکر دی لما مر انها اول سورة نزلت .

۱۶: سورة الحمد القصوى : ولي پر نهاية د حمد بليغ دا سورت مشتمل دی اجماعاً .

۱۷: سورة الرقيه : يعني دم كول پر مريض او د ثابت په توكه په چنبل . په حديث شريف كي چي روايت يي ابوعبيده ﷺ ، احمد رحمه الله ، بخاري رحمه الله ، مسلم رحمه الله ، ابوداود رحمه الله ، نسائي رحمه الله ، ابن ماجه رحمه الله ، ابن جرير رحمه الله ، حاكم رحمه الله او بيهقي رحمه الله كړی دی د ابي سعيد الخدری ﷺ څخه دی وايي چي موږ ديرش نفره عليه الصلوة والسلام واستولو چي داسي فوج ته چي عليه السلام او يا بل امير المؤمنين نه وي پكښي په اصطلاح د فن سير سرية وايي ، نو موږ پر يو كلي د كفارو د سفر په دوران كي نازل سو ، نو موږ وه دوی ته وويل چي زموږ مهمان نوازي وكړی ، يعني دوډی وغيره راكړی . هغو ددي څخه ابا او منع وكړه ، نو په شپه كي د هغه كلي سردار لړم وخوړی ، يعني هر څه تداوي چي دوی

ممکنه وه په وي کړه خو د لړم درد نه ښه کیدی . نو موږ ته راغله او وي ویله چي ایا په تاسي کي داسي څوك سته چي د لړم دم کوي . ابوسعید ﷺ ورته وویل هو زه د لړم اوده لرم . لکن زه دم نه پر کوم تر هغو چي تاسي ښه ډیره شکرانه او د دم عوض رانه کړی . دا په سبب ددي چي تاسي موږ ته ډوډی نه کړه را . نو دوی وویل چي موږ به تاسي ته دیرش ۳۰ پسونه درکړو چي زموږ سید او سردار جوړ سي . ابوسعید ﷺ وایي نو زه ورسره ولاړم او پر لړم خوړلي والا باندي مي فاتحه اوه ۷ واره وویل او پر تو مي کړل ، هغه سړی فوراً جوړ سو . کانه انشط من عقال . لکه اوښ چي د زنګون بند څخه ایله کړی . نو کلیوالو دیرش پسونه موږ ته راکړه . نو بعض صحابه وو رضی الله عنهم وویل چي راسی سره تقسیم یي کړو او بعض ملګرو وویل چي دا خو تا پر قرآن مزدوري واخستل دا به حرام وي . نو موږ پسونه را رهي کړه څو چي نبی کریم ﷺ ته راغلو او مذکوره موضوع او قصه مو ورته وکړه . اول خو علیه السلام و ماته وویل : ومایدریك انما رقیة . او بیا یي نورو ته وویل چي سره وي ویشی او ماته هم برخه پکښي راکړی .

**پوه سه !** چي علیه السلام که څه هم حاضر په واقعه کي نه وو لکن ددوی د زړو د اطمنان دپاره ده وویله : واضربُوْا لي بسهمٍ .

بعض وهابیان او ددوی هم فکران وایي : چي دا خو صحابه وو رض د کافرانو څخه مشروطه مزدوري پر قرآن واخستله . د مسلمان څخه پر رقیه د قرآن مشروطه مزدوري حرامه ده .

**والجواب** : چي که دا مزدوري پر قرآن مبارك اخستل حرام وي نو د کافر اومسلمان نو څه فرق دی لکه چي په نورو مزدوریو کي د کافر اومسلمان

فرق نشته .

درویش وایي : دا وو صحیح دلیل پر اخستلو د أجرت پر دم کولو د امراضو یعني چي حُرمت لا څه کوي کراهت هم نشته پکښي .

**مسئله** : اخستل د مزدوري پر اذان کولو ، امامت کولو ، تعلیم القرآن او یا فقهي شریف وغیره روا ده . شارح الوقایه وایي : لظهور التواني في امور الدین . یعني په قدیمه زمانه کي د مذکوره امورو پر کولو اشتراط د مزدوری ضرورت نه وو ولي چي خلګو په خپله ضروریات د موذن ، امام او معلم القرآن وغیره ورکوله . اوس چي د خلګو همت کم سو او همتونه کمزوري سوه ، نو د اشتراط څخه چاره نشته .

**مسئله** : مشروطه مزدوري پر شي چي وي د زکات په ځای کي نه دریږي مثلاً روزانه مزدور ته دي سل روپی اجرت کښیښودہ هغه په ورکولو سره د زکات غاړي نه خلاصیږي . وهکذا الاجرة المشروطة للامام وغیرها اذ لافرق بین اجرة واجرة .

**مسئله** : امام وغیره که څه هم غني وي د اجرت مشروطه اخستل روا دي لکه نوري مزدوری چي ورته روا دي .

**پوه سه !** چي اخذ د اجرت پر امور مذکوره وو په اجماع د متاخرینو د احنافو روا ده . په دي باره کي فتاواوي د فقه شریفي مطالعه کړه او پر تفسیر جلالین باندي په لویه حاشیه کي دا تفصیل موجود دی . دا بیان پر ډول د معترضه جملو راغی . او اوس بیرته د سورة الشفاء پر لور .

وروی عن جابرﷺ فاتحة الکتاب شفاءٌ لکل شیئ الا السام والسام هو الموت . وروی البهیقي عن عبدالملك بن عمیر مرسلاً قال علیه الصلوة

والسلام فاتحة الكتاب شفاءٌ من كلا داءٍ . علامه مناوي رحمه الله وايي چي دا مبارك سورت د مرض د جهل او د مرضه ښخه ګناهو ، او د امراض ظاهره او باطنه ټولو شفاء ده لكن حُسن عقيده او د عليه الصلوة والسلام واقوالو ته د زړه په يقين كتل لوی شرط دی .

۱۹: سورة الشافية : ولي سورة الفاتحة تبرءُ الاسقام والآلام و تعجل العافية في حينها . قال عليه الصلوة والسلام : ان فی سورة الفاتحة سبعين شفاء . والاحاديث الصحيحة فی ذالك كثيرة وفی ماذكرناه كفاية.

۲۰: سورة الصلوة : په دي سبب بولي چي لمونځ پر دي موقوف دی . لحديث اخرجه البخاری رحمه الله و مسلم رحمه الله ومالك رحمه الله فی الموطا و ابوداود رحمه الله والترمذي رحمه الله والنسائي رحمه الله وابن ماجه رحمه الله و ابن جرير رحمه الله و ابن الا نباری رحمه الله عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبی صلی الله عليه وسلم . قال : كه چا يو لمونځ د لمونځو ښخه وكړی او په هغه لمانځه كي ام القرآن ونه ويله نو هغه لمونځ ناقص دی ، ناقص دی ، ناقص دی . غيرتام .

او په بل حديث طويل كي ټولو صحيح كتابو د حديثو يي روايت كړی عن ابي هريرة قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم يقول قال الله تعالی قسمت الصلوة .

**پوه سه !** چي مراد د صلاة ښخه په دي حديث كي سورة فاتحه ده . كما يدل عليه الحديث وهذا مجاز من باب التسمية اللازم باسم الملزوم ، ولي د لمانځه سره الحمد لله لازم ده . فالمعنی قسمتُ الفاتحة بينی و بين عبدي نصفين ، فنصفها لی ونصفها لعبدی و لعبدی ما سئل.



Scanned by CamScanner

**ترجمه** : ما ویشلی ده فاتحه په مابین کي خپل او د بنده خپل دوه ځایه، نو نیمی یي زما دی او نیمی یي زما د بنده دی او زما بنده لره هغه شي دی چي دی یي سوال کوي . قال علیه السلام یقول : العبد الحمدلله رب العالمین ° فیقول الله تعالی : حمدنی عبدی . یقول العبد : الرحمن الرحیم ° یقول الله تعالی : اثنی علی عبدی . ویقول العبد مالك یوم الدین° یقول الله تعالی مجدنی عبدی . یقول العبد : ایاك نعبد و ایاك نستعین ° یقول الله تعالی هذه الآیة بیني و بین عبدی . یعني ایاك نعبد لي، و ایاك نستعین للعبد . و لعبدی ما سئل . یقول العبد : اهدنا الصراط المستقیم ° صراط الذین انعمت علیهم غیر المغضوب علیهم ولا الضالین ° یقول الله تعالی هذه لعبدی و لعبدی ما سئل .

**پوهه سه !** چي تفصیلي ترجمه د بسم الله او د الحمدلله به وروسته واوري انشاء الله تعالی.

۲۱ ، ۲۲ : سورة الدعاء و سورة الطلب : ولي چي په اهدنا کي هم طلب سته او هم دعاء .

۲۳ : امام فخرالدین الرازی رحمه الله یي په دي نامه بولي لاشتمالها علی السوال کما ذکرنا .

۲۴ : سورة تعلیم المسئلة : ولي چي په دي سورت کي خدای ﷻ بندګانو ته دا وښوله چي څه وخت چي دوی زما څخه سوال کوي اول حمد ووایاست او بیا اخلاص کوي او بیا سوال کوي . په در منثور کي وایي : چي ام القرآن هم قرائت دی او هم مسئله او هم دعاء ده .

۲۵ : سورة المناجات : لان المصلی یناجي ربه فیها.

۲۶: سورة التفويض : ولي چي د الحمد لله سپارنه د خپلو كارو په اياك نستعين كي وه خداى جل سلطانه ته وكړه .

۲۷: سورة المكافات : په صحيح حديث كي راغلي دي چي څه وخت چي رسول كريم صلى الله عليه وسلم په مكه مكرمه كي وو او مسلمانان د هغه وخت په ډيره فاقه كښي او مسكنت كي وه او د كفارو د مكي اوه ۷ قافلي تجارتي مكي ته داخلي سوي او حسب العادت د هغه وخت ډول د خوشحالى يي ووبه وي مسلمانانو په نګاه د حسرت پر خپل ځان ددي قافلو ته كتل . نو جبرئيل عليه السلام دپاره د دفع حسرت د دوى د لوى جناب څخه دا آيت ، د نبي عليه السلام ته قرائت كړى : ( ولقدآتيناك سبعاً من المثانى والقرآن العظيم ) چي معنا يي داده چي تاته ما مكافات او عوض د اوو قافلو د قريشو دركړي دى چي سبع مثاني يعني فاتحه ده .

۲۸: افضل سُور القرآن : لما اخرجه احمد رحمه الله والبهيقي رحمه الله فى شعب الايمان بسندٍ جيدٍ عن جابر بن عبدالله رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال له الا اخبرك باخير سورة نزلت فى القرآن قلتُ بلى . يارسول الله قال فاتحة الكتاب .

۲۹: اعظم سورة فى القرآن : ددي نامه وجه هغه حديث مبارك دى چي روايت يي احمد رحمه الله او بخارى رحمه الله ا دارمي رحمه الله او ابوداود رحمه الله او نسائي رحمه الله او حسن بن سفيان رحمه الله او ابن جرير رحمه الله او ابن حبان رحمه الله او حاكم رحمه الله او ابن مردويه رحمه الله او ابونعيم رحمه الله او بهيقي رحمه الله او د ابوسعيد رضي الله عنه څخه كړى دى . دى وايي چي زه پر لمانځه يعني نفلي ولاړوم چي عليه السلام را ږغ كړه يعني چي راسه ، ما جواب ورنه كړى يعني په سبب د لمانځه . حتى لمونځ مي پوره كړى بيا عليه السلام ته ورغلم . ده

مبارك راته وويله چه څه مانع وو چي په اوله نعره زما نه راغلي ؟ما ورته وويل چي ما لمونځ كاوه . ده مبارك صلى الله عليه وسلم وويله چي خداى جل شانه وايي چي تاسي قبلونه كوى د خداى ﷻ او د رسول دخداى چي تاسي وبولي يعني لمونځ به دي پري ايښى واى . او بيا يي راته وويل چي زه وتاته ونه ښيم هغه اعظم سورت په قرآن مبارك ي دمخه تر دي چي ته د مسجد څخه ووزي ؟ او بيا يي زه تر لاس ونيولم ، نو د مسجد څخه ووتو چي مورِ نژدي سو ، نو ما ورته وويله چي تاسي وويل چي زه به اعظم سورت د قرآن پاك دروښيمه . نو آن حضرت صلى الله عليه وسلم وويل : الحمد لله رب العالمين هى السبع المثاني والقرآن العظيم الذي أُوتيته .

۳۰: المنجية يعني نجات وركوونكى وه قاري ته د عذابو څخه د دنيا او آخرت .

درويش وايي : د حديث مذكور آنفاً څخه دا معلومه سوه چي بسم الله آه جزء دَ الحمد لله نه ده ولي چي عليه السلام شروع د اعظم السورة د الحمدلله رب العالمين څخه وكړه .

دا وه نومان د سورة فاتحه ، اوس تفسير ددي سورت مبارك د بسم الله الرحمن الرحيم څخه شروع كيږي . شروع كوم يعني د تفسير د قرآن عزيز ، په ياري او كومك د نامه د خداى ﷻ ، نو لفظ د ( باء ) چي حرف جر دى د پاره د استعانت دى او يا زه شروع د تفسير كوم په داسي حال كي چي زه متلبس يم په نامه د خداى ﷻ نو پر دي تقدير ( باء ) د ملابست دپاره ده . الى غيرذالك من معانى باء الجر . چي هغه خداى ډير مهربانه او بخښونكى دى . ما داسي وويل چي زه شروع كوم د تفسير آه ددي دپاره چي هر څوك چي هر كا د خير كوي او بسم الله ووايي متعلق د

حرف جر به د هغه کار لفظ دال په تقدیر کې ورسره وي ، مثلاً بسم الله اقرء ، بسم الله اسافر ، بسم الله اتوضأ ، بسم الله اصلی الی غیر ذالك .

**پوه سه !** چي عامل مُقدر به تر بسم الله الرحمن الرحیم وروسته مقدره وي تاچي دلالت وکړي پر حصر د شروع دکار پر نامه د خدای ﷻ ، ولې نحات وايي چي تقديم د ماحقه التاخير يُفيد الحصر . نو کفار د مکې چي دوی به شروع د کارو باسم اللات والعزی چي ددوی د خدايانو نومان وه کول به يي . او بعض ددوی په نامه د خدای ﷻ او د لات و عزی دواړو به کوله نو په دي حصر پر دواړو ډلو به رد راسي ، ولي چي موږ خپله شروع د کار يوازي او يوازي پر نامه د خدای ﷻ حصر کړه ، نو پر اوله ډله په قصر قلب او پر دوهمه په قصر افراد رد وسو .

**فوائد فقهيه** : فی باب البسملة :

۱: بسم الله واجبه ده په ابتداء کي د ذبح د حيوان .

۲: واجبه ده په وخت کي د ويشتو د ښکار په غشي سره .

۳: واجبه ده په وخت کي د تعليم يافته سپي په ښکار پسي . په بعض کتابو کي د فقهي وايي چي په وخت د ذبح دی فقط بسم الله وايي او رحمن الرحيم نه ورسره وايي ، ولي چي ذبح د رحمت خامي نه ده . لکن په جوهره کي وايي که چيري سړی په وخت کي د ذبح پوره بسم الله الرحمن الرحيم ووايي ښه کار دی .

۴: او واجبه ده دمخه تر الحمد لله په هر رکعت کي ، لکن صحيح داده چي دمخه تر الحمد لله ويل د بسم الله سنت دی لکه چي په عامو کتابو د فقه شريفي راغلي دي . او سنت ده بسم الله آه ويل په شروع کي د اوداسه او سنت ده بسم الله ويل پوره په وخت کي د شروع په هر ښه کار . لکه د

قرآن مبارك تلاوت او د علومو دينيه د درس په شروع كي . د ديني كتابو د ليكلو او د تصنيف په وخت كي .

او بسم الله ويل مباح ده په نيز د ولاړي يا ناستي ، يا د تګ په ابتداء كي اويا پري وتلو په وخت كي .

او بسم الله ويل مكروه ده په وخت كي د لڅ عورت غليظه او پر مردار خاى كي . او په اول كي د سورت برائت او په وخت د چلم څكولو ، او د نسوارو كولو ، او يا د بوى ناكه شي د خوړلو په وخت كي . لكه اوږه يا پياز ، ياګندنه .

او بسم الله شريف ويل حرام دي په وخت كي د حرام كار كولو. لكه چي سړى شراب چښي . او يا چي سود ګټلي مال خوري ، يا زنا كوي ، بلكه په فتاواى برازيه كي وايي چي كافر كيږي هغه څوك چي پر حرام قطعي بسم الله ووايي . او دغه رنګه بسم الله ويل حرام ده د جُنب او حائضي ښځي چي په نيت د تلاوت القرآن يي وايي .

**سوال** : ستا تفسير خو دپاره د عامو پښتنو وو ، نو عام پښتانه په قصر قلب او قصر افراد او يا په تقدير د متعلق د حرف جر وروسته څه پوهيږي؟

**جواب** : زما دغه تفسير د پښتنو دپاره دى كه عوام وي او كه طالبان وي او كه بعض ملايان وي ،يعني چي حاسدان او اهل تكبر نه وي . په پښتو كي متل دى چي درياب كه لوى دى چمچى دي خپله ده .

**پوښتنه** : څه سبب دى چي ټوله مصنفين د كتابو او د رسالو په اول كي بسم الله الرحمن الرحيم ليكي ؟

**جواب** : اول خو دوی متابعت د قرآن پاك کوي چي د هغه په اول کي بسم الله آه راغلي ده . دوهم : نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چي هر کار چي د خير او برکت وي او په هغه کار کي شروع په بسم الله نه وسي ، هغه کار به د برکت څخه خالي پاته وي النواوي رحمه الله په اول جلد کي د مسلم د شرحي .

## د ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ په باب کي بعضي مالابد منه بحثوني فائدي :

۱ : لفظ د (الله) نوم دی د ذات دخدای پاك . او عربي لفظ دی چي معنا يي معبود ده . او دا مذهب دی د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله تعالى او د محمد بن الحسن الشيباني رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله او د خليل بن احمد رحمه الله .

۲ : امام محمد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله څخه روايت کړی دی چي ( الله ) اسم اعظم شريف دی . او فقيه ابو جعفر رحمه الله وايي چي دا مذهب دی د ډيرو علماوو رحمهم الله او د اکثرو صوفيه کرامو رح . او تر دي لوی ذکر نسته . رد مختار صفحه ۵ جلداول .

**سوال** : په حديث شريف کي راغلي دي چي په اسم اعظم سره سړی د خدای هر شی وغواړي خدای پاك يي اجابت او قبلونه کوي او ډير خله موږ دا نوم مبارك وه خدای جل جلاله ته شفيع کړی دی او کار مو نه دی سوی ؟

**جواب** : اول درخواست لره ځيل شرطونه سته چي د جملي څخه د هغو يو شرط لقمه حلال ده ، نو شايد درخواست کوونکی به لقمه حلاله نه وي . دوهم : د اجابت د سوال معنا يوازي دا نه ده چي هغه مطلوب د داعي به

ورکوي ، بلکه دا هم اجابت دی چې يو شر وه داعي ته متوجه سي ، هغه
ختي دفعه کړي . او دا هم اجابت دی چې تر مطلوب د داعي خير شی وده
ته ورکړي . مثلاً سړی ډير ډير واره د اسم اعظم په زوی د خدای ﷻ څخه
ډير دنيا غوښتي وی . خدای ﷻ په عوض کي د هغه وه دغه سړي ته
صالح ځوی ورکړی . او دا هم اجابت دی چې خدای ﷻ په عوض د
مطلوب د داعي عفو د بعض کبائرو ګناهو وه داعي ته وکړي . او دا هم
اجابت دی چې خدای ﷻ وه داعي ته درجات په جنت کي ورکړي . حاصل
داچي شفاعت د اسم اعظم بې خايه نه ځي .

درويش وايي : که څوک دا اسم مبارک په لسو ۱۰ ورځو اعتكاف د
روژي سره په اجازه د شيخ مرشد ۵۰۰۰۰۰ يعني پنځه لکه واره ووايي ،
او وروسته تر هغه هره ورځ يا شپه يې ۲۳۶۰ يعني دوه زره دري سوه او
شپيته واره هميشه په اجازه د شيخ کامل وايي ، درخواست به يې ډير وه
اجابت ته نژدي سي . او که يو چاته يو سخت مهم کار پيښ سي چې
شرعاً رواوي ، نو دماخستن تر لمانځه وروسته دي دوه رکعته لمونځ
وکړي نفل او دا اسم مبارک دي ۲۳۶۰ واره په يوه ناسته کي ووايي او د
خپل مُهم په باره کي دي شفيع وه خدای ﷻ ته وګرځوي تر درو شپو
پوري انشاء الله تعالی هغه مُهم دده به حاصل سي .

**فائده** : د پوره بسم الله الرحمن الرحيم ° ورد همروزه ۷۸۶ واره . او که
سړي ته يو ډير سخت کار پيښ سي چې دی يې په حل کي عاجزه او ياته
راسي ، نو په يوه شپه کي دي پوره بسم الله الرحمن الرحيم دوولس زره
۱۲۰۰۰ واره ووايي ، په دي ترتيب چې پر هر زر باندي دوه رکعته نفل
کوي ، که خدای کول هغه مشکل به خدای ﷻ حل کړي . ذکره الامام

ابوحامد محمد الغزالي رحمه الله فی احیاء العلوم .

**الـرحمن** : عربي دی . درحمت څخه جوړ سوی دی او د خدای ﷻ اسم صفت دی . او رحمن تر رحیم ابلغ دی . لأن زیادة النبأ تدل علی زیادة المعنی . او زیادت د معنا یا په اعتبار د مقدار د نعمتو دی . ولهذا قیل یا رحمن الدنیا ویارحیم الآخرة ، ولي چي متعلق د نعمتو د خدای ﷻ په دنیا کي چي عبارت د صحت او عافیت او رزق څخه او نور دنیاوي نعمتونو کافر او مسلمان ټولو ته شامل دی . او د آخرت نعمتونه چي جنت او نوري ښي او ښادی دي مخصوص په مومنانو سره د ټولو امتو دي . سعدي :

ای کریمي که از خزانه غیب ✣ گبرو ترسا وظیفه خور داري

دوستان را تو کي کني محروم ✣ تو که با دشمنان نظر داري

یا په اعتبار دعظمت او د لوی والي د نعمت ده . ولهذا قیل یارحمن الدنیا والآخرة ویا رحیم الآخرة . معنا یي داده : اي ورکوونکي د لویو لویو نعمتو په دنیا او آخرت کي او یا د لویو نعمتو په آخرت کي ، ولي چي په دنیا کي لوی او کوچني دواړه نعمتونه سته . او د آخرت نعمتونه ټوله لوی دي . یعني نسبت وه ټولو نعمتو ته د دنیا . وان کان بین نعم الآخرة تفاوت عظیم لایخفی .

**پوښتنه** : رحمان که څه هم اسم صفت دی لکن وه غیر ته د خدای ﷻ رحمن ویل ناروا دي لکه لفظ د الله ، لکن دا قدر فرق لري چي اختصاص د لفظ د الله اختصاص وضعي دی ز او اختصاص د لفظ د

رحمن اختصاص استعمالي دی ، نو بيا څرنګه مورږ وه يوه سړي ته چې نوم يي عبدالرحمن وي رحمان وايو ، ايا دا ګناه نه ده ؟

**جواب** : عمومي کتابونه خو دا غسي وايي لکه سائل چې ووېل ، لکن د ردمختار صفحه ٦ کې وايي چې مخصوص په خدای پاك پورې يعنې چې پر بل چا يي اطلاق ناروا وي لفظ د (الرحمن) دی . يعنې چې معرفه په الف او لام سره وي او د منکر اطلاق پر غير د خدای ﷻ روادی . او الرحيم هم اسم صفت د خدای جل سلطانه دی . والفرق بينهما قد مرّ آنفاً .

د تصوفو په کتابو کې وايي چې که سړی الرحمن ۲۹۸ واره او الرحيم ۲۵۸ واره خپل ورد وګرځوي خدای پاك به يي رزق پراخه کړي .

په حديث شريف کې راغلي دي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايله چې کيلي او چابي د قرآن بسم الله الرحمن الرحيم ده .

روايت ابن عباس ﷺ کړی دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ووېله چې څه وخت چې يو ښوونکی وه متعلم هلك ته ووايي چې ووايه بسم الله الرحمن الرحيم ° هغه هلك هم بسم الله شريفه ووايي ، خدای پاك ليکي کاغذ د نجات د دوږخ څخه د هغه هلك پر نامه او د هغه هلك د مور او پلار په نامه او د معلم پر نامه . تفسير يعقوب چرخي صفحه ۷ .

**پوښتنه** : ايا د بسم الله الرحمن الرحيم ° په ويلو سره کبيره ګنهونه هم بخښل کېږي ؟

**جواب** : د فقهي شريفي او تفاسيرو کتابونه وايي چې کبيره ګنهونه په توبه پورې مربوط دی او دا هم وايي چې هر ښه عمل يا قول چې په احاديثو شريفه وو کې يي بخښنه د ګناهو راغلي وي ، مراد د هغو څخه

بخښنه د صغيره ګناهو ده ، اما د کبيره ګناهو د بخښي هم اميد سته .
ولهذا قيل : به بها نمي بخشد ✣ و به بهانه مي بخشد
او په توبه د اخلاص چي پر شرائطو د توبي مشتمله وي يعني پر ګناه کولو پښيماني او د آئنده دپاره قصد او عزم کول چي زه بيا دا ګناه نه کوم او د خداى جل سلطانه بخښنه د کړي ګناه غوښتل ، ګناه کبيره يقيناً بخښل کيږي . ولي چي خداى پاك په ډيرو ځايو د قرآن مبارك په صيغه د مبالغي ځان ته ( توَّاب ) ويلي دي . او بل دليل دادى چي کافر په هره نوعه د کفر چي کافر وي او د هر عمر چي وي ووايي په صدق او اخلاص سره لا اله الا الله محمدرسول الله . مسلمان هغه کافر خپل وروز بولي او لور يا خور په نکاح ورکوي او که مړ سي جنازي ته يي ورځي . او خداى جل سلطانه وده ته اکبر الکبائر ګناه چي کفر وو وربخښي ، نو دي کافر څه وکړه ؟ صرف د کفر څخه يي توبه د صدق وکښل . نو مسلمان چي په صدق سره توبه د ګناه څخه وکاږي نو څرنګه به ارحم الراحمين عفو د ګناه کبيري نه ورته کوي . ولهذا ورد في الحديث النبوي ص : التائب من الذنب کمن لا ذنب له .

اميان خلګ وايي خداى ﷻ دي زموږ توبه قبوله کړه ، او درويش وايي چي خداى ﷻ دي موږ ته توفيق د توبي راکړي .

**پوښتنــه** : که څوك د قرآنيت څخه د بسم الله منکر سي بايد په نيز د حنفيانو کافر سي ولي چي ددوى په نيز خو جزء مستقل د قرآن ده او سره ددي چي فقهاء د احنافو يي کافر نه بولي ؟

**جواب** : په نيز د فقهاوو منکر د هغه آيت کافر دى چي په اجماع سره قرآن وي . او بسم الله شريفه اتفاقي قرآن نه ده ، ولي امام مالك رحمه الله يي قرآن

نه بولي بلکه ذکر یې بولي .

**ســوال** : جُنُب ته او حائضي ښځي يا نُفسـاء تـه ويـل د بسـم الله الـرحمن الرحيم په نيز د حنفيـانو رح روادي او كـه نـه ، سره ددي چي دغه مذکور كسان د قرآئت د قرآن شرعاً منع دي .

**جواب** : دغه كسـان تـلاوت د بسم الله په نيت د تبرك كـولای سي ، نـه پـه نيت د تلاوت القرآن . خزینه صفحه ۸ .

**پوښتنه** : دغه کسانو ته ماسوا د قرآن څخه د نورو اذکارو ويـل روا دي ، لکه لااله الاالله ، سبحان الله وبحمده او نور ورته اذکار ؟

**جـواب** : پـه اتفـاق د ټولو مذاهبو روادي . دغـه رنګـه دوی وچاتـه السـلام عليكم او يا وچاته په وعليكم السـلام جواب ورکـولای سي . او دغـه رنګـه الحمدلله رب العالمين په قصد د شکر ويلای سي نه پـه قصـد د تـلاوت القرآن . خزينه . صفحه ۸۴ .

**فائده** : په اسرار مخزونه صفحه ۸۵ کي وايي : كه يو سړی وه يـوه ظـالم سړي ته ورځي او يا يو جابر حاكم ته ، نو پنځوس ۵۰ واره دي بسـم الله تر پايه پوري قبل الدخول ووايي . په برکت ددي آيت به هغه ظالم يا جابر پر ده مهربانه سي او دده هيبت به پر هغه پرېوزي او د شر څخه د هغـه بـه يې خدای پاك وساتي انشاء الله تعالی .

**فائده** : كه سړی د يو پيراني يا بيهوش په غوږ کي څلوېښت واره بسـم الله الرحمن الرحيم ووايي ، نو پيراني به سړی پرېږدي . او بيهوشـه بـه پـه هوش کي راسي .

**فائــده** : کـه څوك بســم الله شریفه د بیدیدو په وخت کـي شل ۲۰ واره ووایي ، په دغه شپه کـي د شیطان ، پیري ، غله او د نابیره مرګ او هر آفت څخه به په امان وي .

**فائده** : که څوك بسم الله شریف ډیره هره ورځ وایي رزق به یې خدای ﷻ پراخ کړي او په آسانه توګه به رزه ور رسیږي .

**فائده** : که څوك د یکشنبي په ورځ د لمر راختو په وخت کي مخ پر قبله کښیني او بسم الله سره په عـدد د رسولانـو ۳۱۳ واره ووایي او سل واره وروسته درود شریف هم ووایـي خدای جـل سـلطانه بـه یـو نـا بیـره رزق ور کړي .

**فائده** : او کـه څوك بسـم الله شریفه په حسـاب د ابجد ۷۸۶ واره پـه ښه اخلاص او حسن عقیده د هر حاجت دپاره چي په شرعه شریفه کي روا وي ووایي ، خدای جلت قدرته به یې هغه حاجت ور پوره کړي . او د ظالمـانو او دښمنانو څخه که بیریږي هغه به خدای پاك څني دفع کړي .

**فائده** : دپاره د تجارت د رباح او د ډیري ګټي دپاره که یې څوك پـه عـدد مذکور سره یې ووایي تجارت به یې رائح او رابح سي .

**فائده** : که یو سړی د بل چا د راجلبولو دپاره په عـدد مذکور سره ووایي هغه سړی به ورته حاضر سي . وهذه الفوائد کلها فی شرح القدوري لهذا العبد العاصي ناقلاً من خ .

**فائده** : په حدیث شریف کي راغلي دي چي آنحضرت ﷺ وایي چي نـه ردیږي هغه خواست چي په ابتداء کي د هغه بسم الله شریفه وویل سي .

د تفسیر کبیر په اول کي د ابوهریره ﷺ په روایت داسې راغلي دي:
چي رسول الله ﷺ ده ته وویله : یا ابا هریره چي ته اودس تازه کوي ، نو ته بسم الله الرحمن الرحیم ووایه ، یعني دمخه تر اوداسه ، نو په تحقیق سره ستا نیکی لیکونکي ملکي به استراحت ونه کړي . ستا د نیکیو د لیکلو څخه تر هغو چي ته د اودس څخه فارغه نسي . او چي ته د جماع دپاره ماینې ته ورځي نو بسم الله شریفه ووایه یعني د پرتوګاښ تر خلاصیدو دمخه ، ولي حفظه ستا یعني کراما کاتبین ستا به ستا دپاره نیکی نوشته کوي تر څو چي ته غسل د جنابت کوي .

**درویش** محمد عبیدالله ایوبي قندهاري وایي : چي په فضائلو د بسم الله الرحمن الرحیم بي شماره حدیثونه او د امامانو د دین قولونه راغلي دي . که درویش اکثر دغو خواصو په شرح کي د قدوري جلد اول کي هم راوړي دي . لکن د ا تولي فائدي د هغه چا په برخه کیږي چي حسن عقیده او د زړه اخلاص او پر اقوالو د آنحضرت بي کلك او د شك څخه خلاص یقین وي . که څوك مزید تفصیل غواړي نو تفسیر کبیر د امام رازي رحمه الله او روح البیان او اسرار ومخزونه او یعقوب چرخي تفسیر او نور کتابونه د احادیثو مبارکه وو او د تفاسیرو دي مطالعه کړي .
ومن الله التوفیق .

اوس د تفسیر د سوره فاتحه پر لور . لك الحمد وبك نستعین

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ①

توله ثناء او صفت خدای پاک لره دي چي رب او تربيه کوونکی او ساتونکی د تولو مخلوقاتو دی .

**پوه سه !** چي دلته دري لفظ دي چي په هغو کي د علماوو رح قديماً و حديثاً اختلاف دی ، هغه دري لفظه : حمد ، شکر او مدح دي .

مختاره داده لکه سيدسند ﷫ چي وايي چي حمد صفت کول دي د چا په ژبه سره پر يو ښه صفت چي هغه صفت د سړي په اختيار په ده موجود وي لکه چي سړی ووايي چي خدای پاک عالم دی ، قادر دی .

او شکر هم په اختياري صفت پوري خاص دی لکن په مقابل کي د نعمت ، نو که په زړه سره وي لکه د چا سره په مقابل کي د نعمت محبت قلبي کول ، يا په ژبه وي لکه په مقابل کي د نعمت د منعم احسان بيانول او يا په لاس او پښو د منعم خدمت کول .

نو حاصل دادی چي حمد په اعتبار د مورد خاص دی يعني مورد يې يوازي ژبه ده او اعتبار د متعلق عام . که نعمت وي او که نعمت نه وي . او شکر په اعتبار د مورد عام دی يعني که زړه وي او که ژبه او که اعضاء وي . او په اعتبار د متعلق خاص دی : يعني متعلق يې يوازي نعمت دی .

فبينهما عموم وخصوص من وجه فتفكر فى الأمثلة الثلاثة التى يقتضيها العموم والخصوص من وجهٍ . والمدح يعم الاختياري وغيره كما فى قولهم مدحتُ اللؤلؤ على صفائها.

**پوه سه !** چي علامه تفتازاني رحمه الله په مطول کي وايي چي الف و لام د تعريف په الحمد کي دپاره د استغراق دي په نيز د اهل سنتو يعني كل حمد سواء كان من ايّ حامد. خدای پاك لره دي . او لام دپاره د جنس دی په نيز د معتزله وو .

درويش وايي چي دا اختلاف پر يو تحقيق نحوي بناء دی ، ورنه په معنا کي فرق راوړي ، ولي چي هر فرد د حمد خاص په خدای پاك پوري سي ، نو چونكه ماهيت د شي بيله ضمن د فرد په خارج كي نه پيدا كيږي ، نو ماهيت د حمد هم خاص په خدای ﷻ پوري دی . او چي ماهيت د حمد خاص په خدای پاك پوري سي ، نو چونكه دغه ماهيت په ضمن د هر فرد سته نو هر فرد هم خاص په خدای ﷻ پوري دی . **هذا هو المشهور وقد ذهب القاضی ثناءالله رحمه الله فی تفسیره المظهری الی احد هذین الاحتمالین وقال صاحب تفسیر روح البیان الی احتمال آخر وقدّمه علی الاحتمالین المذکورین ، وقال لامُه للعهد ای الحمد الكامل وهو حمدالله لله کما فی مواضع عدیدة من القرآن الكريم . او حمدالرسل او حمد کمل الأولیاء.**

درويش وايي: چي ظاهر داده چي مراد د مصنف مذکور رحمه الله د عهد څخه عهد خارجي دی په قرينه د مُقام .

**ولهذا إختلف العلماء فی ان قضية الحمدلله من أیِّ نوعٍ من القضایای المعتبرة فی المنطق .**

درويش وايي چي تعيين د قضيه كه په لام تعريف پوري مربوط دي يعني كه لام د استغراق سي نو قضيه موجبه كليه ده . او كه لام د جنس

سي نو قضيه مذكوره طبعيه ده. او كه لام د عهد خارجي سي نو قضيه شخصيه ده. او كه احتمال د لام عهدذهني وي نو قضيه مذكوره مهمله ده متاخرينو ده چي په قوت كي د جزئيت ده.

**سوال** : ځرنګه اختصاص د هرحمد او يا د ماهيت د حمد په خداى پاك پوري صحيح دى او سره ددي چي سړى ووايي زيد عالم دى . يا عمرو سخي دى الى غيرذالك . نو دا ټوله خو حمد دى او د زيد او عمرو وغيرهما دى .

**جواب** : دغه محامد هم په حقيقت كي راجع وه خداى جل سلطانه ته دى ولي معطى د علم او د سخاوت وغيرهما هم خداى دى . **قال الله تعالى : والله خلقكم وما تعملون** ⁰

**پوښتنه** :بعضي امامان وايي چي الحمد خو مبتداء ده او وصف دى او الله اسم ذات خبريه دى نو حمل د ذات پر صرف وصف ځرنګه روا دى ؟

**جواب** : دوى نه پوهيږي چي الله خو خبر نه دى بلكه متعلق د خبر دى . اصل خبر خو ثابت دى چي متعلق دى حرف جر دى. او ثبوت خو عام دى پر اعيان او صفات پر دواړو حمل كيږي . البته داسي سوال معقول دى چي لفظ د الله شرف ذاتي لري او حمد شرف وصفي لري ، نو بايد داسي وويل سي لله الحمد . ددي سوال جواب علامه تفتازاني رحمه الله وركړى دى چي شرف وصفي چي د مقام سره برابر وي پر شرف ذاتي ترجيح لري . چونكه دامقام مقام د حمد دى ، نو ددي كبله الحمد دمخه كړه سو . **لأ نهم قالوا البلاغة مطابقة المقال لمقتضى الحال .**

**پوښتنه**: بعض علماء وايي چې په الحمدلله کې دريم تعميمه سته او تخصيص سته. ايا دا خبره تر کومه ځايه پورې صحت لري او هغه درې ۳ تعميمه څه شي دي او تخصيص يې څه دی؟

**جواب**: هو، دا خبره صحيح ده او ډيره په زړه پورې ده.

اول تعميم د حمد دی چې لام استغراق يا جنس څخه فهميږي.

او بل تعميم د حامد دی يعني د هر حامد د خوا چې صادر سي، که خدای پاك وي او که انس او که ملائکه او جن وي. دا تعميم د ترك څخه د فاعل مفهوم سو يعني حمدتُ يا احمد مثلاً يې نه ووايه.

دريم تعميم د زماني دی چې اسميه جملې څخه چې مقيد په زماني پورې نه ده وفهميدی.

او تخصيص د لام جاره څخه وفهميدی. وفيه نظر وله جوابٌ فتدبر.

**پوه سه!** چې جمله د الحمدلله د جوامع الكلم څخه يعني چې سرې تفصيلاً په زرو اوصاف د خدای جل شانه بيان کړی. جمله د الحمدلله ټولو ته شامله ده او د ټولو ثواب پکښې درج دی.

پوه سه! چې جمله دحمد پر حيات او علم او قدرت او اراده د خدای ﷻ دلالت کوي لأن المستحق للحمد لايكون الا من هو موصوفٌ بالصفات الاربعة المذكورة.

**فائده**: په الحمدلله کې خدای جل شانه استحقاق ذاتي د حمد ثابت کړی او رب العالمين سره استحقاق فعلي خان ته ثابت کړی. نو دا ماده د اجتماع د حمد او د شکر ده. او شکر د نعمت لازم دی او خدای ﷻ وعده د مزيد د هغه نعمت کړې ده چې شکر پر وويل سي. قال عزّ من

قائلٍ : ولئن شکرتم لأزیدنکم . اما د عُهدي د شکر خان ایستل اسانه کار نه دی . قال الله جل شأنه : وقلیلٌ من عبادی الشکور°
سعدي شیرازي رحمه الله وایي :

عطائیست هر موی از و بر تنم ❊ چگونه بهر موی شکري کنم

**پوه سه !** چه اصل الاصول د نعمتو د دنیا او آخرت ایمان دی چي د دي نعمت سره ابدي دوزخ حرام دی . نو باید مسلمان د نعمت د اسلام په هر آن شکر ووایي او هر وخت په ویلو سره د لااله الاالله محمد رسول الله سره ایمان تازه کړي . او دخدای ﷻ څخه خاتمه د ژوند پر ایمان وغواړي .
رَبِّ الْعَالَمِیْنَ° هغه خدای چي تربیه کوونکی او ساتونکی د ټولو عالمیانو دی .

**پوه سه !** چي رب العالمین نعت نحوي دی د الله د ا رب اما صفت مشبه او یا په معنا د تربیه مصدر دی .
پر اول تقدیر یي حمل حقیقتاً دی او پر دوهم تقدیر یي جمل مُبالغتاً دی . مثل زیدعدلٌ . او د تربیت معنا رسوَل دي دي د شي وه کمال نوعي ته تدریجاً لکه چي حیوانات چي د پیدا ئښته وروسته وه کمال نوعي ته په بدن تدریجاً خدای پاك رسوي .
ددي آیت مبارك څخه دا معلومه سوه چي عالمیان لکه چي په ابتداء کي دخدای ﷻ وه ایجاد ته محتاجه دي په بقاء کي هم ورته محتاجه دي . قاله المظهري والبیضاوي . او عالمین جمع ده د عالم . عالم ټوله ماسوی د خدای ﷻ وایي ، په دي سبب چي علامه دی پر وجود د قادر صانع رازق جل سلطانه لکه خاتم او طابع .

قال السعدي قدس سره :

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ✣ هرورقیست دفتري معرفت کردگار

او جمع راوړل یعني عالمین په اعتبار د ملاحظه د اجناسو د عالم ده . لکه عالم السموات ، عالم الارضین ، عالم الحیوان ، عالم النبات ، عالم الجمادات ، عالم الملا ئکة ، عالم الجن الی غیر ذالك .

ما داسي وویل چي په ملاحظه د اجناسو ، ولي چي اشخاصو ته په عرف کي عالم نه وایي . نو زید عالم نه دی بلکه فرد د عالم دی چي انسان دی .

**پوه سه !** چي مراد د جنس څخه منطقي نه دی . بلکه جنس اصولي دی چي معنا یي داده : کلی مقول علی کثیرین مختلفین بالأغراض فالإنسان جنسٌ عند الأصولیین لا عند المنطقین . لانهم یعرفون الجنس کليٌ مقولٌ علی کثیرین مختلفین بالحقائق . الخ

**سوال** : په علم صرف کي وایي چي جمع په واو او نون یا یاء او نون په ذوی العقول پوري خاصه ده . او اجناس د عالم خو ټوله ذوی العقول نه دي ؟

**جواب** : هو ، لکن په دي ځای کي تغلیب ذوی العقول ته چي انس او ملائکه او جن دي په اعتبار د شرافت ددوی ورکړی ده پر غیر د ذوی العقولو باندي . او بعض مفسران رح وایي چي عالم نوم خاص د ذوی العقول مذکوره وو دی او شموله وه نورو ته استباعاً دی .

درویش وایي چي دا تفسیر دلغتو د کتابو سره برابر نه دی .

**فائده** : احاطه علمي پر تولـه عالم شان دی د خالق القوي والقدر . حتی هیڅ نبي او هیڅ ملکه وغیره احاطه علمي پر تولـو مخلوقـاتو د عـالم نـه لري . قال الله تعالی : ومايعلم جنود ربك إلاهو

وهب بن منبهه ﷫ وايي چي : خدای پاك اتلس زره عـالمه پیـدا كـړي دي الدنيا عالم منها . او آباتي د مځکي نسبت وه بنـارو او مځکـو تـه لکـه يـوه خيمـه چي پـه صـحراء کـي ولاړه وي . روح البيـان پـه بعـض تفصـيل سـره ددغو عالميانو بعضي بعض ددوی ذکر کړي دي . إن شئت فراجع إليه .

# الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝۲

معنا ددي دوو مبارکو نومانو دخدای پاک د بسم الله په تفسیر کي تیره سوه .

---

قاضي ثناء الله ﷫ پـه تفسـير مظهرِي کي وايـي چـي راوړل ددي دوو نومانو په الحمدلله کي دلیل ددي دی چي بسم الله جزء د الحمدلله نـه ده ولـي تکـرار لازمـیږي . لکـن قاضـي بيضـاوي شـافعي ﷫ وه دي تـه ښـه معقـول جـواب ورکـړی دی او مصـنف د روح البيـان کـه څـه هـم حنفـي دی مگر د انصاف په منظور يي دغه دليل ته جواب ورکړی .

**پوه سه** ! دخدای جل سلطانه د رحمت انتهاء چاته نـه ده معلومـه . بطـور مُشت نمونه خروار . دا دوي قصي واوره :

د ذوی النون المصري﷫ څخه روايت دی . چـه يـوه ورځ زه مضـطرب الحال وم ، نو د رود نيل وه غاړي ته ووتم ، کـه څـه گـورم يـو غټ لړم د نيل وه خواته په منډه روان دی ، نو زه په پسي سوم چي دا لـړم څـه کـوي چـي د رود نيـل پـه خـوا پـه خغاسـته روان دی . لـړم چـي د رود نيـل غـاړي تـه

ورسیدی ، یوه غټه چنګښه د رود په غاړه کې ورته ولاړه وه ، لږم یې پر شا سپور شو ، نو زه هم په کښتی کې پسې سپور سوم چې ددې غریب حال تحقیق خان ته معلوم کړم . چنګوښې لږم هغه بلې غاړې ته د نیل ورساوه او زه هم په کښتی کې . پر هغه بله غاړه یو ځوان په خواره خوب بیده دی او د بل طرف څخه یو غټ مار پر را روان وو ، لږم چې ور ورسیدی د مار سره په جنګ سو او یو پر بل یې د زهرو ګزارونه سره کول آخر الامر دواړه مړه سوه او ځوان هغه ډول بیده وو . درویش وایي چې دی عظیم رحم ته د خدای ﷻ وګوره چې په یوه دښمن بل دښمن د ځوانه څخه دفع کوي .

او په عجائب المخلوقات کې یې راوړي دي چې د کارګه بچی چې د هګی څخه راووزي ، سرې غوښې وي او مور یې ځندي وتښتي او غماشي پر راجمع سي او دا بچي هغه غوماشي خوري تر هغه وخته پوري دا رزق غیبي روان وي ځو د ولد الغراب تولـه بدن په بونګو پټ سي وروسته یې مور ورته راسي او دواړه سره په هواسي .

**پوښتنه** : څه سبب دی چې مصنفین د کتابو او رسالو په اول کې تر بسم الله وروسته حمد د خدای ﷻ وایي په رنګارنګ جملو او عبارتو سره ؟

**جـواب** : په حدیث شریف کې چې روایت یې ترمذي او امام نواوي او نورمحمد په حاشیه د عبدالغفور کې کړی دی داسې راغلي دي چې هر هغه کار چې درلودونکی د شرافت وي او شروع د هغه کار په حمد د خدای ﷻ ونسي هغه کار بد ابتر یعني بي برکته به وي او شک نسته چې تصنیف ښه کار دی .

**سوال** : په ډیرو کتابو کي حمد دخدای ﷻ نه لیدل کیږي حتی په دیني کتابو کي لکه بخاري شریف ، ترمذي شریف او کافیه وغیره کي ، نو دغه مصنفان ددغه صحیح حدیث څخه څرنګه مخالفت کوي ؟

**جواب** : ماموربه په حدیث شریف کي خو ابتداء د کار په حمد د خدای ﷻ عام تر دي چي لیکنه هم ورسره وي او یا صرف په خوله وي ، نو دغه مصنفانو د خولي پر حمد ویلو کفایت کړی دی ، کتابت یي نه دی ورسره کړی ، نو مخالفت د حدیث مذکور پر دوی نه دی لازم . د شرح جامي دریم مخ مطالعه کړه . او ددغه سوال نور جوابونه هم سته چي د بخاري شریف د اول مخ په حاشیه کي راغلي دي . او درویش ډیر جوابونه د سوال مذکور په فیض الصمد کي چي حاشیه د درویش پر نورمحمد د عبدالغفور ده هلته یي مطالعه کړه .

**پوه سه !** چي د بسم الله الرحمن الرحیم په بیان کي د الرحمن الرحیم بیان تیر سو .

# مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ﴿٣﴾

**پوه سه !** چي مالِكِ او مَلِكِ دواړه قرائت متواتره دي ، نو ترجيح وه يوه ته پر بـل باندي صحيح نه ده . كذا في التفسير المظهري . ثم معناهما واحد وهوالرب . لكن حق داده چي مَالِكِ د مِلك څخه بكسر الميم څخه مشتق دى چي معنا يي په فارسي خاوند ده . كما يقال مالِكُ الدار ، ورب الدار يعني خاوند د سراى . والمُلك مشتق د مُلك څخه بضم الميم دى چي د مَلِك معنا سلطان او بادشاه دى . دا دواړه صفت د خداى پاك دي .او اضافت د مالك وه يوم الدين ته اضافت دى وه ظرف ته يعني ظرف په ځاى كي د مفعول دروليى دى . نو اصل داسي وو : مالِكُ الامور في يوم الدين . او مراد د يوم الدين څخه په اتفاق ورځ د قيامت ده .

ځوك د دين معنا په جزاء سره كوي ، كما في المثل المشهور : كما تُدِينُ تُدَانُ اى كما تفعل تُجَازي . قال المظهري وهو حديث مرفوع ايضاً رواه ابن عدى في الكامل لكن سنده ضعيف .

او مجاهد رحمه الله وايي چي معنا د يوم الدين ، يوم الحساب ده وهو صحيح ايضاً ، ولـي پـه دي ورځ حساب د خلكو سره كيږي . او بعض مفسران يي په معنا د يوم القهر بولي . او بعض وايي چي دين په معنا د طاعت دى . ځوك وايي په معنا د اسلام دى. وكل ذالك صحيحٌ .

**پوه سه !** چي مالك يا مَلِك اوس په دنيا كي هم خداى پاك دى ، نو د يوم القِيامه د تخصيص څه معنا ده ؟

**جواب** : چي په دي دنيا کي مَلك او مالِك پر غير د خداى ﷻ هم اطلاق روا دی کـه څه هم مجازاً دی . او په ورځ کي د قيامت يي مجازي اطلاق پرغير د خداى ﷻ هم قطع كيږي . قال الله تعالى : لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۚ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ٥

**پوه سه !** يوم پـه عُرف كي د حكماوو او پـه عُرف عـام كي وه د راختو څخه د لمر بيا تر لويدو پوري ده . او په عُرف د شرع شريفي كي د راختو څخه د صُبح صادق بيا تر لويدو پوري د لمر ده . لكن مراد په آيت كريمه كي څني مُطلق وخت دی . لعدم الشمس فی يوم القيامة . روح .

**فائده** : اګرچه قاضي ثناء الله په تفسير مظهري كي وايي چي مالِك او مَلِك يو پر بل ترجيح نه لري لكن صاحب د روح البيان او معاني ترجيح د مالِك پر مَلِك باندي وايي ، پـه سبب د هغـه حديث صحيح چي عليه السلام وايي : من قرأ القرآن كُتب له بكل حرفٍ عشرَ حَسَنَاتٍ و مُحيت عنه عشر سَيِّئَاتٍ و رُفِعَتْ له عشر درجاتٍ. اوشك نسته چي مالـك پر ملـك باندي يو حرف بالا دی . او بل دا چي قرائت د حرمينو شريفينو هم مالـك دی . او بعض قراء چي د ملك قرائت راجح بولي هغـه وايي چي ملك ابلغ دی تر مالك ، ولي چي په مملكت كي ملك او سلطان يو سړی وي . او مالكان د شيانو په زرو او لكو وي . لكن درويش وايي چي په دليـل عقلي مقابله د حديث نبوي ﷺ مذكور نسي كيداى . **والله أعلم بالصواب**.

**فائده سنية** : حكمت د الله جل سلطانه په تاخير د جزاء الى يوم القيامه دادی چي چاره نسته د فرق څخه پـه مـابين كي د مُحسن او د مُسيئ . او د مطيع د فرمان الهي او د عاصي د امر الهي او د كافر او د مومن ليظهر

العدل الإلهي. او دا فرق په دي دنيا كي چي دارالامتحان الاختياري ده امكان پذير نه دی ، ولي په دي دنيا كه يو كافر په سبب د كفر يا مُسيئ په سبب د اسائت او عاصي په سبب د عصيان په اور كي خدای پاك واچوي او مقابل ددوی په جنت كي ، نو ايمان او احسان او اطاعت ضروري او بديهي گرځي او سلسله د امتحان الهي قطع گرځي ، فلابد لذالك المذكور من دارٍ اخرى ، چي هغه يوم القيامه ده ، يعني د تكليف الهي دوره پای ته ورسيږي او د امتحان الهي نور ځای پاته نسي . نو به چاته عُذر نه وي پاته ، نو هر چاته په اندازه د اعمال حسنه وو او سيئه او ايمان و كفر قادر متعال جزاء وركړي . كماقال الله تعالى : ليجزى الذين اساءوا بماعملوا ويجزى الذين أحسنوا بالحسنى ° وقال أيضا : أم نجعل الذين آمنوا وعملوالصالحات كالمفسدين فى الارض ام نجعل المتقين كالفجار ° تفسير كبير جلداول مع زيادةٍ من العاصي .

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴿٤﴾

خاص خدایه ستا عبادت کوو او خاص ده تا څخه کومک او توفیق او یارِي غواړو په ټولو مهماتو کې خصوصاً په امورو کې د عبادت ستا .

درویش وایي : چې مصنف د تفسیر خازن محی السنه رحمه الله په خپل تفسیر کې وایي : والعبادة اقصى غاية التذلل من العبد ونهاية التعظيم للرب سبحانه وتعالى لأنه العظيم المستحق للعبادة ولاتستعمل العبادة الا فى الخضوع لله عزوجل لأنه معطى اعظم النعم . وهى ايجاد العبد من العدم الى الوجود ثم هداه الى دنيه الى غيرذالك فكان العبد بالخضوع والتذلل له تعالى آه .

درویش وایي چې بعض علماء مخالف چې وایي که یو سړی د بل لاس مچ کړي یا یې پښې ور مچ کړي ، دا هم عبادت دی او دا مشرك دی
غلطه خبره ده ، ولې د عبادت په معنا کې تعظیم الرب ماخوذ دی
كما سمعتَ من كلام الخازن رحمه الله وایضاً ده رحمه الله وویل ولاتستعمل الخ ،
نو څرنګه لاسونه او پښې د بنده مچول عبادت دی . وقال المظهري فى تفسيره والعبادة أقصى الخضوع والتذلل. آه درویش چې اقصى الخضوع والتذلل هو وضع العضو الشريف وهوالوجه على التراب كما كان يفعله المشركون لآلتهم . فمن أين تقبيل اليد والرِّجل من اقصى الخضوع والتذلل .

**پوښتنه** : مخالفین وایي چې د لاس او د پښو په مچولو کې تعظیم د غیر الله دی او تعظیم د غیرالله شرك دی ؟

**جواب** : دا حکم على الاطلاق غلط دی ، ولې چې صحابه کرامو رضی الله عنهم ده رسول کریم ﷺ تعظیم په اعلی درجه کې کاوه حتی په حدیث صحیح کې راغلي دي انهم کانوا لایحدون النظر الیه ﷺ وفی حدیث واقعة الحدیبیة الطویل انه علیه السلام لایتخم ولایبزق الا وقع فی کف رجلٍ من الصحابة ﷺ ویدلك به وجهه . وهذا غایة من التعظیم . وقدوقع فی حدیث طویل آخر : چې سعد ﷺ چې پر خره سپور راغلی ، علیه السلام وه صحابه کرامو ﷺ ته وویل : قوموا الی سیدکم . او دا ولاړه وه سعد ﷺ ته دپاره د تعظیم دده وه . وقدورد فی حدیث الترمذي قال علیه الصلوة والسلام : من لم یرحم صغیرنا ولم یوقر کبیرنا ولم یجل عالمینا فلیس منا . وتوقیر الکبیر و تبجیل العلماء لیس الا لتعظیمهم . وایضاً الأولاد مامورون شرعاً بتعظیم الوالدین ، والمتعلمین بتعظیم الأساتذة ، فکیف یکون التعظیم على الإطلاق شرکاً ، بل الشرك هو التعظیم على طریق العبادة و تفسیر العبادة قد مَرّ. او داسې تعظیم د شان ښځه د مومن لغیرالله نه دی . وقد صح چې امام مسلم ﷺ د امام بخاري ﷺ وه زیارت او ملاقات ته راغلی . او امام بخاري ﷺ یې په مابین العینین کې مچ کړی او ورته وې ویل . دَعني اُقبِّلُ رجلیك. نو دا تعظیم د بخاري ﷺ ته وو .

**فائده** : د الحمدلله ښځه بیا تر دې ځایه پورې ابتدائي حالات د عارف بیان سول چې حمد د خدای ﷻ او صفات کریمه د خدای جل سلطانه وه . اوس ګویا په دغو صفاتو سره خدای ﷻ ته حاضر سو او د بنده د خطاب په لهجه وایې : یامَن هوموصوف بالصفات المذکورة نَخُصُّكَ بالعبادة و

لانعبد غیرك .

**فائـــده** : د عــادت سره د عربو سم دوی په خپلو خبرو کي تفنن یعني تجدید کوي حتی چي د غیبت څخه وه خطاب ته به یي عبارت نوی کوی، وهکذا من التکلم الی الخطاب والغیبة ، ومن الخطاب إلی الغیبة والتکلم. نو دا شپږ وجهي د تفنن فی العبـارت چي د ټولـو مثالونـه په مطول او مختصر کي مذکور دي .

ماقال صاحب المدارك وصاحب المظهري رحمهما الله . نو ایـاك نعبـد آه چي تـر غیبـت وروسـته د مـتکلم صیغه راغلـه . د قـسـمه څخـه د تفنن فـی العبارة ده .

**فائده** : تقدیم د مفعول چي ایاك دی پر عامـل د هغـه چي نعبداو نستعین دی دپاره د تعظیم د مدلول د ایاك چي ذات دپاك الهي دی . او بل دپاره د حصر لأن تقدیم ماحقه التأخیر یفید الحصر کما فی علم المعاني . قال ابن عباس في تفسیره معناه نعبدك ولانعبدغیرك.

**پوښتنه** : قـاري د الحمد لله آه خو یو سړی وي ،نو ضمیر د مـتکلم مع الغیر وه چاته راجع دی ؟

**جـواب** : په روح البیـان کي وایي چي ضمیر د نعبد و نسـتعین راجع وه قاري او هغه ملکي چي دده سره دي چي ( حفظـه ) یي بولي او حاضرینو ته د جماعت په لمانځه کي ، نو په دي کي اشعار دی پر التزام د لمانځه د جماعت چي سُنت موکـد بلکه واجب دی . کما فـی فـتح القـدیر . او یا ضـمیر راجع وه قـاري او ټولـو مومنـانو تـه دی ، نـو فـائـده ددوی داده چي قاري ګویا خپل عبادت او خپل حاجت غوښتنه درج کړه د نـورو مومنـانو

په عبادت کي . او خپله حاجت غوښتنه يي درج کړه د نورو په حاجت غوښتنکو په حاجت غوښتنو کي ، نو د کريم بادار په دربار کي به يا دغه ټوله اجتماعي عبادات او ټولي اجتماعي دعاګاني به يا رديږي او يا به ټوله قبليږي . ولي سخي سړي ته دوه يا دري سائلان يو ځاى ودريږي او شي لله غني وغواړي ، نو دا سړى بيا ګردو ته جواب ورکوي . او يا به هر يوه ته يو څه په لاس کي ور ايږدي . نو خداى جل سلطانه چي کريم مطلق دى اولى او اخرى په دغسي معامله کي دى . او عبادت چي انفرادي وي يا سوال د خداى جل شانه څخه په انفرادي توګه وي ، نو حال د عابد او حال د سائل خداى جل سلطانه ګوري ، يعني وه اخلاص ته د عابد او ښه عقيدي ته د سائل . نو که دده عبادت لائق د قبليدو وو قبول به يي کړي او که رد وو رد به يي کړي ، او دغه رنګه درخواست د سائل به يا کريم بادار قبول کړي که پر شرائطو د قبول برابر وو او يا به يي نه کړي قبول .

**افسوس** بعضي کسان چي ځانو ته موحدين وايي لکه وهابيان وغيرهم . دوى وايي چي دعا پس له سنتو په اجتماعي ډول بدعت ده . ددوى عوام بدعت ته د حرام په سترګه ګوري . ولي د بدعت ترجمه قصداً دوى نه ورته کوي ترڅو چي عوام ددوى هغو علماوو ته چي تر سنتو وروسته دعاء په اجتماعي ډول کوي په نظر دکراهت او د عداوت وګوري او د هغو وه نصيحت او خبروته غوږ ونه نيسي .

ګرانو لوستونکو! دوى وه خپلو عوامو ته وايي چي په اجتماعي ډول دعاء وروسته تر سنتو د عليه السلام څخه نه دي ثابت سوي . نو که دعاء به کار وايي ، نو عليه السلام به کولاى .

درويش وايي که دوى د اجتماعي دعاء څخه د عليه السلام مطلقًا منکر وي نو دا ددوى غټه غلطي ده ولي په استسقاء کي عليه السلام

اجتمـاعي دعـاء كـري ده . رواه البخـاري ومسـلم وغيرهمـا . او كـه هغـه اجتماعي دعاء دوى مني او دوى مخصوص بعدالسنن دعاء څخه منكر وي ، نو بيا بدعت ولي ورته وايي ، ځكه د بدعت تولو علماوو رج دا معنا كړي ده چي په شريعت نبوي ﷺ كي هيڅ اصل نه لري . اجتماعي دعاء خو په شريعت كي اصل لري لكه په استسقاء چي دوى هم مني . او تر فرضي لمنځو وروسته چي عليه السلام دعاء نه كوله په اجتماعي ډول د هغه جواب دادى چي ده عليه السلام به بعض كارونه خوښ وه لكن نه به يي كوله كراهةً أن يتخذوا العمل المذكور سنةً زه وه دوى ته وايم : چي عليـه السـلام په اجتماعي توګه ولي تراويح تر درو شپو بالانه دي كړي او خلك يعني صحابه ﷺ يي ده اجتماعي نفلو يعني تراويحو څخه پس له درو شپو منع كړه او مونږ يي اوس په اجتماعي ډول هميشه كوو فما هو جوابكم؟ فهو جوابنا.

او بله خبره داده چي آيت مبارك د دعاء په باره كي مطلق راغلى دى . أدعوني أستجب لكم. يعني په اجتماع او انفراد نه دى مقيد . والقانون ان المطلق يجرى على اطلاقه مالم يمنع عنه مانع . والمانع الشرعي غير موجود كما سمعت آنفا.

درويش وايي چي د اجتماعي دعاء كولو په هر وخت كي ما په تفصيل په خپله رساله سره د دلائلو ذكر كړى دى چي هغه رساله كه څه هم يې عليحده توګه نه ده چاپ سوي لكن د خيالي پر لوى بياض چاپ سوي ده هغه چاپ خيالي په كتب فروشانو كي د كوټيي د ښار دستياب كړه . انشاء الله تعالى اطمنان به دي حاصل سي .

**فائده** : امام حجة الاسلام په خپل کتاب اربعين کي عبادات لس ښوولي دي يعني دغه عبادات وه غير ته د رب جل سلطانه نه دي روا . الصلوة ، والزكوة ، والصوم ، والحج ، وتلاوة القرآن ، وذكرالله في كل حالٍ ، وطلب الحلال ، والقيام بحقوق المسلمين ، وحقوق الصحبة ، والأمربالمعروف والنهي عن المنكر ، و إتباع السنة النبوية .

**پوه سه** ! چي متابعت د سنت نبويه صلى الله عليه وسلم د ټولو نيکو کارو کيلي ده . او علامت د محبت د خداى جل ذکره دي . قال الله تعالى: (قل إن كنتم تحبون الله فاتبعوني يحببكم الله) قال المولى الجامي رحمه الله الباري : يا نبي الله السلام عليك إنماالفوز والفلاح لديك.

گر نرفتم طريق سنت تو ÷ هستم از عاصيان امت تو

مانده ام زير بار عصيان پست ÷ افتم از پای اگر نگيري دست

درويش وايي : وهابيه او هم مسلك ددوی به وايي چي دا نداء وه غائب ته او دا کومك غوښتنه د اهل قبور څخه ناروا ده .

**شهانه فائده** : د مومن کامل بايد داعقيده وي چي معطي د ټولو نعمتو خداى عزوجل دى او شافي د ټولو امراضو هم دى دى جل سلطانه او ښوونکى د ټولو علمو هم دى دى و بس . ددغه عقيدي سره سره که څوك دپاره د قرض يا صدقي د يو غني سري کومك وغواړي د اياك نستعين سره منافات نه لري . ولي چي دده دعقيدي پر موافق دا يو سبب ظاهري او مجازي دى .

او دغه رنګه که مومن ته يو مرض پيښ سي نو يو طبيب ته او دواء

ظاهري ته رجوع وکړي او یا وه دواء باطني ته چي استشفاء بالقرآن د رجوع وکړي ، دا هم د ایاك نستعین څخه رجوع نه ده.

او دغه رنګه که یو سړی دپاره د زده کړي د علم ظاهر وه یو عالم ته ده قرآن مبارك یا د حدیثو مبارکه وو او د نورو علوم دینیه وو رجوع وکړی . دا هم د ایاك نستعین سره منافات نه لري .

او یا یو سړی دپاره د تحصیل د علومو باطنه وو یو شیخ کامل او مکمل ته سر د عجز کښته کړي ، دا هم د ایاك نستعین سره منافات نه لري . درویش وایي چي شاید دا آخر صورت به مخالفین نه مني .

او یا سړی د حسن عقیدي د کبله د اهل الله وه قبورو ته ورسي او استمداد ځندي وغواړي دا هم د ایاك نستعین سره منافات نه لري . لکن مخالفین دا سراسر مشرك بولي والعیاذبالله .

درویش وایي : چي صوفیه کرام رح ټوله او حقیقي سني علماء د ظاهر دا استمداد روا بولي .

امام ابوحامد محمد الغزالی رحمه الله په احیاء العلوم کي تصریح په کړي ده . او مجدد الف ثاني رحمه الله په مکتوبات شریف کي په دي سره تصریح کړي ده . باید ووایو :

الشمس شمسٌ وان لم یرها الفریر ✣ والعسل عسلٌ وان لم یجد طعمه فاه المریر

مخالفان دونه دلاوره دي چي دوی وایي که یو سړی په نیت د قبرانو دسیدالمرسلین ﷺ وه مدیني منوري ته که څه هم په ایامو کي د حج وي سفر وکړي هغه مشرك دی والعیاذبالله . نو دداسي خلکو څخه نه ګیله په کارده او نه بحث ورسره کول کومه فائده لري . ولي چي دا نشه ددوی د دماغو څخه نه وزي . په قیامت به معلوم سي حق او باطل .

# اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ ۝

مونږ ته هدایت وکړي د هغه لارې چې په شرعي لحاظ سمه لار وي

**پوښتنــه** : الحمدلله شریفه په هر لمانځه کې هم علیه السلام او هم صحابه کرامو او هم ټوله اولیاء تلاوت کوي . بلکه ټوله مسلمانان ، نر او ښځې او دوی پر هدایت دی چې دین د اسلام دی . نو سوال د هدایت دڅه دپاره کوي ، او علماء رح وایي چې طلب د شي چې سړي ته حاصل وي لغوه دی ؟

**جواب** : چې دا سوال دی د ثبات او دوام تر وخته د موت پر هدایت حاصله باندې . او دا معلومه خبره ده چې همیشه توب پر هدایت علیحده دی د هدایت څخه . یعني په دې سوال کې مطلب نجات غوښتنه د ارتداد څخه والعیاذبالله .

او بل جواب دادی چې مراتبې د هدایت الهي هیڅ پای نه لري ، وفوق کل مرتبةٍ من الهدایة هدایةٌ أخری اعلی من الهدایة الحاصلة . نو ګویا هر لوستونکی طلب د مزید هدایت کوي .

**پوه سه !** چې جمله د اهدنا بیان دی د هغه شي چې په ایاك نستعین کې قاري وغوښتی ، نو ګویا د جانبه د رب العزت وویل سول : کیف نعینك؟ نو قاري وویله : إهدناالصراط المستقیم . او انبیاء علیهم السلام طلب د ثبات پر هدایت کړی . کما قال یوسف علیه السلام : توفني مسلماً. او صحابه کرامو رض په خپله دعاء کې ویله : وتوفنا مع الأبرار . او ویل یې: ربنا لاتزغ قلوبنا بعد إذهدیتنا. ولې پر ظاهر الحال الموجود اعتماد نه دی

کول په کار . چي مآل او آخر د کار نه دی معلوم . ألا ترى الى ماعرض لإبليس و برصليصا و بلعم بن باعورا في آخر الامر نجانا الله تعالى منه. خصوصاً په اوسني زمانه کي چي دين په دنيا خرڅول او دين په چوکی خرڅول او په صفو کي د کفارو دريدل دپاره د جنګ دمسلمانانو رواج ګرځيدلي دی . او د عوامو څخه وه خواصو ته يي تجاوز کړی دی . وفي المثنوي .

صد هزار ابليس و بلعم در جهان ✧ همچنين بودست پيدا و نهان

اين دو را مشهور گردانيد آله ✧ تا كه باشند اين دو بر باقي گواه . عنبر الهدايه

**پوه سه !** چي اهل سنت وايي چي هدايت دلالت موصله دی وه مقصود ته، يعني چي يو سړی وه بل ته د حق او اسلام لار وښيي او هغه بل سړی وه هغه حق ته هم ورسيږي . او معتزله وايي چي هدايت ارائة الطريق دی يعني صرف لار د حق بيانول او ښوول ، كه هغه سړی وه حق ته ورسيږي او كه نه . او په بعض كتابو کي وايي چي حال د مذهبينو بالعكس دی يعني اول د معتزله وو مذهب دی او دوهم د اهل سنتو مذهب دی .

په هر صورت پر اول مذهب دا سوال واردیږي چي په قرآن شريف کي راغلي دي: إن هذا القرآن يهدي للتي هي أقوم . او په دي کي شك نسته چي قرآن مبارك خو صرف ارائة الطريق كوي . ايصال وه حق ته دخدای جل ﷻ كار دی .

اول مذهب والا جواب وركوي چي په آيت مذكوره کي د هدايت معنا مجازاً ارائة الطريق دی والإختلاف إنما كان في المعنى الحقيقي للهداية .

او پر مذهب ثاني دا سوال واردیږي چي خدای پاك وه علیه السلام ته خطاب کړی دی هغه وخت چي ده علیه السلام اکا د ایمان رواړو څخه انکار وکړی یعني ابوطالب چي دده ﷺ اکا وو او دده ﷺ سره یي ډیر ښه کړي وه ، ډیر غمجن سو. إنك لاتهدي من أحببت . الآية. او شك نسته چي علیه السلام تر آخري لمحي پوري د ژوند د ابوطالب وه ده ته إرائة الطريق کاوه ، نو نفي د هدایت د ( من احببت ) څرنګه د علیه السلام څخه صحیح کیږي . اهل مذهب ثاني وايي چي په آیت متلو کي هدایت په معنی د ایصال الی الحق دی مجازاً . لکن درویش وایي چي جواب مذکور مشترك دی بین المذهبین فلا يفيد احدهما .

او بعض علماء وایي چي بعض علماء وایي چي لفظ د هدایت مشترك لفظي دی په مابین کي د مذکوره دوو معناوو ، نو استعمال يي په دواړو معناوو کي صحیح دی .

**سوال** : د مشترك لفظ په هره معنا کي چي مستعملیږي قرینه غواړي . فما القرينة؟

**جواب** : که هدایت وه مفعول ثاني ته بیله حرف جره متعدي وو لکه اهدنا الصراط المستقيم ° نو معنا يي دلالت موصله ده . او که په واسطه د حرف جر متعدي وو نو يي معنا ارائة الطريق ده . نحو إنّ هذا القرآن يهدي للتي هي أقوم ° أی يهدي الناس فالمفعول الأول محذوف. نو په هغه آیت کي چي د ابوطالب په باره کي وارد دی تقدیر دابسي دی : إنك لاتهدي الحق من احببت ° فمعناه الایصال ولذالك يصح النفي عنه ﷺ .

درویش وایي : ولایخفی مافی توجیه بعض العلماء من التکلف. نو صحیح جواب هغه دی چې قاضي بیضاوي ﷫ وایي چې معنا د هدایت الدلالة بلطفٍ ده . یعنې عام تر دې چې ایصال ورسره وي او که نه . چې حاصل د جواب دلای چې هدایت مشترك معنوي دی . فیصح استعماله فی کل واحد من المعنیین بقرینة المقام . وهذاالجواب خال عن التکلف. او دا مختاره کړی دی صاحب د تفسیر مظهري .

**پوه سه !** چې صراط په صاد سره او په سین سره دواړه روا دی . او مراد د مستقیم څخه هغه لار ده چې ده افراط لکه په دین کي د موسی علیه السلام چې وو لکه پنځوس لمنځونه په شبانه روز کي ، او زکات یي څلرم د مال وه ، او جامه چې به یي مرداره سوه په اوبو نه پاکیده بلکه هغه نجس ځای به یي خندي پرې کاوه ، او لمنځونه ددوی چې رسیدګي د مسجد به یي کیدای سوای بیله مسجده نه وه روا ، او د حائضي ماینې سره په یوه ځای بلکه په یوه خونه کي بیدیدل او خوراك او څښاك ورته حرام وو . الی غیر ذالك من الشدائد التی فی دین الیهود.

او تفریط لکه په دین کي د عیسی علیه السلام چې دومیانه وي وهو الشریعة المحمدیة ﷺ والدین الاحمدي ﷺ.

او دغه رنګه زمونږ شریعت متوسط دی په مابین کي د عقل محض لکه عقول د فلاسفة الإشراقیین منهم والمشائین حیث لایلتزمون اتباع الدین السماوي ، بل یتبعون عقولهم .

او په مابین کي د عشق دخدای جل سلطانه بلامراعة ظاهر الکتاب والسنة کما کان لمنصور حیث قال الحق وغیره من المجذوبین.

او توسط په دي لار کي داسي دی چي اول سړی سلوك په اذکارو او په عباداتو سره مختاره کړي او وروسته مقام ته د جذبي ورسيږي چي په داسي کولو سره هم مراعات د ظاهر د شريعت مطهره په وخت د سلوك او هم عشق الهي په وخت د جذبي دواړو سره جمع کيږي . كما للعلماء العاملين المجذوبين .

## صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ

لار د هغو کسانو چي تا ددوی سره احسان کړی دی .

---

او دا صراط بدل دی د صراط المستقيم څخه . بدل الكل دی . او مراد د انعمت عليهم څخه هغه کسان دي چي پر ايمان او طاعت ثابت او محکم وي ، تر وخت پوري د مرګ من النبيين والصديقين والشهداء والصالحين . كما ورد في الحديث النبوي صلى الله عليه وسلم . وجاء في القرآن العزيز : ( فأولئك مع الذين أنعم الله عليهم من النبيين والصديقين والشهداء والصالحين ) .

## غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ ۝

هذا بدل من الذين انعمت عليهم . نو معنا يي داده چي :

منعَم عليهم هغه کسان دي چي د غضب الهي او د ګمراهی څخه سالم او محفوظ دي . او يا صفت دی د (الذين انعمت عليهم) .

**سوال** : الذين انعمت عليهم خو معرفه دی لأن الموصولات من المعارف عندهم . وقال النحاة أن لفظ د غير متوغلٌ في الإبهام ولايتعرف بالاضافة الى المعرفة وهي المغضب عليهم .

**والجواب** : چي موصول يعني الذين چونکه معين کسان خني مراد نه دي، نو دپاره د عهد ذهني دی او معهود ذهني په نيز د نحاتو په حکم کي د نکيره دی نو يې غيرالمغضوب عليهم صفت واقع کيږي . کما فی قول الشاعر : ولقد أَمُرُّ على اللئيم يَسُبُّنِيْ. چي نحات وايي چي جمله د يسبني چي په حکم کي د نکيري ده د اللئيم صفت ده ، ولي لام په اللئيم کي دپاره د عهد ذهني دی اى لئيم من اللئام غير معين ولهذا صح وصف الشاعر نفسه بالحلم . او اکثر مفسرين وايي چي مراد د مغضوب عليهم څخه عصات دي او د ضالين څخه جاهلان په خدای جل جلا له سره ، يعني چي د خدای پاك معبوديت بالحق نه پيژني او موصوف په صفاتو د جمال او جلال يي نه بولي وغير ذالك ، ولي چي مقابل ددي دوو حالو منعم عليهم دی او منعم عليهم هغه کسان دي چي قوت عاقله يې مختل نه وي او قوت عامله خراب نه وي . او مخل په عمل سره فاسق او مغضوب عليه لقوله تعالى فى حق القاتل عمداً : (وغضب الله عليه ولعنه) والمخل بالعلم جاهلٌ ضالٌ لقوله ( فماذا بعدالحق إلا الضلال) او بعض مفسرين وايي چي مراد د مغضوب عليهم څخه يهود دي ، لقوله فى حقهم ( من لعنه الله وغضب عليه ) او ضالون نصارى دي ، لقوله تعالى فى حقهم ( قدضلوا من قبل و أضلوا كثيراً .

قال صاحب روح البيان : لكن فيه ان نسبة الضلال ليست مخصوصة بالنصارى لانه قدنُسبت فى القرآن نسبة الغضب الى النصارى وكذا نسبة د غضب ليست مخصوصة باليهود لأن الضلال نسب الى اليهود ايضاً فى القرآن . او که مراد د بعض مفسرانو رح چي د مغضوب عليهم څخه

یهود مراد دي او د ضالین څخه نصاری مراد دي، په دې سبب چي په قرآن کري کي په ډیرو ځایو کي نسبت د غضب و یهودو ته راغلی دی. او نسبت د ضلال و نصاری وو ته. نو دهغو خبره صحیح ده. ولایرد علیهم سؤال صاحب روح البیان کما لایخفی

﴿ آمِیْنَ ﴾

**پوه سه !** چي آمین اسم فعل دی معنا یي داده :

**یا الله إستجب دعائنا .**

او د آمین لفظ مبني پر فتحه دی لالتقاء الساکنین . او نه دی د قرآن څخه په اتفاق ، ولي چي په مصحف عثماني کي نه وو نوشته او هیڅ چا د صحابه رضی الله عنهم او د تابعینو څخه قول په قرآنیت نه دی کړی . نو ددي کبله آمین په لږ فصل تر الحمد لله وروسته وویل سي .

او وهب بن منبه وایي چي د هر حرف د آمین څخه ملکه پیدا کیږي چي وایي : **اللهم اغفرلي لمن قال آمین** . **وفی الحدیث الداعي والمؤمن شریکان** په ثواب کي .

## فصل في فضائل الفاتحة وخواصها بالشعر والنظم

**پوه سه !** چي مصنف د شمس المعارف د کتاب څخه د ابن سبعين رحمه
چي هغه د حضرت علي كرم الله وجهه دا قصيده نقل کړي

إذا ماكنت ملتمساً لرزقٍ ✤ ونجح القصد من حرٍّ وعبدٍ
وتظفر بالذي ترجوا سريعاً ✤ وتامن مخالفةٍ وغدرٍ
ففاتحة الكتاب فان فيها ✤ لما املت سراً ایُّ سرِّ
فلازم درسها فی کل وقت ✤ بصبح ثم ظهر ثم عصرٍ
كذالك بعدمغربٍ کل لیلٍ ✤ الی تسعين تتبعها بعشرٍ
تنل ماشئت من عزٍّ وجاهٍ ✤ وعظم مهابة و علو قدرٍ
ولا تحتج لاحدٍ بشيئٍ ✤ ولا تفجع بمكروهٍ وغدرٍ
وسترٍ لاتغيّره اللیالی ✤ بحادثةٍ من النقصان تجری
وتوفيق و افراحِ توالی ✤ و امنٍ من مکائد کل شرِّ
ومن فقرٍ وعسرٍ و انقطاعٍ ✤ و بطشٍ لذی امرٍ ونهيٍ
فانك ان فعلت اتاك آتٍ ✤ بما يُغنيك عن زيدٍ وعمرٍ
وكنت بجلاً في كل وقتٍ ✤ وعشتَ معافَى فی طول دهرٍ

درویش وايي چي دا طریق د ورد د سورت فاتحه بنه تر ټولو طريقو ده. ددي طريقي توضيح داده چي د سحار په وخت کي ۳۰ دیرش واره او د ماپښين په وخت کي پنځه ويشت ۲۵ واره . او د مازدیګر په وخت کي شل ۲۰ واره . او د ماښام په وخت کي پنځلس ۱۵ واره . او د ماخستن په وخت کي لس ۱۰ واره چي ټوله سل ۱۰۰ واره کيږي . او هر وار يي په

وصل د بسم الله الرحمن الرحيم وايه .او بعض علماء عاملين رح اسرار د فاتحة الكتاب داسي بيان كړي دي .

بفاتحة الكتاب تنالُ سرًا ✣ وعزًا شامخا طول الليالي

و وُداً فی قلوب الناس يبقى ✣ وعظم مهابةٍ وصلاح مالِ

فرتّبْ درسها فی كل ليلٍ ✣ على طهرٍ من الاصوات خالي

ومبلغ ذالك الترتيب منها ✣ الى الفٍ على وجه الكمال

تنل ماشئت من دنياك سهلاً ✣ ويرخص عندذالك كل غالی

حروف النور للتاليف منها ✣ الى ماشئت من داعی الوصال

كذا باقی الحروف فمظلمات ✣ تؤثر فی القطيعة والوبال

فتفعل ما شرحتُ هُديتَ رُشداً ✣ لتبقى فی النعيم بلازوال

او فقيه القطب الصالح شهاب الدين احمد بن موسى العجيل وايي چي ما رسول كريم صلى الله عليه وسلم په خوب وليدى او اسرار د فاتحة الكتاب يي راته بيان كړه او هغه بيتونه دادي :

اذا كنت تبغى زوال الهموم ✣ و امنك من كل عذر ومكرٍ

واقبال رزقك عليك سهلاً ✣ وتحظى بجاهٍ عريض العلاء

وتعطى مرادك من كل امرٍ

عليك بفاتحةٍ للكتاب ✣ فان بها ظاهراً الف سرٍ

والفاً كذالك فى باطنٍ ✣ وفيها شفاءُ كل سقمٍ وضرٍ

اليها الاشار البشير النذير ✣ عليه التحيات من كل قطرٍ

الا فاتليها مائةً مائةً ✣ عقيب الفرائض اثراً باثرٍ

ولا تقطعن بينها بالكلام ✣ فذالك هو الشرط فی كل امرٍ

وان امکن الدرس الفاً لها ✣ علی خلوةٍ منك فی حال طهر
فذالك انجح فیما ترید ✣ فجمع بجمع و نشر بنشرٍ
وکلتا الطریقین محمودة ✣ وفی کل دینك جبراً لکسرٍ
وصلی الله علی المصطفی ✣ مدی الدهر ماعاد مزن بقطرٍ

**پـوه سـه !** چې حروف النور پـه دغـو کلماتو کې سره جمع دي : ( الر ، کهیعص ، طس ، حم ، ق ، ن ) د الحمدلله څخه چې دغـه حروف راجمع کړې د محبت دپاره دي . او باقي حروف ، حروف ظلمت بولي د عداوت دپاره دي ، نو ته په الحمدلله کې په دواړو قسمو حروفو کې فکر وکړه .

**فائده** : کـه څوك فاتحه شریفه سره د بسم الله پـه وصـل سره د سحار د سنتو او د فرضو په مابین کې یو څلویښت ۴۱ واره همیشه وایي . نو کـه فقیر وو خدای پاك به یې غني کړي او کـه پوروړی وو خدای ﷻ بـه یې د پوره خلاص کړي او کـه مریض وو خدای پاك بـه یې د غیبو څخه پـه یو سبب جوړ کړي . او کـه ضعیف وو خدای پاك به یې قـوي کـړي ، او کـه پـه خلکو کې بې قدره وو خدای پاك بـه قدر او شرف او عزت پـه خلکو کې ورکـړي او پـه خلکـو کـې بـه یـې مقبـول سـړی وګرځـوي . او کـه د یـوه حکومتي منصب څخه معزولـه سوی وي نو پـه برکـت د فـاتحي بـه هغـه منصب ته بیرته خپل ورسیږي .

**فائده** : د الحمدلله شریفي لوی ورد چې په اصطلاح یې یوخ والی بولي یو لـك او پنځویشت زره ۱۲۵۰۰۰ واره دی . کما قال اهل الخواص : خُذْ حرفاً و قُلْ الفاً . او د الحمدلله شـریفي حـروف یوسل او پنځویشت ۱۲۵ دي .

**فائده** : که سړی یوازې د سحار تر لمانځه وروسته همیشه ۱۲۵ واره وایي دهر مطلب د کامیابي سبب به قدرت د خدای ﷻ وګرځي.

**فائده** : که یو سړی د مطلب دپاره چي وي ، په عدد د رسولانو ع چي ۳۱۳ دي چي همدغه عدد د اصحاب بدر رض هم دی او همدغه عدد د اصحاب طالوت هم دی ، وي وایي خدای جل سلطانه به یي هغه مقصد او مطلب حاصل کړي انشاء الله تعالی.

**فائده** : شیخ محي الدین ابن العربي قدس سره وایي : که د چا یو حاجت وي نو الحمدلله شریفه دې د ماښام تر فرضو او سنتو وروسته او دهغه ځای د لمانځه دي هم نه ولاړیږي ، څلویښت واره ووایي او خپل حاجت دي دخدای جل شانه څخه وغواړي . خدای ﷻ به یي حاجت پوره کړي . قال الشیخ وقد جُرِّبَ فوجدناه نافعاً.

او امام بوني رحمه الله په شمس المعارف کي د آنحضرت ﷺ څخه داسي حدیث رانقل کړی دی چي که سړی هغه وخت چي پر ځای ماښام پرېوزي او الحمدلله شریفه یو وار او قل هوالله احد دري ۳ واره او معوذتین یو وار ووایي د هر آفت څخه به په امن وي الا الموت. لأن الاجل الموعود لایُرَدُّ . آه بزیادة.

درویش وایي که زه ټوله خواص او فضائل د سورت فاتحه چي په احادیثو مبارکه صحیحه وو کي راغلي دي او یا په اقوالو د صحابه کرامو رض سره ثابت دي او یا اولیاء الله الکرام رح په وینااو او تجربو سره ثابت دي اویا د راسخ علماء کرامو رح په کتابو کي راغلي دي ټوله او ټوله په قدر د علم د درویش سره راجمع کړم ، شاید ډیري ورقي به نوري په بر کي ونسي او شاید حاسدان به وایي چي د عبیدالله کتاب

تفسیر د قرآن مبارك دی او كه تعویذات دي . نو ددې كبله د الحمد لله شريفې تفسیر پر داغه ځای ختم كوم او په تفسير د سورت بقره شروع كوم انشاءالله تعالی . وماتوفيقي إلا بالله جل شانه.

## ﴿ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ مَدَنِيَّةٌ ﴾

**پوه سه !** چې مدني او مكي آيت يا سورت هغه ته وايي چې قبل الهجرت وي يا وروسته تر هجرت وي ، یعني چې تر هجرت دمخه وي هغه مكي بولي كه څه هم د مكې د ښار دباندې نازل سوي وي او چې تر هجرت وروسته نازل سوي وي هغه ته مدني وايي كه څه هم په سفر كې نازل سوي وي . لكه سورت د : (**إنافتحنالك فتحاً مبيناً**) چې په كال كي د حديبيې چې پر علیه السلام په سفر كې چې دمديني پر خوا رهي وو نازل سو ، بلكه كه څه هم بعدالهجرت په خود مكه شریف كې نازل وي ، نو د مكي او مدني تر مابین واسطه نسته .

**فائده** : سورت بقره په نيز د اهل كوفه دوه سوه او شپږ اتيا ۲۸۶ آيته دی . او په نیز د اهل بصري ۲۸۷ آيته ده . او داسورت شپږزره يوسل او يويشت ۶۱۲۱ كلمي دی . او حروف ددې سورت پنځه ويشت زره و پنځه سوه ۲۵۵۰۰ دی كما فی المظهري .

**فائده** : محدث عبدالرازق رح او ابن ابي شیبه رح وايي چې تسميه ددې سورت په سورت البقره سره مكروه دی او دغه رنګه سورت النساء مكروه دی بلكه سرى به داسې وايي : السورة التي تذكر فيها البقرة . او يا هغه سورت چې په هغه كې د ښځو ذكر كیږي .

درویش وایي : چي امام بخاري رح په خپل صحیح کي باب مستقل ایښی دی چي په هغه کي اطلاق د سورت البقره د علیه السلام څخه او د اصحابو کرامو رض څخه نقل کړی دی. فلاجرح في التسمیة ثم هذه التسمیة من قبیل تسمیة الکل باسم الجزء او دا نومان توله سمعي دي او چا ته اجازه نسته چي پر سورتو د قرآن دخپل ځان دخوا نومان ایږدي، که څه هم تسمیة الکل باسم الجزء په هغه نامه کي هم جوړیږي .

**پوه سه!** چي سلیمان جمل رح وایي چي بعض صحابه کرامو رح پر بعض سورتو باندي ماسوی د مشهوره نومانو څخه نور نومان ایښي دي لکه چي حذیفه رض پر سورت توبه باندي د فاضحة نوم یا د سورت العذاب نوم ایښی دی . او خالد بن سعدان رض پر سورت البقره باندي د فسطاط القرآن نوم ایښی دی . او یا د سورت الفاتحه ۳۰ نومان چي دمخه تیر سوه .

درویش وایي چي دغه نومان چي مذکور سوه پر طریقه د وصفیت دي نه د اسمیت ، لکه دخدای جل سلطانه نومان چي بالاتفاق توقیفي او پر سماع موقوفه دي لکن پر طریقه د وصفیت د نورو نومانو اطلاق پر خدای ﷻ باندي روا دي صرح به الفاضل اللاهوري رح في حاشیة الخیالي . او یا مراد د سمعي او توقیفي څخه دادی چي د آنحضرت صلی الله علیه وسلم یا د اصحابو کرامو رض څخه مسموع وي ، ولي د اصحابو رض نومان محمول پر سماع دي . کما قالوا في الآثار المسموعة في الأحکام الدینیة من الصحابة رض انها محمولة علی السماع منه صلی الله علیه وسلم فتأمل .

**پوه سه!** چي عليه السلام وايي چي سورت البقره فُسطاط القرآن ده .
يعني يو جامع ښار د قرآن ده لكثرة الاحكام الشرعية فيها . ويؤيده ، هغه چي ابن عربي رح په تفسير احكام القرآن كي وايي ، چي ماد بعض مشائخو څخه اوريدلي دي چي په سورت بقره كي زر امره موجود دي ، او زر نهي موجود دي ، او زر حكمتونه ، او زر خبرونه . هم ددي سببه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ددي سورت مبارك په زده كړه كي اته ٨ كاله تير كړه .

**فائـــده** : اوږد تر ټولو سورتو د قرآن سورت البقره ده او تر ټولو لنډ سورت سورت الكوثر دی او اوږد تر ټولو آيتو د قرآن آية المداينة دی چي په دي سورت كي به راسي . او تر ټولو لنډ آيت ( والضحى ، والفجر ) دی او تر ټولو اوږده كلمه : ( فاسقيناكموه ) ده . كذا في روح البيان .

**فائـــده** : د قرآن مبارك بعض سورتونه اوږده دي او بعض لنډ او بعض ميانه ، په دي كي يو حكمت الهٰي دادی چي اطفال به په تدريج سره د قصارو سورتو د زده كړي او په ياد كړي او وروسته به اوساط زده او بيا پياد كړي او تر هغه وروسته به طوال زده كړي او حفظ قابل او مستعد سي . وهذا فضل من الله على المتعلمين .

او بله فائده يي داده چي څوك توهم ددي ونه كړي چي قرآن مبارك چي مُعجز دی ددي سببه چي سورتونه يي ډير اوږده دي ، نو خدای ﷻ دا توهم دفع كړی چي سورت كوثر هم مُعجز دی . قال الله تعالى : ( إن كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله ) يعني كه څه هم يو كوچني سورت وي . ثم قال ﷻ ( فإن لم تفعلوا ولن تفعلوا . الآية .

﴿ الفائدة السنية في ترتيب السور القرآنية بحسب النزول ﴾

قال الشيخ الامام جلال الدين عبدالرحمن السيوطي الشافعي رح فى تفسيره الإتقان في علوم القرآن ما نصه هذا.

درويش وايي په تفسير اتقان كي ډېر مختلف روايتونه راغلي دي ، لكن په اتفاق د محدثينو اول حقيقي د قرآن دغه تدريج د سورت اقرء دى .
(إقرأ بإسم ربك الذي خلق • خلق الانسان من علق • إقرا وربك الأكرم )
لكه چي د اول جلد اول حديثونه صراحتاً دلالت پر كوي . وروسته تر هغه به ام القرى كي پوره سورت نازل سو . يعني سورت فاتحه په مكه مكرمه كي . وروسته سورت اقرء پسي پوره سو ، وروسته تر هغه ياايها المزمل . وروسته يا ايهاالمدثر ، وروسته تبت يدا ، وروسته اذاالشمس كورت ، وروسته سبح اسم ربك الاعلى . وروسته والليل اذا يغشى ، وروسته والفجر ، وروسته والضحى ، وروسته الم نشرح ، وروسته والعصر ، وروسته والعاديات ، وروسته انا اعطيناك الكوثر ، وروسته الهكم التكاثر ، وروسته ارئيت الذي يكذب ، وروسته قل ياايهاالكافرون ، وروسته الم تركيف ، وروسته قل اعوذبرب الفلق ، وروسته قل اعوذبرب الناس ، وروسته قل هوالله احد ، وروسته والنجم ، وروسته عبس وتولى ، وروسته انا انزلنا ، وروسته والشمس وضحاها ، وروسته والسماء ذات البروج ، وروسته والتين ، وروسته لايلاف قريش ، وروسته القارعة ، وروسته لاأقسم بيوم القيامة ، وروسته ويل لكل همزة وروسته والمرسلات ، وروسته ق ، وروسته لاأقسم بهذالبلد ، وروسته والسماء والطارق ، وروسته اقتربت الساعة ، وروسته ص ، وروسته الاعراف ، وروسته قل اوحى ، وروسته يسين ، وروسته الفرقان ، وروسته الملائكة ، وروسته كهيعص ، وروسته طه ، وروسته الواقعة ، وروسته طسم ،

وروسته طس ، وروسته القصص ، وروسته بني اسرائيل وروسته يونس ، وروسته هـود ، وروسـتـه يوسـف ، وروسـتـه الحجـر ، وروسـتـه الانعام ، وروسـتـه الصـافـات ، وروسـتـه لقمـان ، وروسـتـه سبا ، وروسـتـه الزمر ، وروسته حم ، وروسته المومن ، وروسته حم السجدة ، وروسته حمعسق، وروسـتـه حـم الزخـرف ، وروسـتـه الـدخان، وروسـتـه الجاثيـه ، وروسته الاحقـاف ، وروسـتـه الـذاريات ، وروسـتـه الغاشـيـة ، وروسـتـه الكهـف ، وروسـتـه النحـل ، وروسـتـه إنـا أرسـلنا نوحـا ، وروسـتـه سـورة ابـراهيم ، وروسته الانبياء ، وروسته المومنين ، وروسته تنزيـل الـسجدة ، وروست الطور ، وروسته تبارک الـذي ، وروسـتـه الحاقـة ، وروسـتـه سـأل سائل ، وروسته عم يتسائلو ، وروسته النازعـات ، وروسـتـه اذالـسمـاء انفطرت ، وروسته اذالسماء السماء انشقت ، وروسته الروم ، وروسته العنكبوت ، وروسته ويل للمطففين .

نو دا ټوله سورتونه په مکه مکرمه کي خدای پاك نازل كړي دي .

بيا په مدينه منوره کي دغه سورتونه په ترتيب نازل سول : سـورة البقرة وروسـتـه الانفـال ، وروسـتـه آل عمـران ، وروسـتـه الاحـزاب ، وروسـتـه الممتحنة ، وروسته سورة النساء ، وروسته إذا زلزلت ، وروسته الحديد وروسته القتال ، وروسته الرعد ، وروسته سورة الـرحمن ، وروسته سورة الانسـان ، وروسـتـه الطـلاق ، وروسـتـه لـم يكـن الـذين ، وروسته سورة الحشر ، وروسته اذا جاء نصرالله ، وروسـتـه سـورة النور ، وروسته سورة الحج ، وروسته سورة المنافقون ، وروسته المجادلة ، وروسـتـه الحجرات وروسته التحريم ، وروسته الجمعة ، وروسته التغابن ، وروسته الصف ، وروسته سورة الفتح ، وروسته المائدة ، وروسته برائة .

مجموعه سورتونه ۱۱۴ سوه .

**پوه سه !** چي هغه اختلاف چي په ترتيب کي د سُور مذکوره وو بيـان نه کړي په سبب د غايت تطويل .

**فائــده** : دا سورتونه چي بعض مکي او بعض مدني دي تفسير اتقان وښوول ، ددي دا معنا نه دي چي ددغو سورتو ټوله آيتونه مکي يامدني بلکه دا فرق په اعتبار د اغلب آيتو دی . ورنه عين ممکنه ده چي په بعضَ مکي سورتو کي دي بعض مدني آيتونه په ښوونه د امين جبرئيل اېښوول سوي وي . وکذالك العکس . فتأمل هداك الله.

**فائده** : درويش وايي چي چونکه سورت بقره يو اورږد سورت دی ، نو غواړم چي د مجموع سورت فضائل او خواص دمخه تر شروع په تفسير د هغه سورت په قدر د ضرورت خپلو پښتنو وروڼو او خوندو ته وړاندي کړم . البته فضائل او خواص د بعض آيتو ددي مبارك سورت به په رسيدو وه تفسير د هغو آيتو وړاندي کړم انشاء الله تعالى وماتوفيق الا باالله العلى الكريم .

**فى الحديث النبوى ﷺ انه نزل ملك من السماء فقال للنبى صلى الله عليه وسلم البشر :** خوشحاله اوسه بنورين په دوه نوره سره **أوتيتها** چي تاته درکړل سوي دي **لم يؤتهما نبى قبلك** چي نه دي ورکړه سوي هيڅ نبي ته ترتا دمخه **فاتحة الكتاب** يوه الحمدلله شريفه ده **وخواتيم سورة البقرة** او آخري آيتونه د سورت بقره او هغه ټولي دعاوي چي په فاتحه کي دي . او يا په آخر د سورت بقري کي دي هغه په دربار کي د خدای جل سلطانه قبول دي . **روى معناه الشيخان** رح .

او د ابي مسعود رض څخه روايت دی چي نبی عليـه السلام وويـل هغه دوه آيته د آخر د سورت بقري چي څوك يي د شپي ووايي ، بس يي دي . يعني د تهجد دلمانځه څخه . رواه الأئمة الستة رح.

وعن النعمان بن بشير ﷺ ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال :چي خدای تبارك وتعالی دمخه تر پيدا كيدو د آسمانو او مخلوك دوه زره كاله يو كتـاب ليكلی دی چي په هغه كتـاب كي دوه آيته خواتيم د سورت بقري دي . نو دا دوه آيته نه ويل كيږي په يو سرای چي هغه ته دي شيطان نژدي سي . رواه البغوي .

وعن ابی سعيد الخدری رض قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: السورة التی تذكر فيها البقرة فُسطاط القرآن . يعنيِ جامع بنـار د قرآن دی . فتعلموها فإن تعلمها بركةٌ وتركها حسرةٌ ولن تستطيعها البطلة قيل وما البطلة قال السحرة. يعني طاقت نه لري چي سحر دي وكړي پر قاري دسورت بقره. اخرجه الديلمي فی مسندالفردوس.

او روايت كړی دی بهيقي په شعب الايمان كي تُوجَ تَبَاج في الجنة . او ابن حبان وغيره د سهل بن سعد رض څخه داسي روايت كړی دی چي : هر شي لره سنام سته يعني لكه بوك د اوښ لوړ ځای سته وسنامُ القرآن سورة البقرة .

كه يو چا دا مبارك سورت په يو كور كي د ورځي ووايه ، شيطان هغه كور ته دري ورځي نه ورځي او كه چا د شپي په خپل كور كي ووايه ، نه داخليږي شيطان وه هغه كورته دري شپي . روح البيان ، تفسير مظهري ، مشكات .

داوه مشت نمونه خروار فضائل ددي مبارك سورت اوس به هم شروع

وکړو په تفسیر ددي مُبارك سورت په توفیق د ارحم الراحمین .

﴿ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○ الٓمٓ ○ ﴾

درویش وایي چي چونکه دا اول ځای دی چه مقطعات د قرآن مبارك پکښي راغله ، او په بل عنوان متشابهات القرآن پکښي ذکر سوله . نو درویش غواړي چي ټوله مذاهب د مجتهدینو رح او ټوله اقوال د مفسرینو او ټوله تاویلونه د هغه اماماتو چي تاویل د متشابهاتو روا بولي ذکر کړي او وروسته چي په نورو سورتو کي متشابهات راسي په هغو کي به متابعة لجلال الدین السیوطي الشافعي رح و لجلال المحلي الشافعي رح فی تفسیریهما . په دغه سره به کفایت وکړي ، یعني الله اعلم بمراده بذالك یعني تفویض د علم د متشابهاتو وه خدای جل سلطانه ته وکړي او په ایمان اجمالي آمنتُ بما اراداالله بذالك سره به کفایت وکړي قال الله عز سلطانه پاره تلك الرسل اوائل سورة آل عمران : ( هوالذي انزل علیك الکتاب منه آیات محکمات هن ام الکتاب و أخر متشابهات فأماالذين فی قلوبهم زیغ فیتبعون ما تشابه منه ابتغاء الفتنة وابتغاء تأویله ومایعلم تأویله إلا الله والراسخون فی العلم یقولون آمنا به کل من عند ربنا الآیة .

درویش وایي چي منشا ، د اختلاف د مذاهبو چي تاویل د متشابهاتو بیله خدای جل شانه چاته معلوم دی او که نه همداغه آیات مذکوره دی کما سیأتي فی تفسیرها إنشاء الله تعالی.

**پوه سه !** چي بعض علماء رح وایي چي دا مقطعات په هر سورت کي چي وارد دي دهغه سورت نوم دی . او دا مذهب ضعیف دی ولي چي



Scanned by CamScanner

ددي څخه دا معلومیږي چي يو واضع چي خدای ج يو نوم دی ډيرو شيانو دپاره وضع کړی دی لکه ( الم ) په څو سورتو کي راغلی دی وهكذا غيرها او دا اشتراك الوضع د يوه واضع باطل دی للزوم الإلتباس في المسميات والغرض من الوضع دفع د التباس ده . او دا فساد په دغه قول کي هم سته چي دا حروف مقطعه چي هر يو په نامه ويل کيږي نحو ( الف لام ميم ) مثلاً ، نو چي دوی د سورت نوم سي نو خو ددغه سورت دري اسمه يو نوم سو ولم يأت في الأسماء ذالك العربية . بلکه ( المص ) تسميه د يوه سورت په څلو اسمه سره لازميږي . او په ( کهيعص ) او ( حمعسق ) کي يو سورت په پنځه اسمه سره مسمی سو . وذالك مستكره جداً . إن القرآن الكريم نزل موافقاً للغة العرب . قال الله تعالى ( إنا أنزلناه قرآناً عربياً )

او بل دا فساد هم لازميږي چي بعض سُور قرآنيه د متشابهاتو نومان لري او بعض يي نه لري ، نو په دي کي څه حکمت دی . او بعض مفسرين وايي چي دا مقطعات زائد دي ، صرف ددي دپاره دي چي هغه مخکي کلام پای ته ورسيدی اوس نوی کلام شروع کيږي . او دا وجه هم ضعيفه ده.

اما اولاً چي قرآن کريم لکه چي تيره سوه موافق د لغت د عربو نازل سوی دی . او دا حروف مقطعه په عربي ژبه کي دپاره د انقطاع د يوه او استيناف د بل کلام نه دی راغلی .

و اما ثانياً نو دا انقطاع او استناف خو په هر سورت کي موجود دي ، نو څه حکمت دی چي په بعض سُورو کي دا حروف مقطعه نه ليدل کيږي .
واما ثالثاً : څه حکمت دی چي د انقطاع او استيناف دپاره په بعض سُورو

کي یو حرف راغلی دی نحو ( ق ، ص ) او په بعض کي دوه حرفه راغلي دي نحـو ( طـه ، طـسٓ ) او پـه بعـض کـي دري حرفـه راغلـي دي نحـو ( الم، الـر ) او پـه بعـض کـي پنځـه حرفـه راغلـي دي لکـه : ( کهـيعص ، حمعسق ) او بعض مفسرين وايي چي دا حروف مختصر دي د نورو کلمو څخه . لکه د ابي العاليه څخه روايت دی چي ( الـف ) پـه ( الـم ) کـي مختصر د ( آلآء الله ) څخه او ( لام ) د لطفه څخه او ( ميم ) د مُلکه څخه . او يـا ابـی العاليـه وايـي : ( الـر و حـم و ن ) مجموع الـرحمن دي او يـا بغـويؒ رواپـت راوری د ابـن عبـاس رض چـي ( المـص ) مخفـف دی ددغـو الفـاظ څخـه ( انـاالله أعلـم و أفضل ) او ( الـر ) د اناالله اری څخـه مخفف دی . او ( المر ) د انـاالله أعلم و أرٰی څخـه مخفف دی إلی غير ذالك . قالوا الإقتصار علی بعض الحروف معهودٌ فی اللسان العربي كما فی قول الشاعر : قلتُ لها قفي فقالت لي قاف . ای وقفتُ

ورده القاضي ثناء الله في تفسيره الجلدالاول بأن الاقتصار علی بعض حروف الكلمة غير مستعمل في اللغة العربية . او شعر مذکور شاذ دی . او بل په شعر مذکور کي ( فقلتُ لها قفي ) قرينه ده پر دي چي قاف مختصر د ( وقفتُ ) څخـه دی . اوپـه اول کـي د سورتو چـي دغـه مقطعـه حـروف پکښـې موجـود دی هـيڅ دليـل ددي نسـته چـي دا حـروف د فـلا نـي لفـظ څخه مختصر دي . وإلا لم يختلفوا فی الألفاظ المختصر عنها . او سره ددي چـي بعـض وايـي چـي ( الـم ) مختصـر دی دی ( آلآء الله ) او ( لُطـف ) او ( مُلکه ) څخه . او بعض وايي چي مخفف دی ( الم ) د ( اناالله اعلم ) څخه الی غير ذالك .

او بعض مفسرین وایي : چې د غه مقطعه حروف دپاره د بیان د مدو د اقوامو او د آجال دی په حساب د ( ابجد ) چنانچه نچاري په تاریخ کې په ضعیفه سند سره راوړي دي چې علیه السلام ته یو وخت یهودان راغله او علیه السلام ( الم ) تر آخره د سورت بقري ودوی ته تلاوت وکړی .

نو دوی چې په حساب د ( ابجد ) حساب ورته وکړي ۷۱ ځنې جوړ سوه ، نو دوی وه علیه السلام ته وویل چې موږ په داسي دین کې څرنګه داخل سو چې موده یې ۷۱ کاله ده . علیه السلام ورته وخندل . دوی ورته وویل چې نور هم څه سته ؟ علیه السلام ورته وویل : (المر، الر) نو یهودیانو ورته وویل چې موږ دي حساب ګډوډ کړی ، موږ کوم یوه ته حساب وکړو . دوی وایي چې علیه السلام چې ورته وخندل دا یې ددوی تقریر وکړی پر دغه حساب باندي . او دا قول مردود دی ، ولي چې قرآن مبارك خو پر لغتو د عربو نازل سوی دی او حساب د ابجد هغه وخت عربو نه پیژندی . او خندل د علیه السلام دپاره د تقریر ددوی نه وه بلکه دپاره د تعجب د حماقت ته ددوی وه چې عربي قرآن دوی پر حساب د ابجد حل کړي چې هغه عربي نه دی .

**سوال** : هغه قول چې حروف مقطعه مختصر د بعض کلماتو څخه دي خو مروي د صحابه کرامو رض او د تابعینو رح څخه لکه ابن عباس رض ، ابوالعالیه رح ، نو څرنګه هغه قول ضعیف وګڼل سو ؟

قاضي ثناءالله رح د هغه جواب داسي ورکړي دي چې هغه اقوال د ظاهره څخه مصروف دي یعني د صحابه رض او تابعینو رح شرف ددغو مقطعاتو غرض دی په دي معنا چې دغه حروف مقطعه دداغسي مبارکو الفاظو ماده د ترکیب ده ، ولهذا إختلفوا فی اختصار الم کما مرّ آنفاً . او

که ماول نه وي نو په سبب د تعارض په هغو روایاتو مورږ عمل ونه کړی. والله اعلم.

او بعض مفسرین وایي چي دغه مقطعه حروف مقسم بها په سبب د شرافت ددوی چي دغه حروف مواد د اسماء الله تعالی دي، او مواد د کلام الهي دي.

درویش وایي چي دا توجیه هم ضعیفه ګڼل سوي ده. که څه هم دا حروف شرافت لري او قسم په اخسته هم جائز دي، لکن په قرآن کریم کي سړی د ډیر تکلیفو سره مخامخ کوي. یعني حرف قسم به په هر ځای کي ورسره مقدره وي او په اکثرو ځایو کي وه تقدیر د جواب د قسم ته هم ضرورت پیدا کیږي. ولاضرورة إلى هذه التكلفات بلافائدةٍ خصوصاً في القرآن المجيد.

درویش وایي: قاضي ناصرالدين البيضاوي رح په خپل تفسیر کي یوه په زړه پوري معقوله توجیه د حروف مقطعه وو قرآنیه و کړي ده چي یو څو ډیره طویل الذیل توجیه ده. او بل ډیره سخته توجیه ده چي د منتهي طالبانو چي بیضاوي وایي کما حقه، سر یي نه په خلاصیږي، نو ځکه درویش د هغي توجیه د بیان څخه صرف نظر وکړی شفقةً على متعلمي هذا التفسير.

او بعض علماء وایي چي دا مقطعات قرآنیه نومان دي د خدای ﷻ. قال المظهري رحمه الله اخرجه ابن جرير رحمه الله وابن المنذ رحمه الله وابن ابي حاتم رحمه الله وابن مردويه في الأسماء والصفات، عن ابن عباس رض بسند صحيح. وروى ابن ماجة عن علي رضي الله عنه انه كان يقول يا كهيعص اغفرلي وضعه المظهري. چي دغه مقطعات که څیري نومان د خدای ج وایي، نو

خو پر یو صفت د صفاتو د خدای ج به یي دلالت کولای لکه عالم و قادر و رحمن وغیره . او د علی رض د قول معنا داده : یا منزل کهیعص اغفرلي او عبدالرازق په نقل د قتاده رض وایي چي دا ټوله مقطعات اسماء د قرآن دي واستدل بقوله تعالى : ( قٓ ۚ والقرآن المجید ) و ( الم ذالك الکتاب لاریب فیه ) او دا توجیه هم ضعیف ده چي که دغه مقطعات اسماء د قرآن وایي نو پر یو صفت د قرآن به یي دلالت کولای لکه ( قرآن ، فرقان ، نور ) وغیره .

وقال البیضاوي رحمه الله وصاحب روح البیان رحمه الله : چي دا حروف مقطعه ددي دپاره راوړي دي چي کفار مکه په دي پوه سي چي کلام الهي ستاسي د عربي ژبي د حروفو څخه جوړ دی مفرد یا مرکب ، نو که من عندالله نه وای ، نو ولي تاسي د اتیان څخه د مثل عاجزه کیدای . لکن روح البیان او مظهري دواړو د اتوجیه رد کړي ده . ولي چي ددي توجیه څخه دا معلومیږي چي دا حروف مقطعه په خپل ځان کي هیڅ معنا نه لري . او دا باطله ده ولي چي بغوي رحمه الله د ابوبکر الصدیق رضی الله عنه څخه روایت کوي : في کل کتاب سِرٌ و سِرُ اللهِ في القرآن اوائل السُور یعني التي فیها تلك المقطعات . وقال عليٌ رضی الله عنه لکل کتاب صفوة و صفوة هذاالکتاب حروف التهجي . او صاحب د روح البیان او قاضي ثناء الله رح دا مختاره کړي ده ، چي دا حروف مقطعه سِر او پټ راز دی په مابین کي د خدای ﷻ او دده دنبي ﷺ ، نو دا حروف مقطعه د قسمه څخه د معمیاتو او د قرارداد دی په مابین کي د خدای پاك او دده د حبیب ، په داسي وخت کي چي هلته نه ملکه مقربه او نه نبي مرسل خایي دی . او د مقام عالي سره د آنحضرت ﷺ دا توجیه مناسبه ده . او د هغه حدیث سره هم سمون

خوري ، چي هغه وخت چي جبرئيل ﷺ دا آيت وه عليه السلام ته راوړی : (كهيعص) نو چي جبرئيل عليه السلام وويل : ( كاف ) عليه السلام به ورته وويل : علمتُ . فقال جبرئيل ( ها ) قال علمتُ . قال ( يا ) قال علمتُ . قال (عين) قال علمتُ . قال ( صاد ) قال علمتُ . نو جبرئيل عليه السلام ورته وويل چي څرنګه ته په پوه سوي چي زه يي راوړونكى يم نه په پوهيږم .

اوددي سِر مكتوم مثال هم موجود دی په قرآن كريم كي : (وعلم آدم الأسماء كلها ثم عرضهم على الملائكة . الآية . نو كه په وخت كي دا تعليم الاسماء وه ، آدم عليه السلام يوځوك د مقربو ملكو څخه به موجود وای . او يا دا تعليم په واسطه د ملكو وای ، نو په هغه وخت كي چي خدای ﷻ ملكو ته وويل : ( أنبئوني بأسماء هؤلاء . الآية ) نو هغه ملكو چي د تعليم آدم عليه السلام په وخت كي موجودي وي ، هغو د اسماء معروضه وو بيان خدای جل سلطانه ته كړی وای او دا به يي نه ويلای : ( سبحانك لاعلم لنا. الآية )

او بعض مفسرين وايي چي د متشابهاتو او مقطعاتو قرآنيه وو علم صرف د خدای جل سلطانه سره دی حتی نه عليه السلام په خبر دی نه يي اتباع .

درويش وايي لكه چي دغه مذهب د قول څخه د جلال الدين السيوطي رحمه الله او د جلال الدين المحلي رحمه الله هم فهميږي . چي دوی د هر سورت د متشابهاتو د تفسير په وخت كي داسي وايي : الله اعلم بمراده بذالك و بس

دا بعض مفسرین رح وايي چي زمونږ برخه په متشابهاتو کي فقط ایمان دی پر ماأرادالله بذالك . او تفویض د علم دی وه خدای جل جلا له ته . او دوی دا هم وايي چي په آخرت کي به علم د متشابهاتو کشف سي علیه السلام او مسلمانانو ته . قاضي ثناء الله رحمه الله وايي چي دا قول بعید دی جداً ، ولي یو څوك چي د چا سره خطاب کوي دپاره د پوره کولو د مخاطب به يي کوي کما هو ظاهر ، نو که هیڅ څوك په مقطعاتو نه پوهیږي ، نو خطاب بالمهمل دی . او یا لکه د عربي خالص سره نه هندي ژبه څوك خبري کوي . او قاضي رحمه الله زیاته کړي ده چي ددي مذهب پر مقتضی ټوله قرآن مبارك بیان او هدیٰ نسو . او ده دا هم ویلي دي چي خدای جل جلا له د علیه السلام سره وعده کړي ده : ( ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ ) آه نو ددي آیت څخه خو ظاهراً دا معلومیږي چي د محکم د قرآن او د مجمل او مشکل او متشابه د ټولو خدای ﷻ وعده د بیان کړي ده او د وعدي څخه خلاف کول پر خدای ﷻ محال دي .

درویش وايي چي هغه آیت چي مونږ يي بیان وکړی چي دا منشاء د اختلاف دی ، یعني : ( هوالذي أنزل علیك الکتاب. الآیة ) په اصول الفقه الحنیفي کي وايي ي په مذکوره آیت کي وقف پر ( الاالله ) باندي لازم دی. والراسخون ) مبتداء ده او ( یقولون آمنا به کل من عندالله ) آه يي خبر دی، نو معنا يې داده چي نه دي خبر په تاویل د متشابهاتو هیڅ څوك بیله خدای ﷻ وهو مذهب اکثرالعلماء رح . نو پر دي تقدیر خو آنحضرت صلی الله علیه وسلم او علماء راسخین او صحابه کرام رض هم په تاویل ددي مقطعاتو خبر نه دي . وهذا یخالف الحدیث المذکور آنفاً في کهیعص . او دا مذهب والا وايي چي په آیت مذکوره کي خدای ج برخه

د زائغینو اتباع د تاویل د متشابهاتو وکرخول . ( فأماالذين فی قلوبهم زیغ فیتبعون ماتشابه منه ابتغاء الفتنة وابتغاء تأویله . وروسته یې وویل : ومایعلم تأویله الاالله ، نو د راسخون فی العلم برخه باید داوي : آمنابه کل من عندربنا . یعني تفویض د علم د متشابهاتو وه خدای جل سلطانه ته .

او څرنګه چې ثناء الله وایي چې متشابهات اسرار بین الله ورسوله لم یفهم بها افهام العامة بل أفهام رسوله صلی الله علیه وسلم ومن شاء افهامه من کمل اتباعه .

**والجواب** : پر تقدیر د وقف پر الا الله باندي معنا د آیت داده : ( والله اعلم ) چي په تاویل د متشابهاتو څوهرڅوك نه دی خبر لکن د علیه السلام خبرتیا خو په سبب د اتصال تام او په داسي قرب کي ده چي په هغه کي نه بني مرسل ځای لري او نه ملك مقرب . نو علم د علیه السلام منافي د وقف سره نه دی .

**سوال** : پر تقدیر د وقف مذکور نو قاضي ثناءالله رح کُمل اتباعو ته د رسول کریم صلی الله علیه وسلم څرنګه علم د متشابهاتو ثابت کړی دی او سره ددي هغه اتصال تام چي علیه السلام درلودی د خدای جل جلاله سره بل چاته یي حصول تقریباً د حدالامکان څخه وتلی دی .

**جواب** : اولیاء کمل په سبب د متابعت تامه د علیه السلام لکه مرایای متقابله دي د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره ، نو هغه تاویلونه او اسرار چي په سینه نبوي ﷺ کي وه . ددوی په زړو کي هم کشف کیږي ، که څه هم اتصال نبوي ﷺ ددوی په برخه نه دی .

درویش وایي چي څوك تاویل د متشابهاتو وغیر ته د علیه السلام وایي په کشف جلي روحاني سره او په فیض روحاني سره او عقل سلیم صیقلي سره وایي ، هغه پر الا الله وقف نه کوي بلکه راسخون پر عطف بولي او یقولون حال بولي . وهومذهب اکثرالصوفیة الکرام رح کالمجدد الالف الثاني الشیخ احمد السرهندي رحمه الله . والشیخ عبدالرحمن البسطامي رحمه الله وهو مذهب کثیر من علماء الشافعیة .

وروی عن ابن عباس رضي الله عنه انا من الراسخین فی العلم و انا ممن یعلم تأویله .

درویش وایي چي زما په عقیده حق دادی لکه بعض محققین رح چي واي چي دا اختلاف په تاویل کي د مقطعاتو قرآنیه وو لفظي دی ، هغه څوك چي وایي چي تاویل د مقطعاتو بیله خدای ج وه هیڅ چاته نه دی معلوم د هغو مراد تاویل یقیني واقعي دی . او هغه کسان چي تاویل د دغو مقطعاتو قرآنیه وه علماء راسخینو ته هم حاصل بولي د هغو مراد تاویل ظني دی ، ددي سببه ددوی تر مابین اختلاف په تاویلو کي موجود دی کما مرّ سابقاً .

درویش وایي چي بناء پر دي تحقیق وقف پر راسخون باندي هم روا دی او پر الا الله باندي هم روا دی ، کماذهب الی هذا صاحب روح البیان فی تفسیر هذه الآیة فی آل عمران

**پوښتنه** : تاویل کوونکی د اوائل السُور د مقطعاتو د زیغ د تهمته او د ابتغاء تاویله د تهمت څخه لکه په آیت مذکوره کي چي اشاره ورته سوي ده: فأماالذین فی قلوبهم زیغٌ . الآیة څرنګه سري خلاصوي او سره ددي

چي د تاويلو نقل د لويو صحابه كرامو رض سوي دي او د لوړو تابعينو څخه نقل سوی دی او داولياءالله الكرامو رح څخه په ثبوت رسيدلي دي .

وحلـه علـى مـاتقررتُ بـه ولم تجـده انشـاءالله تعالى فـي مطاوى الكتب الكبار . دادی چي متشابهات تر مُقطعـاتو عـام دي . ولي چي الرحمن على العرش استوى د متشـابهاتو څخـه دي او د مقطعـاتو څخـه نـه دي. وكذالك : يدُالله فوق أيديهم د متشـابهاتو څخـه دی او د مقطعـاتو څخه نـه دی . وكـذالك كـل شيئٍ هالـكُ إلا وجهـه د متشـابهاتو څخـه دی . وكذالك قوله تعالى : وهل ينظرون الا ان يأتيهم الله في ظُلَلٍ من الغمام د متشابهاتو څخه دی . وفي الأحاديث المباركة امثال ذالك كثيرةٌ نو يوه ډلـه چي د مجسـمه ورتـه وايـي او دوی خدای جـل شـانه جسـم بـولي او اعضـاء ورلره وايي ، يعني مكـان ، جهت ، لاسونه او مخ او پښـي ورلـره وايي او مذكوره آيات او احاديث پر ظاهر حمل كوي چي پـه بـل نامـه وهابيه هم ورته وايي د زائغينو او د فتنه والا څخه پـه آيت كريمـه كي هـم دغه كسان مراد دي ، ولي چي همدوی د مسلمانانو پـه زړو كي همدغـه فتنه او زيغ و ضلال او شكوك او شبهات ور اچوي كـه چيـري خدای جسم نـه وای نـو دغـه الفـاظ پـه قـرآن مبـارك كـي ولـي راوړه . او اهـل السـنت والجماعت پس له دي څخه چي پـه كتـابو د عقائدو لكـه شرح العقائـد او شرح المقاصـد للعلامـه التفتـازاني رح والمواقـف للقاضـي عُضـدالملة والـدين رح او پـه شرح كـي د هغـه للسـيدالجرجاني رح او پـه نـورو ډيـرو كتـابو كـي ډير محكم دلائـل پر عدم جسـميت د خدای تعالى راوړي دي ، نو دوی وايي چي دا هر آيت د خدای جل شـانه پر يـو صـفت دلالـت كـوي چي هغـه وه آنحضرت صلى الله عليـه وسـلم او دده كمـل تابعـانو او اوليـاء

الله دخدای جل سلطانه کشف کړي دي ، نه وه عام مسلمانانو ته . او دا هم ډيره صحيح توجيه ده ، ولي چي په مقطعات قرآنيه وو کي خای د زيغ او ضلال او ابتغاء الفتنه دومره نسته لکه په آيـاتو مذکوره وو کي چي ظاهراً دلالت پر جسميت د خدای پاك دي كوي. التي هي محال على الله تعالى فتأمل غاية التأمل لان هذا المقام من زلة الأقدام و من الله التوفيق وعليه التكلان.

درويش وايي چي په مقطعـات قرآنيـه وو كـي يـوه نـوي فائده چي درويش په هغه موفق سوی دی بفضله تعالى داده ، او دا يوه داسي فائده ده چي ما په تجربه هم رسولي ده .

چي مجموع مقطعه چي په قرآن پاك كي راغلي په اسقاط د مكرره حورف دغه دي . ( الم ، المص ، الرٓ ، المرٓ ، كهيعص ، طه ، طسمٓ ، طسٓ ، يسٓ ، صٓ ، حمعسقٓ ، قٓ ، نٓ )

دا حروف وه دغو اسماء الهيه وو ته اشاره کوي . په دي معنا نه چي ددغو اسماء الهيه وو څخه مختصر دی . بلکه معنا دا چي دغه حروف په دغو اسماء الهيه وو كي سته : ( يـاالله ﷻ ، يااحـدﷻ ، يـا آخـر ﷻ ، يالطيف ﷻ يا ملك ﷻ يامؤمن ﷻ ، يامبدئُ ﷻ ، يا معيدُ ﷻ ، يامحيي ﷻ ، يا مميت ﷻ يا ماجدﷻ ، يا مقتدر ﷻ ، يامقدم ﷻ ، يا مؤخر ﷻ ، يامنتقم ﷻ ، يا متعال ﷻ ، يامالك الملك ﷻ ، يا مقسط ﷻ ، يا مغني ﷻ ، يامعطي ﷻ ، يا مانع ﷻ ، ياصمدﷻ ، ياصبور ﷻ ، يا رحمن ﷻ يـارحيم ﷻ ، يـارزاق ﷻ ، يـارافع ﷻ يارقيب ﷻ ، يـاروف ﷻ ، يارشيدﷻ ، يـاكبير ﷻ ، يـاكريم ﷻ ، يا هـادئ ﷻ ، يـاعزيز ﷻ ، يـاعليم ﷻ ، ياعـدل ﷻ ، يـا عظيم ﷻ ، يـاعلي ﷻ ،

یاعفوﷻ ، یاسلامﷻ ، یاسمیعﷻ ، یاحلیمﷻ ، یاحفیظﷻ ، یاحسیب ، ﷻ یاحکیمﷻ ، یاحقﷻ ، یاحمیدﷻ ، یاحیﷻ ، یاقادرﷻ یاقیومﷻ ، یاقويﷻ ، یاقهارﷻ ، یاحسیبﷻ ، یاقدوسﷻ ، یانورﷻ ، یانافعﷻ ، یاطیبﷻ .

نو دغه مقطعات او دغه اسماء الهیه او سره د هر اسم الیه سره جل جلا له هم ووایي . او په آخیر کي درود پر علیه السلام هم ووایي او کوم مُهم او حاجت چي لري وه خدای جل شانه وه دربار ته یې عرض کړه . او دري شپې یا ورځې پرله پسې داغسي وکړی انشاءالله په اسقاط د مکررو حروفو په حساب د ابجد ۶۹۳ واره کي دا حساب کړی نو به دا ورد پوخ سي . والله المستعان ، والمعطي لکل سوال

**پوښتنه** : په عمومي کتابو کي د تفاسیرو ( الم ) وغیره مما فی أوائل السُور حروف مقطعه وایي . ایا رښتیا دا حروف دي او که څرنګه ؟

**جواب** : قاضي بیضاوي رح په خپل تفسیر کي وائي که د حرف څخه معنا لغوي مراد ده یعني طرف یا ما یتلفظ به خو دغه مقطعات حروف دي ، او که د حرف څخه مراد اصطلاح متجدده د نحاتو مراد وي ، نو دغه مقطعات حروف نه دي بلکه اسماء دي . لکن مدلول یې حرف دی مثلاً مدلول د الف (آ) او مدلول د لام (لَ) او مدلول د میم (م) دی ، نو شاید چي اصطلاح د نحاتو حروف ورته ویل به تسمیه د دال په نامه د مدلول وي .

**درویش** وایي چي دلیل د اسمیت ددي الفاظو دادی : اول خو امام النحات خلیل بن احمد ؒ او امام ابوعلي ؒ تصریح په اسمیت

ددغو الفاظو کړي ده . او دوهم قاضي بیضاوي وايي چي تعریف د اسم نحوي پر دوی صادق دی . یعني کلمةٌ دلت على معنى في نفسها غير مقترنٍ بالأزمنة الثلاثة . او دریم خواص د اسم په دغو الفاظو کي سته . لکه تعریف نحو اللام وغیره او تنکیر و تنوین لکه لامٌ و میمٌ ، ونحوهما وغیر ماذکرنا من خواص الإسم . نو بناء على اسمیتها په حدیث د ابن مسعود ﷺ کي چي راغلي دي چي که څوك يو حرف د قرآن قرائت کړي هغه لره حسنه سته والحسنةُ بعشر امثالها .الحدیث ، نو که څوك (الم) ووايي ديرش ۳۰ نیکی یي ثواب دی ، ولي الألف حرف ، واللام حرفٌ، والمیم حرفٌ یعني مدلول

**فائده** : ددغو مقطعاتو سره که عامل موجود وو ، نو پر مقتضى د عامل اعراب ورکول کیږي نحو هذامیمٌ مثلاً بالرفع . وکتبتُ الباءَ بالنصب، وبدئتُ بالألف بالجر او که یي عامل نه وو موجود ، نو بیا په وقف ویل کیږي نحو الفْ، لامْ ، میمْ ، وعندالوقف یجوز التقاء الساکنین فیها على غیر مده نحو قافْ ، صادْ .

**سوال** : ستا په دي تفسیر کي ډیري عسیر الفهمه خبري راخي لکه چي په بیان د مقطعات قرآنیه کي چي مو کړي دي ، او د مقطعات قرآنیه وو او متشابهاتو قرآنیه په فرق کي چي بحث طویل کړی دی . ایا ګمان کوی چي په ورته بیاناتو ټوله مطالعه کوونکي د تفسیر وپوهیږي ؟

**جواب** : هو، زه هم دا خیال نه لرم چي خوانندہ ګان محترم نر او ښځي دي ټوله د تفسیر په ټوله مسئلو او په سوال جواب دي وپوهیږي کن الحمدلله د فقیر ټوله تصنیفونه عوامو او طالبانو او ملایانو ټوله مطالعه کوي

بعض د استفادي دپاره او بعض چي حاسدان وي د عيب او غلطيا د فقير دپاره يي مطالعه کوي ، تر څو چي د غيبت موقع په لاس ورسي ، نو د قرآن پاك د فهم سره موافق هره خبره چي زما په نيز لازمه وي زه يي ذکر کوم .

ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛۚ فِيْهِ ۛۚ هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ۝

دا کتاب دی هيڅ شک نشته پکښي کي او هدايت دی دپاره د پرهيزګارانو .

---

**پوه سه !** چي اکثر مفسرين رح وايي ای هذا الکتاب يعني دغه کتاب چي محمد عليه السلام يي وايي او مشرکان يي درواغ بولي . ددي تفسير څخه غرض دادی چي ذالك خو اشاره وه بعيد ته وي او قرآن پاك خو نژدي دی او نژدي شي ته خو اشاره په لفظ د هذا کيږي ، نو حاصل د جواب دادی چي چونکه قرآن مبارك عظيم الشانه کتاب دی ، نو د عظيم رتبي په سبب يي لفظ د اشارة البعيد پکښي استعمال کړی تنزيلاً الرتبي مکان البُعد المکاني .

**سوال** : قرآن مبارك خو په وخت کي د نزول د سورت البقره نه وو تکميل سوی ، نو څرنګه اشاره ورته کيږي .

**جواب** : په ذالك کي اشاره ده و هغه بعض القرآن ته چي تر سورت البقره دمخه نازل سوي وه .

درويش وايي چي تا دمخه واوريدل چي سورت تر ۸۷ سورت چي په مکه مکرمه کي نازل سوي وه ، وروسته سورت بقره اول سورت مدني

دی چي نازل سوی دی او یا وه ټوله قرآن مبارك ته اشاره ده اقامةُ للجزء مقام الكل .

د ترکيب د لاري بعض مفسرين وايي چي ذالك مبتداء ده او الكتاب يي خبر دی . په علم معاني کي وايي چي مبتداء او خبر چي دواړه معرفه وي ، نو خبر به په مبتداء کي حصر وي او سره ددي چي کتاب خو جنس دی او قرآن مبارك يي يو فرد دی ، نو حصر د جنس په يوه فرد کي څرنګه کيدای سي ؟

**جواب** : په علم معاني کي دا هم وايي چي حصر د جنس په داسي فرد کي روادی چي هغه د جنس کامل فرد وي مثل هو الرجل ای زيد مثلاً ولاريب أن القرآن الكريم اكمل من جميع افراد الكتاب. او داسي جواب هم سته چي د الكتاب تعريف دپاره دِ عهد دی أی الكتاب المعهود الموعود په قرآن کريم کي قال جلّ ذکره : ( إناسنلقي عليك قولاً ثقيلاً ) او يا موعود په تورات او انجيل کي دی ، نو پر دي تقدير ذالك الكتاب پوره جمله ده . او لاريب فيه جلا جمله ده . او داسي هم روا ده چي الكتاب دي صفت د ذالك وي او خبر دي وروسته جمله وي يعنی لاريب فيه .

او بعض مفسرين وايي چي مبتدا محذوفه ده يعني (هذا) او ذالك الكتاب يي خبر دی او د کتاب تعريف دپاره دعهد دی . حاصل د معنا دادی چي دغه کتاب چي تاته يي وحی کيږي دا هغه کتاب معهود دی چي موعود په تورات او انجيل کي وو . بيضاوي ، تفسير مظهري ، روح البيان ، روح المعاني ، درويش .

**پوه سه !** چي لفظ د کتاب مصدر دی په معنا د مکتوب دی او اصل معنا د کتب جمع او ضم دی ، نو کتاب هم یو لفظ وه بل ته جمع کوي او هم ددي سببه لښکر ته کتیبه وایي لإنضمام افراد العسکر فیه . م ، ب ، ر

**فائده** : هغه ترکیب چي روح البیان والاکړی دی چي (الم) نوم سي د قرآن ، نو (الم) مبتداء ، ذالك الكتاب یي خبر دی ، ضعیف ترکیب دی، ولي چي دمخه تیره سوه چي حروف مقطعة په اوائلو کي د سُورو نومان د قرآن کښل ډیره ضعیفه توجیه ده . فتذکر .

**پوه سه !** چي کلمه د (لا) په لاریب فیه کي دپاره د نفي د جنس ده او ریب یي اسم دی مبني پر فتحه دی . کما هو القانون النحوي او فیه خبر دی . او هدی للمتقین حال دی .

**سوال** : نفی د جنس شك د قرآن څخه څرنګه صحیح کیږي مع أن الكفار باجمعهم منكرون عن كون القرآن الكريم كتاب الله والمبتدئة من أهل القبلة. شك دی په معانیو کي د متشابهات القرآن ، حتی پر ظاهر یې وجه او ید وغیره حمل کړي دي کما مرَّ تفصیله.

**والجواب** : چي خدای پاك خو نفي د شك د قرآن څخه کړی دی په دې معنا چي قرآن د شك ځای نه دی . که څوك انصاف وکړي او د قرآن پاك په معانیو او په کلماتو د حسد څخه په پاك زړه غور وکړي او د خلګو څخه یي نفي د شك نوي کړي ، نو دا داسي مثال لري چي سړی ووایي چي په عسلو کي تریخ والی نسته . که څه هم په خوله د صفیراتي ترخه معلومیږي . فالشمس شمسٌ و ان لم یرها الضریر . و أمثال ذالك كثيرة.

او داسي جواب هم ممکن دی چي لاريب فيه په ظاهره جمله خبريه ده لکن دلته په معنا دی نهي ده يعني لاترتابوا في القرآن . نحو قوله تعالى : ( فلارفث ولافُسُوق ولاجدال في الحج ) يعني د حج په ايامو بدي خبري او فسق او جنګ مه کوی . كذا في روح البيان

**قوله هدىً للمتقين:** هدىً يا منصوب دی او حال د ضمير څخه د فيه دی او للمتقين متعلق به او يا مرفوع دی خبر د مبتداء محذوف دی ای هو هدىً. او پر هر تقدير حمل يې پر کتاب يا مبالغتاً دی لکه زيدعدل او يا هدىً. په معنا د هادياً دی .

**پوه سه !** چي هدايت معنا كه ارائة الطريق سي يعني الدلالة على مايوصل ، نو كه څه هم هدايت دقرآن په دي معنا عام دی ولهذا قال الله تعالى : ( هدىً للناس . لکن تخصيص د متقين به ددي کبله وکړی چي په هدايت د قرآن تقوی دارو انسانانو نفع اخستي ده بالايمان به والعمل بأحكامه .

او كه هدايت دلالت موصله سي ، نو تخصيص د متقين ظاهر دی او تقوی په اصطلاح د شرع شريفي کي ځان ساتنه دهغه شي څخه چي د سړي ضرر وي په آخرت کي ، نو كه عقائد وي او كه اعمال وي روح

په روح البيان کي وايي چي د تقوى شرعي دري دري درجي دي .

اول ساتنه د ځان د د ابدي دوږخ چي هغه په كلمه د لااله الاالله محمد رسول الله پوري مربوطه ده صدقا من قلبه يعني چي د هر قسمه كفر څخه سړی ځان وساتي ، نو هم په دي معنا كلمه طيبي ته كلمة التقوى ويل کيږي كما في قوله تعالى : ( و ألزمهم كلمة التقوى ) وهذه المرتبة أدنى

من مرتبة التقوی .

دوهمه مرتبه ځان ساتنه د هري ګناه څخه . که دقسمه د فعل وي لکه زنا وغیره او که د ترك وي لکه ترك د صلات وغیره . یعني کول د ټولو اوامر الهیه وو او ترك دټولو منهیاتو . وهذا التقوی هو المتعارف فی العرف العام کما یقال فُلان متقیٌ او دغه معنا مراد ده په هغه آیت کي .

( ولو أن أهل القری آمنوا واتقوا ) .

او دریمه مرتبه د تقوی چي تقوی د خاصو بندګانو د خدای ﷻ ده لکه په دي آیت کي چي اشاره ورته سوي ده : ( یاایهاالذین آمنوا اتقواالله حق تقاته. الآیة ) هغه تقوی داده چي د سړي زړه په غیر پوري د خدای جل سلطانه مشغول نه وي . چي وه دي مرتبي ته انبیاء الله صلی الله علیه وسلم و اولیاء الله رح علی تفاوة درجاتهم رسیدلي دي . ومن الله التوفیق .

په رساله قُشیریه کي ددغسي تقوی مثال یي په ابن سیرین رحمه الله ویلی دی . چي دده څلوېښت منګیه غوړي وي او دده مریي د یوه منګي څخه مړ موږك راکښلی وو ، نو ده پوښتنه خندي وکړه چي د کم منګي څخه دي موږك راوکښی ؟ مریي ورته وویل چي زما هغه اوس په یاد نه دی ، نو ابن سیرین رح څلوېښت سره منګي توی کړه .

او د امام اعظم رح تقوی هم ددي تقوی مثال دی چي دی مبارك په عین ګرمي کي وه سایي ته د دیوال د پوروړي نه دریدی . او د ابه یي ویل چي په حدیث شریف کي راغلي دي : کلُ قرضٍ جرَّ به خصعاً فهو ربی .

او ویل کیږي چي بایزید بسطامي رح یو وخت قمیص پریولی او یو شاګرد هم ورسره وو ، شاګرد ورته وویله چي په دغه دیواله کي لرګی ټك وهم او دا قمیص به پوري وځړوم . ده مبارك ورته وویله چي دا خو د

صاحب الجدار تاوان دی . شاگرد یې ورته وویل چې ددې درختي پر ښاخو به یې اوار کړم . ده رح ورته وویل چې په دې سره به بعض نازك ښاخونه د درختي ژوبل سي ، نو هغه ورته وویل : نو څه په وکړم ؟ ده رح ورته وویل چې زما پر شا یې یو طرف اوار کړه چې هغه وچ سي بیا به یې بل طرف پر اوار کړي .

دغه رنګه په تاریخ بغداد کې د امام اعظم رح په مناقبو کې راغلې دي چې دده مبارك پر یو یهودي پور باندې وو ، نو امام اعظم رح دپاره د پور د یهودي کور ته ورغلی او د پښو په چپلی پوري خوشایي یا بل مرداري مښتې وه ، ده چې څپلی وخنډل ، هغه مرداري د یهودي د سرای پر دیوال ولګیدله . امام اعظم رح ورته حیران سو چې دغه مرداري که په یو شي د دیواله څخه جلا کوي ، خو د دیواله خاوري ورسره جلا کیږي . او که یې پریږدي ، خو د دیواله بدنمایي ده ، نو د خان سره یې دا فیصله وکړه چې یهودي ته به دروازه ور وټکوم او دهغه څخه به مشوره واخلم چې دغه مرداري څرنګه پاکه کړم ؟ دروازه چې یې ور وټکول ، یهودي چې راووتی هغه امام ته د پور عُذر کاوه ، امام اعظم رح ورته وویل چې ته د پور عُذر پریږده ، ماته مشوره راکړه چې دا ستا دیوال د مرداری څخه زه څرنګه پاك کړم ؟ یهودي چې د امام المسلمین رح وه دي انصاف او تقوی ته وکتله امام رح ته یې وویله چې د دیوال تر پاکی دمخه زه خان خپل د نجاست څخه درته پاك کړم . لا اله الا الله محمد رسول الله یې وویل او مسلمان سو .

ګرانو لوستونکو ! که تاسي غواړئ چې د امام المسلمین سراج الائمت ابوحنیفه رحمه الله بش پر تاریخ او دده تقوی کارنامي غواړئ چې زده کړئ نو د درویش پښتو شرح پر ابوالمنتهی مطالعه کړئ ، نو انشاء الله

تعالى د زړه په مو اطمنان او دخپل امام مُحبت کلي به درته حاصل سي.

# الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ

او متقین هغه کسان دي چي ایمان لري پر غیب

**پوه سه!** چي الذين مبتداء ده او یومنون بالغیب يي خبر دی. او ټوله جمله صفت دی د المتقين ده.

**فائده**: بعض اهل التفسير د تقوى تفسير په دي سره کوي چي هغه کار چي په شرع کي مناسب/نه وي هغه کار پرېږدي. من الكفر بجميع أنواعه والأعمال السيئة كالزنا وغيره بجميع افراده، نو پر دي تقدير الذين يومنون آه صفت مقيده د متقين ی، يعني دا صفت قيد دی د متقين دپاره، ولي تقوى پر دغه تفسير متقين ايمان بالغيب آه ته نه شامله، نو ځکه یي متقین په قيد مقيد کړي تر څو چي دلالت وکي پر دي چي متقين په سره د ترکه د مالاينبغي في الشرع په دي اوصافو سره هم موصوف دي يعني ايمان بالغيب آه. او بعض مفسرين رح تفسير د تقوى په ترک د مالاينبغي في الشرع من الكفر وغيره من المعاصي. او کول د ما ينبغى في الشرع من الايمان وسائر الحسنات الشرعية. نو چونکه متقين پر دغه تفسير والذين يومنون آه ته هم شامل دی، نو دا صفت قيد نه دی بلکه توضيح او بيان د متقين دی.

**پوښتنه**: دا صفت به څرنګه بيان سي د متقين. او سره ددي چي په دي صفت کي بعض ماينبغي من الايمان بالغيب و اقامة الصلوة والانفاق ذکر دي، نو روژه او حج وغيره کم دي چي ذکر دي او دغه رنګه د مالاينبغي

څخه هیڅ شی یکښې ذکر نه دي ؟

نو ددي سوال جواب قاضي بیضاوي رح او روح البیان والا و تبعه قاضي ثناء الله په دي ډول ورکوي چي په دي صفت کي اصول د اعمال باطنه چي ایمان دی ذکر سوی چي ټولـه عقائد حقه وو تـه شامل دی . او د اعمال خبیثه باطنه وو چي کفر دی ترک لره یي مستلزم دی . او بل اقامة الصلوة ذکر سوی دی . چي اصل د اعمالو بدنیه وو دی او د ټولو اعمال سیئه لکه زنا وغیره ترک لـري مستلزم دی کما قال الله تعالی : ( إن الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر ) چي معنا یي داده چي لمونځونه چي څوك د شریعت سره برابر ادا کوي هغه به د ټولو بدعملو څخه منع وي . او علیه السلام وایي : الصلوة عمادالدین او په دي آیت کي صفت د انفاق ذکر دی ، چي ټولو عبادات مالیه وو ته شامل دی . څکه علیه السلام وایي : الزکاة قنطرةُ الإسلام.

**حاصل د جواب دادی** : چي ددي آیت په مذکوره دري امورو کي ټوله ترک د مالاینبغی او اتیان په ماینبغي چي مفهوم دتقوی وو نغښتي دي و لهذا یکون هذه الآیة صفت موضحة للمتقین.

او بعض مفسرین رح چيِ تفسیر ثاني دتقوی کوي دا هم وایي چي الذین یومنون آه دي صفت مادحه د المتقین دی چي په صفت مادحه کي ذکر د ټولـو اوصافو د موصوف نـه غـواړي ، بلکـه د عـالي صفاتو د موصوف ذکر غواړي وههنا کذالك کما سمعت آنفا . تحقیق الإیمان.

**پوه سه** ! چي ایمان د بابه د افعال دی مجرد یي امن دی ، نو مومن خدای ﷻ او رسول علیه السلام په امن کي کوي د تکذیب څخه او یاخیل

خان دعذاب النار څخه بيغمه او په امن کي کوي او د خدای ﷻ په اسماء کي مومن راغلی دی په دي معنا چي خدای جل شانه خپل مومنان بنده ګان بيغمه او په امن کي کوي د عذاب النار څخه په فضل او کرم سره .

**پوه سه !** چي ايمان په نيز د ابوحنيفه رحمه الله او دده د متابعانو په نيز: هوالإقرار او تصديق دی په ټولو هغه شيانو چي يقيناً معلوم دي چي دا شيان د دين څخه د عليه السلام دي لکه خدای ﷻ يو بلل او نبوت حق ګڼل او بعث بعد الموت او جنت او دوزخ رشتيا بلل وغيرها من العقائد الحقه . لکن اقرار جزء لازم نه دی بلکه په عذر سره ساقطيږي کما في وقت الاكراه .

او بعض حنفيان رح وايي چي ايمان فقط تصديق مذکور دی او اقرار يي شرط دپاره د اجراء د احکام شرعيه وو دی لکه نکاح د جنازي ، لمونځ او دفن په مقابرو کي دمسلمانانو وغيرها وذالك لان التصديق القلبي مبطنٌ و يؤيّده ظاهر الاحاديث النبوية ﷺ .

او ايمان په نيز د جمهورمحدثينو رح او معتزله وو او خوارجو مجموع دري شی دي . التصديق بالقلب والإقرار باللسان والعمل باالاركان وهو مختار الشيخ الاشعري رحمه الله واتباعه نو که څوك اعتقاد قلبي نه لري اقرار باللسان په کوي . هغه کافر منافق دی . او که څوك اقرار نه کوي يعني سره د قدرته او د طلب د اقرار ، نو هغه کافر مجاهر بولي . او که عمل بالاركان څوك نه کوي هغه فاسق دی په اتفاق د اهل الحديث والمذاهب الصحيحة . او په نيز د خوارجو هغه سړی کافر دی . او په نيز د معتزله وو دا سړی مومن نه دی لإنتفاء جزء الإيمان وهوالعمل فيه . او کافر هم نه

دی لعدم الانکار ددوی په نیز په کفر کي انکار شرط دی .

نو دوی په مابین کي د ایمان او کفر واسطه وايي . دا نه وايي چي په مابین کي د جنت او دوزخ واسطه سته لأن مرتکب الکبائر مخلدٌ فی النار عندهم اذا مات بلاتوبة کما فی حاشیة المولی الخیالي علی شرح العقائد.

درویش وايي چي تفصیل ددي مذاهبو بلکه د نورو مذاهبو د ضلال په کتاب الملل والنحل لمحمد بن عبدالکریم رح مطالعه کړه . او د بعض مذاهبو لکه مذکوره مذاهب په کتابو کي د عقائدو مطالعه کړه لکه شرح العقائد النسفي للعلامة التفتازاني رح و حاشیة النبراس علیه و کتاب شرح المقاصد ایضاً للعلامة التفتازاني رحمه الله والمواقف للقاضي عضدالملة والدین رح وشرح السید الجرجاني رح علیه و شرح العقائد الجلالي او کتب التفاسیر الطویلة الاذیال تفسیر للامام الهمام الرازي رح المسمی بالتفسیر الکبیر ، والتفسیر المسمی بروح المعاني و غیر المذکور من کتب العقائد والتفاسیر . والله الموفق للحق الیقین فی امورالدین .

وفی روح البیان الغیب مصدرٌ اصلاً . لکن پر غائب شي اطلاق کیږي مجازاً و توسعاً . او غائب دوه قسمه دی ، یو قسم هغه دی چي هیڅ دلیل نه وي باندي نه عقلي او نه نقلي وهوالمراد فی قوله تعالی : ( وعنده مفاتیح الغیب لایعلمها إلاهو ) ددي قسم د علم دعوه کول کفر دی او بل قسم هغه دی چي پر هغه باندي دلائل عقلیه او نقلیه موجود وي لکه صانع العالم وصفاته من القدرة والعلم وغیرهما . والنبوة ومایتعلق بها من الاحکام والشرائع لکه لمونځ ، روژه ، حج ، وغیرها والیوم الآخر و احواله من البعث بعدالموت والحساب والجزاء بالجنة اوالنار وغیرها .

مراد دلته دغیب څخه دوهمه معنا ده ، نو ( باء ) د بالغیب صله د ایمان ده .

**سوال** : ایمان خو په خپله متعدي دی نو حرف جر څه کوي ؟

**واجـــاب عنه البروسوي** رحمه الله ان التعدیة بالباء لتضمین الایمان معنی الاعتراف ای یؤمنون معترفین بالغیب . او یا ایمان مجازاً په معنا د وثوق دی أی موثقین بالغیب . حاصل دا چي پر تقدیر بالغیب دمفعول به په ځای کي دي او که چیري غیب پر خپله معنا مصدري پاته سي ، نو ( باء ) دپاره د ملابست ده . تقدیر یي دادی : یؤمنون متلبسین بالغیب ، نو معنا داده چي دوی د خلکو څخه غائب وي هم ایمان یي وي لا کالمنافقین : (إذا لقوالذین آمنوا قالوا آمنا وإذا خلوا إلی شیاطینهم قالوا إنا معکم . الآیة.

او یا دامعنا د غیب ده چي د مومن به څخه چي علیه السلام دی غائب وي یعني آنحضرت صلی الله علیه وسلم اودده معجزات یي نه وي لیدلي . لکه صحابه کرامو رض تر زماني وروسته خلک إلی یوم القیامة .

**وردً فی الخبر** چي حارث بن مغیروه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته وویل چي موږ تاسي اصحابو ته د رسول کریم صلی الله علیه وسلم لیدل دا لوی شرافت او د ثواب شی ګڼرو چي په موږ کي نشته ، یعني لیدل او صحبت د علیه السلام . نو عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ورته وویل چي موږ تاسي ته دا شرافت ثابته وو چي تاسي سره ددي چي علیه السلام مو نه دی لیدلی او ایمان پر لری . قال و ان افضل الإیمان ایمانٌ بالغیب ثم قرء : ( ألذین یؤمنون بالغیب ) نو ددي خبري څخه دا معلومیږي چي د غیب څخه غیبت

د مومن په مراد دی والله أعلم بالصواب

او بعض مفسرین رح وایي چي د غیب څخه زړه مراد دی لأنه غائب مستور ، نو معنا د آیت داده: ( یؤمنون بقلوبهم یعني لا کاالذین یقولون بأفواههم مالیس فی قلوبهم ، نو کلمه د ( باء ) پر دي تقدیر دپاره د آلة لکه کتبتُ بالقلم.

**ښهائه فائده** : درویش و ایي چي که څه هم د عقائدو په کتابو کي وایي چي ایمان او اسلام یو دي ، لکن په عرف کي ایمان په عقائدو کي ډیر مستعمل دی او اسلام په عباداتو کي سائع دی ویدل علیه الحدیث الذي رواه البخاري رحمه الله ومسلم رحمه الله عن عمربن الخطاب رضي الله عنه بینا نحن عند رسول الله صلی الله علیه وسلم ( په دي مابین کي چي موږ په نیږ د علیه السلام سره حاضر وو ) إذ أقبل رجل شدید بیاض الثیاب شدید سواد الشعر ( چي ناګاه راغلی یو سړی چي سخت سپین کالي یي وه او ډیر سخت تور ویښتان یي وه ) ما یُری علیه أثر السفر لایعرفه أحد منا ( او نه معلومیدی پر ده اثر د سفر ، ولي چي نه یي کالي خیرن وه او نه یي ښتي سپیري وي او په موږ کي هیڅ چا هم نه پیژندی . یعني دا سبب د حیرت زموږ وګرځیدی ، که مسافر وایي نو خو به څه ناڅه اثر د سفر پر معلومیدای او که د مدیني سړی وای موږ به یو چا پیژندای ) حتی جلس بین یدی رسول الله صلی الله علیه وسلم و رکبته تمس رکبته ( حتی دا سړی راغلی په مخ کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښینستی او دده زنګون د علیه السلام د زنګون سره ومُښتی ) فقال یامحمد أخبرني عن الإسلام فقال النبي صلی الله علیه وسلم أن تشهد أن لاإله الا الله و أن

محمدرسول الله و تقيم الصلوة و تؤتی الزکوة وتصوم رمضان و تحج البيت إن إستطعت إليه سبيلاً ( نو هغه سړي وویل : ماته خبر راکړه د اسلام . نو عليه السلام ورته وویل چي ته به شاهدي اداء کوي په دي سره چي لااله الا الله و انّ محمدرسول الله او پنځه وخته لمونځ به کوي او زکات به ورکوي او یوه میاشت روژه به نیسي او حج د بیت الله شریفي که دي طاقت دلاري یعني دخرڅ وو کوي ) فقال صدقت فتعجبنا من سواله وتصديقه ( نو هغه سړي ورته وویل : رشتیا دي وویله . عمر رض وایي نو موږ تعجب وکړی وه سوال ته دده او تصدیق ته دده . وجه د تعجب داده چي څوك چي سوال کوي هغه خو باید ناخبره وي . او څوك چي تصديق دځاکوي هغه خو لازمه داده چي دمخه هم خبر وي ) ثم قال فماالايمان؟ قال أن تؤمن بالله وملائكته وكتبه ورسله والبعث بعدالموت والجنة والنار والقدر خيره وشره فقال صدقت ( نو بیا هغه سړي وویل چي نو ایمان څه شی دی ؟ نو عليه السلام وویل چي ایمان دادی چي ته تصدیق لري پر خدای ج یعني خدای سته او واحد دی بي شریکه ، یعني نه په ذات کي او نه په صفاتو کي او ته به ایمان لري پر ملائکو دخدای ج یعني ملکي عِبادٌ مُکْرَمُوْن دخدای ج دي لايعصون الله یعني د خدای ج لونړي به یي نه بولي لکه مشرکینو د مکي چي به ویل کما قال الله تعالى انكاراً عليهم : ( ألكم الذكر وله الأنثى تلك إذاً قسمة ضِيزَى )

**پوه سه !** چي ملائکه یو لوی مخلوق د خدای ج دی چي نه په مثال د انسانانو نر دی او نه ښځي او خورك او څښك هم نه کوي او توالد هم نه لري . او ته به ایمان کوي پر ټولو کتابو د خدای جل جلاله چي یو سل او

دیارلس ۱۴ کتابـه دي . او تـه بـه ایمـان لـري پر ټولـو رسولانو دخدای ج یعني چي ټوله پر حق دي او دخدای ج دخوا دپاره د هدایت او دعوت د خلکو را استول سوي وه . (لانُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ) په نفس نبوت لکه یهودو چي علیـه السـلام او محمد علیـه السـلام پـه رسـالت نـه مني . یا نصاری چي موسی او محمد علیهما السلام په رسالت نه منی . موږ داسي نه وايو .

**فائـــده** : پـه ټولـو کتـابو کـي وايـي چي رسول هغه څوك بولي چي نوی شریعت لري . او نبي عام دی . که نوی شریعت لري او که د دمخه نبي په کتاب او شریعت عمل کوي . نو نبي عام دی تر رسول . په حدیث شریف کي رسول په دغه معنا نه دی . ولي په دي معنا رسولان ۳۱۳ دي ، نو نور ټوله انبیاء ع د ایمان څخه خارجیږي بلکه رسول په حدیث مذکور کي په معنا د نبي دی .

**فائده** : د انبیاء علیهم السلام صحیح تعداد نه دی معلوم . په احادیث مبارکه وو کي مختلف عددونه راغلي دي لهذا په ایمان کي د انبیاء ع په عدد معین نـه یـادوي او انبیـاء علیهم السـلام د یولـك څلیرویشت زره ۱۲۴۰۰۰ په شاوخوا کي دي . او ته به تصدیق لري پر بعث یعني ژوند پس له مرګه ، یعني په ورځ د قیامت کي ، او مشرکان بعث بعدالموت نه مني . او تـه بـه ایمـان لـري چي جنت دپاره د مومنـانو او دوږخ دپاره د کافرانو سته . او ته بـه ایمـان لـري پر تقدیر د خیـر او شر د طرفـه څخـه د خدای ﷻ دی او داسـي بـه نـه وایـي چي دخیـر او شـرخالق بنـدګان دي او خدای پاك هیڅ کار نه پوري لري . لکه معتزله چي وایي . او داسي بـه هـم نه وایي چي ښه او بد کارونـه ټولـه خدای جل جلا لـه پـه بنـدګانو کـوي او

بندګان صرف مجبور محض دي لکه جبریه چي وایي بلکه خالق د افعالو د بندګانو که د خیر عمل او که د شر وي خدای جل سلطانه دی . او بندګان کاسبان دي د خپلو عملو ، په دي معنا چي بنده په خپله اراده کوي د کار د خیر یا د شر ، نور نو خالق او موجد خدای ج دی وهذا هو مذهب أهل السنة والجماعة رح وهو المذهب المتوسط بین افراط المعتزلة وتفریط الجبریة.

**پوښتنه** : ضمیر د ( خیره وشره ) خو په اتفاق وه قدر ته راجع دی او قدر د خدای ج فعل دی . دخدای ج په فعل کي خو د شر لار نشته ؟

**جواب** : هو، دخدای ج کارونه ټوله خیر دي ، لکن په دي ځای کي قدر په معنا د مقدور دي ، نود عبارت معنا داسي ده چي ته به ایمان لري چي مقدور که خیر وي لکه عبادت او که شر وي لکه معصیت د جانبه د خدای ج دی یعني خالق یي خدای جل شانه دی . او که قدر پر خپله معنا پریږدي ، نو خیروالی او شروالی یي په اعتبار د مقدور دی والمآل واحد فتدبّر ( بیا هغه سړی وه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل : ) فما الإحسان؟ قال أن تعبدالله کأنك تراه فإن لم تکن تراه فإنه یراك قال صدقت ( چي احسان څه شی دی ؟ مراد ده د احسان څخه اخلاص په عبادت کي دی . علیه السلام ورته وویل چي احسان دادی چي ته به عبادت دخدای داسي کوي لکه ته چي خدای ج وینی یعني په حضور قلبي او عجز ظاهري کما یفعله العبیدُ فی محضر ملوکهم بل أعلی منه لأنه تعالی مَلِك الملوك لامَلِك حقیقةً إلاّالله ( او که ته خدای ج نه وینی خدای ﷻ خو تا وینی یعني ستا په عبادت او په اخلاص سره علم لري)ثم

قال فاخبرني عن الساعة قال ماالمسئول عنها بأعلم من السائل . قال صدقت زبيا هغه سړي ورته وويل : ماته خبر راكړه د قيامت يعني تعيين يې راته وكړه چې كله به قيامت وي؟ عليه السلام ورته وويل چې نه دی هغه څوك چې دا سوال ځندي وكړه سو يعني نفسه ډير خبر په قيامت سره تر سائل چې ته يې . يعني ماوتا په عدم علم د تعيين د قيامت سره برابر يو . هغه ورته وويل صدقت ) قال فاخبرني بأماراتها ( نو هغه سړي ورته وويل چې نو ماته خبر راكړه د علامانو د قيامت . يعني د نږدې والي د قيامت) قال إذا ولدت الامة ربتها و ان ترى الغُرات الحفات رعاء الشاء يتطاولون فى البُنيان . قال صدقت ( نو عليه السلام ورته وويل چې يوه علامه داده چې وزيږوي مينځه خپل بادار .

**پوه سه !** چې د زيږيدو د خپل رب شارحينو د احاديث مباركه وو رقم رقم ترجمې او تاويلونه كړي دي ، خو آسانه تاويل يې دادی چې عقوق د امهاتو به ډير سي او لور به پر مور داسې حكمونه كوي لكه بادار پر مينځه . او بله علامه د قرب القيامت داده چې ته به ووينې هغه كسان چې لغ بدن او لڅې پښې به ګرځيدله والمراد والله أعلم چې غايت مسكينان به وه . دوی به اوس غټې غټې بنګلې او لوی جګې جګې كوټې لري . هغه سړي ورته وويل صدقت ، نو هغه سړی ولاړی . درويش وايي چې ددغه په باقي برخه كې روايات مختلف راغلي دي . په يوه روايت كې داسې راغلي دي چې هغه سړی چې د مسجدنبوي ﷺ څخه ووتی عليه السلام خلكو يعني صحابه كرامو رض ته وويل چې رُدُّوهُ عَلَيَّ چې داسړی بيرته راولی . صحابه رض چې پسې ور ووتل سړی ورك سو ، نو عليه السلام وه صحابه رض ته وويل چې داسړی جبرئيل امين



Scanned by CamScanner

وو . ددي دپاره راغلي وو چي تاسي ته دين در وښيي . يعني چي دده مهمي پوښتني او زما جوابونه او دده تصديق زما د خبرو تاسي مشاهدتاً په خپلو غوږو واوري والله أعلم بمراد رسوله ﷺ

# وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ

**او ادا کوي دوی پنځه لمونځونه د شريعت عزار سره موافق په فرائضو په واجباتو ، په سنتو او مستحباتو کي او په آداب باطنه وو کي لکه خشوع او خضوع او پر طريقه د احسان کمامرّ في الحديث النبوی ﷺ کي**

---

**پوه سه !** چي حضرت الشيخ الکامل فی علم الباطن والظاهر اسماعيل حقی البرسوی رح په تفسير روح البيان کي وايي چي لفظ د صلوة په لغت ددغو معاني دپاره وضع دی الدعاء کما فی قوله تعالی: (وصلِّ عليهم ) او دعاء کوه ود دوی ته يعني اصحاب صدقه ته الثناء کما فی قوله تعالی (ولاتجهر بصلاتك ) ای قرائتك . الرحمة کما في قوله تعالی: (اولئك عليهم صلوات من ربهم ورحمة ) يعني پر دوی باندي رحمتونه دخدای ج دی او په شرعه شريفه کي نوم دی د افعال مخصوصه وو چي هر چاته معلوم دي . او مناسبت د معنای لغوي او معنای شرعي ظاهر دی . ولي چي په ولاړه کي قرائت سته او په ناسته کي دعاسته او په رکوع او سجده کي ثناء دخدای سته په تسبيحاتو کي د رکوع اوسجدي او پر فاعل د لمانځه خدای جل سلطانه رحمت نازلوي .

درويش وايي چي دا ټولي لغوي معناوي صحيح دي او هغه معنا لغوي چي علامه الزمخشري ذکر کري ده په تفسير کشاف کي چي

صلات پـه لغـت کـي ښـورول د کنـاتو د هـډوکو ده او مناسبت دشرعي لمانځه سره يي دادی چي لمونځ کوونکی هم په لمانځه کي د کناتو غټ هډوکي ښوروي. هغـه ډيره بعيـده معنا ده وي صلوين اسم جامد دی د اسم جامد څخه اشتقاق ډير نـادر دی نحو تَفرعنَ فلان ای فعل فعل الفرعون . او بل دا چي بايد د جنازې لمانځه تـه دي صلاة شرعاً نـه وويـل سي ولي چي تحريك د صلوينو يعني کنـاتو پکښې نستـه . او بل دا چي صلّي يصلی بـاب د تفعيـل دی او بـاب د تفعيـل دپاره د تحريك ډير نـادر دی والعجب من القاضي البيضاوي حيث أيّد رأی الزمخشری فی تفسيره فحق القول أن لکل عالم هفوة ولکل صارم نبوة ويجب عليه الاحتياط فی مأخذ الالفاظ القرآنية فی اللغة العربية . وهيهات للمعتزلة ذالك.

**پوه سه !** چي درويش چي قول د صاحب کشاف او تائيد د بيضاوي رد کړی او دا رد هـم درويـش د انصاف د لاري او احتيـاط د لاري په الفـاظ قرآنيه وو کي لکن چونکه درويش وايي حاسدان په همجنسو کي موجود دي او دهغو عادت دادی چي حق په رجالو سره پيژني نه رجال په حق سره

ولنعم ماقيل : چشـم بداندیش که برکنده باد ٭ عیب نماید هنرش درنظر .

نو عين ممکنـه ده چي دوی به وايي چي عبيدالله د خانه څخه نوی شخص جوړ کړی چي پر علامه زمخشري او محقق بيضاوي يي رد وکړی نو ددوی دپاره د امام فخرالدين رازي رح قول چي په تفسير کبير کي يي کړی دی رانقل کوم . نو چونکه حاسدان د درويش په عالمان وي ، نو ددي کبله هغه عربي عبارت رانقل کوم او په پښتو يي ترجمي تـه يي نـه اړوم ، تر څو چي ددوی دغه ګمان دفع سي.

قال الإمام رحمه الله أن هذا الاشتقاق الذي ذكره صاحب الكشاف يفضى الى طعن عظيم فى كون القرآن حجةً وذالك لان لفظ الصلوة من اشد الالفاظ شهرة و اكثرها دوراناً على السنة المسلمين . واشتقاقه من تحريك الصلوين من أبعدالأشياء اشتهاراً فيما بين اهل النقل . ولوجوزنا ان يقال مسمّى الصلاة ومعناه فى الأصل ماذكره الزمخشري ثم انه خفى و اندرس اى المعنى الاصلي حتى صار بحيث لايعرفه الا الاحاد لكان مثل ذالك فى سائر الالفاظ القرآنية جائزاً . ولو جوزنا ذالك لما قطعنا بان مراد الله تعالى من هذه الالفاظ ماتتبادر اليه افهامنا لاحتمال انها كانت فى زمان رسول الله صلى الله عليه وسلم موضوعة لمعانٍ أُخر كان مرادالله تلك المعانى الا ان تلك المعانى قدخفيت فى زماننا واندرست كما وقع مثل ذالك فى هذه اللفظة يعني لفظ الصلوة على مقتضى قول الزمخشرى . فلما كان ذالك باطلاً بإجماع المسلمين علمنا ان الاشتقاق الذي ذكره الزمخشرى مردودٌ باطلٌ انتهى قوله بالتلخيص و بعض الزيادة فافهم وقل ايهاالحاسد فى شأن الفقير ماتستطيع ان تقول . وچونکه گفته اند مشت نمونه خروار است بايد حاسدين در تفسير فقير انگشت نمايي مذكور . درويش هرچه ميگويد ديده ميگويد . والله المستعان وعليه التكلان وانا أرجوا ان هذاالحسد ينقطع بموتي و اسأل تعالى من فضله وكرمه التوفيق لاتمام هذا التفسير من اوله و آخره بالتعجيز والعافية والصحة والسلامة آمين .

او د اقامة الصلوة معنا بيضاوي رحمه الله اوثناءالله رحمه الله او اسمعيل بروسوى رحمه الله په اتفاق سره داسې كړي ده چې :

۱: مراد همیشه توب دی پر لمانځه.
۲: او یا دا چې په لمانځه کي به سستي نه کوي او ده ته په په جدوجهد سره چمتو وي.
۳: او یا هغه معنا چې درویش په ترجمه د آیت کي وکړه.
او دغو دري سرو مفسرینو رح ویلي دي چې دغه معنا اظهر او ده حقیقت ته نژدي ده او تر ټولو فائده منه معنا ده. ولي چې مستحق د مدح هم داغه سي لمونځ کوونکی دی.
ابراهیم رحمه الله وایي که چا په لمانځه کي تعدیل الارکان نه کاوه نو سړی دي دده پر عیال رحم وکړي چې د ضیق الرزق سره مخامخ نسي
**فائده**: په تفسیر تیسیر کي وایي چې خدای جل شانه خپل بندګان په څو شیانو په لمانځه کي امر کړي دي
۱: نفس کول د لمانځه. بقوله تعالی: ( و اقیموالصلوة )
۲: بل همیشه توب پر کول بقوله تعالی: ( الذین هم علی صلاتهم دائمون)
۳: بل پر خپل وخت کول بقوله تعالی: ( إن الصلوة کانت علی المؤمنین کتابا موقوتا ).
۴: بل په جماعت کول بقوله تعالی: ( وارکعوا مع الراکعین )
۵: او بل په خشوع سره بقوله تعالی: ( الذین هم فی صلاتهم خاشعون )
**پوه سه**! چې د جماعت لمونځ په نیز د روح البیان فرض کفایي دی، نو که سړی لمونځ یوازي وکړي روا خو دی لکن ثواب دجماعت ځني فوت سو. او اکثر کتابونه دفقه حنفي پر دي دي چې جماعت سنت موکد دی او کمال الدین الهمام رح وایي چې واجب دی. دلیل یي هغه آیت مذکوره کرخولی دی. او احمد بن حنبل رح وایي چې جماعت پر نرو فرض عین



Scanned by CamScanner

دی ، حتی که بیله عذره یې شرعي سړی لمونځ بې جماعته وکړي ، نه دی روا .

**فائده** : په روح البیان کي وايي چي : تارك الجماعت بد دی تر شراب خوره . او بد دی تر قاتل النفس ناحق او بد دی تر عاق د مور او پلار . او بد دی تر غیبت ګویه . او بد دی تر ساحر . او بد دی تر غیبت کوونکي . او ملعون دی په تورات او انجیل او زبور او فرقان کي . او ملعون دی پر ژبه د ملائکه وو ..

درویش وايي چي والله اعلم بصحة هذه الاحکام او سره ددې چي دغه ټوله شمیرلي ګنهونه ګناه کبائر دي . او جماعت یا سنت موکد یا واجب دی زموږ په نیز . روح البیان یې حواله وه روضة العلماء ته کړې ده او زه نه پوهیږم چي دا څنګه کتاب دی ، البته په صحیح حدیث کي راغلي دي چي : تارك الجماعة ليس مني ولا انا منه ولايقبل الله من صرفا ولا عدلاً ای نافلةً ولافرضيةً

**فائده** : تارك الجماعة هغه تر دی چي ترك الجماعت بیله هیڅ عذر عادت وي او د جماعت لمونځ یې نادر وي ، ګاهي ګاهي چي پر پیش سي د خلګو د شرمه یا په اوداسه یا بې اوداسه د جماعت لمونځ اداء کړي . داسي تارك الجماعت بدترین د تارك الجماعت دی او شاید کلام او احکام د روح البیان به پر دغسي تارك الجماعت محصول وي . او داسي تارك الجماعت په ښارو کي د مسلمانانو زما په ټوله عمر کي ما یو سړی په کوږه کي ولیدی چي سره ددې چي ده د سرای دروازه او د جامع مسجد دروازه تقریبا سره مخامخ وي ، په شل کاله کي چي درویش په دغه جامع مسجد کي پر لمانځه نه ولیدی بلکه په نژدې مساجدو

کي هم چا پر جماعت نه دی لیدلی حتی د جمعي شریفي په ورځ او د عیدګاه په ورځ چا نه دي ویلي چي فلانی ما په مسجد کي پر جماعت ولیدی. په کور کي یي خدای خبر چي ده لمونځ کاوه او که یي نه کاوه. اما تارك الجماعت یوازي دغسي سړي ته نه وایي بلکه تارك الجماعت هغه سړی هم دی چي بیله عذره دري څلور لمونځه بي جماعته کوي.

**فائــده** : د جماعت د ترك عذرونه سته چي بیا د سړي غاړي نه دي بندي.

۱: ډیر سپین ږږی وي چي بعض لمونځو ته نسي راتلای.

۲: ړوند وي او قائد نه لري.

۳: مریض و ي چي دجهته د ناجوړی مسجد ته نسي تلای.

۴: دښمنان لري چي د بعض لمونځو په وخت کي د مسجد په تلو کي د هغو څخه بیریږي.

۵: په کور کي یوه ښځه او کوچني عیال وي چي دی بیریږي چي د بعض لمونځو په وخت کي لکه د ماخستن یا سحار وختي غل وه کور ته رانسي. بائیسکل یا موټرسائیکل وغیره غلا نه کړي.

۶: سخت یخ باد او تاریکه د بعض لمونځو په وخت کي.

۷: باران یا واوره په شدت سره اوري.

۸: ګوډ یا شل وي.

۹: طبیبانو او ډاکټرانو په سبب د بعض مرضیو دی په آرام سره امر کړی.

۱۰: سلسل البول وي چي په حرکت سره بولي څني تویيږي وأمثال المذکورات.

چي دا اعـذار نـه وي ، نـو پـه صـحيح حديث كـي د بخـاري مسـلم وغيرهمـا كي راغلي دي چي د جماعت لمونځ پر يوازي لمانځه په يوه روايت كي ۲۵ درجي په ثواب كي بالادي او پـه بل روايت كي ۲۷ درجي بالادي .

**فائده** : دغه پنځه لمونځه زموږ ددغو انبياء عليهم السلام څخه منقول دي .

اول د سحار لمونځ آدم عليه السلام كړى دى .
او اول د ماپښين لمونځ ابراهيم عليه السلام اداء كړى دى .
او اول د مازديګر لمونځ يونس عليه السلام كړى دى .
او اول د ماښام لمونځ عيسى عليه السلام كړى دى .
او اول د ماخستن لمونځ موسى عليه السلام كړى دى .

او اول صـلاة الـوتر رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم كـړى دى پـه شـپه د معـراج كـي . نـو چونكـه آنحضرت چي سيدالمرسلين دى ، خداى جل سلطانه و ده ته پنځه سره لمونځونه جمع كړه په شپه د معراج كي . په اول كي يي پنځوس لمونځونه پر فرض كړه . په پنځه پنځه يي كموله حتى چي پر پنځه ودريدله . او چونكه حسنات د امت محمدي ﷺ يو په لس دي نو دغه پنځه په معنا كي بيرته پنځوس كيږي وهذا كله په اوږده حديث كي د معراج نبوي ﷺ چي بخاري و مسلم وغيرهما يي روايت كړى موجود دي . درويش وايي چي په دي بيان سره راز د پنځو لمونځو زموږ معلوم سو . والله اعلم بالصواب .

**پوه سه !** چي په احاديثو صحيحه وو كي راغلي دي چي پـه عصر نبوى ﷺ كي چي منافقين په مشري د عبدالله بـن ابى تر دري سوه ۳۰۰ كسـه

پوري يي تعداد رسيدى د ماپښين او ماز ديګر او ماښام لمنځو ته به رسيږ،
او د بيري د مسلمانانو به راتله ددي دپاره چي دا ښكاره كړي چي موږ
هم مسلمانان يو . او د سحار او ماخستن لمانځه ته به نه راتله . ولي چي
د عليه السلام د ماخستن لمونځ څه ناوخته كيدى او د سحار لمونځ به
څه وختي كيدى . نو منافقينو خوب نسواى پر پرېښولاى . او اخلاص او
صداقت خو ددوى نه وو .

# وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ③

**او دهغه ماله څخه چي موږ په رزق ورکړی دوی ته ، دوی صدقات يا فرضي لکه زکوة يا واجب لکه صدقه فطر يا نفلي کوي .**

---

**پوه سه !** چي په نسبت د رزق چي خداى پاك ځان ته وكړى اشاره ده وه
دي ته چي په انفاق د مال فى سبيل الخير يعني لله تعالى دي څوك بخل
نه كوي ، ولي چي د خداى ﷻ دركړى رزق دى ، نو ته يي ولي فى سبيل
الله نه صرفوي ؟

**فائده** : اهل السنت وايي چي : رزق هغه شي ته وايي چي حيوان يي
خوري ، كه حلال وي او كه حرام . او معتزله وايي چي حرام شى رزق نه
دى . دوى په مذكوره آيت سره دليل وايي ، ولي په دي آيت كي په اتفاق
حلال مراد دى . موږ ورته وايو چي په دي آيت كي چي حلال مراد دى په
قرينه د مقام دمدحي ، ولي د حرامو په انفاق سره مدحه نه ده روا . او
(من) چي دپاره د تبعيض په ( مما ) كي چي اصل ( من ما ) وو اشاره ده
وه دي ته چي بعض دمال به نفقه سړى كوي . اما فى الفرضى فظاهر لان
الزكوة فى اى مال كان بعضه و اماالنفلى فللنهى عن الاسراف .

درويش وايي : چې د ټولـه مـال نفلي خيرات چې منهي عنه نظر وه اوساطو د مسلمانانو دی ، ورنه په حديث کې چې بخاري وغيره راغلی دي چې يو وخت عليه السلام صحابه ﷺ امر کړه په انفاق فی سبيل الله سره ، حضرت عمر ﷺ وايي چې پـه دغـه وخت کـې ښـه پراخـه رزق مـي درلودی ، نو ما په خپل زړه کې دا وويل چې که دي يو وخت پر ابوبکر ﷺ سبقت په انفاق کې کاوه په دي وخت به يي وکړي ، نو کور تـه ولاړم خپل ټوله مال دهري نوع څخه چې وو سم نيمی کی ، نيمی مي کور پريښوی او نيمی مي حضور ﷺ ته راوړی . نو آنحضرت صلی الله عليه وسلم چې دي مختلفو اموالـو تـه وکتـل ، نو يي ماتـه وويـل چې کـور دي څـه شي پريښوی ؟ ما ورتـه وويل دغونه قدر مي کور پريښوله . مورِ حاضر يو چې ابوبکرالصديق ﷺ په ډير کثرت سره مختلف اموال راوړه . عليه السلام ورتـه وويـل چې کـور دي څـه شي پريښـوی ؟ ابوبکر ﷺ ورتـه وويـل : الله ورسوله . چې خدای او رسول عليه السـلام مي پريښـول ، نـو عليه السـلام ده ته نه وويل چې دا خو اسراف دی ، بلکه قبول يي کړی ، ولي چې دده توکل علی الله وعليه السلام ته معلوم وو . عمر ﷺ وايي چې ما قصد په زړه کي وکړی چې د آئنده دپاره به زه قصد د سيالي د ابوبکررض ونه کړم .

او ضمير د متکلم يعني (نـا) خاص يـوازي د خدای جـل جلالـه دپاره دی ، ولـي قـرآن پـاک مطابق د عـرف سره د عربـو نـازل سوی دی . (إنا أنزلناه قرآناً عربياً) او عرب ګاهي دخپل خان د فعل څخه په مفرد ضمير سره حکايت کوي ، مثل فعلتُ کذا . او ګـاهي دخان دفعل څخه حکايت په متکلم مع الغير سره کوي نحو فعلنا کذا . او ګاهي دخپل خانه څخه په

اسم غائب تعبير وکړي . کقول السلطان لوزرائه : سلطانکم يأمرکم بکذا بدل قوله إنا أء مرکم بکذا . او کاهي په فعل مجهول سره تعبير وکړي نحو : رُسم لکم کذا بدل قوله رسمتُ لکم کذا.

او قرآن مبارك هم پر دغو څلورو سرو طريقو راغلی دی .

الاول : ( ذروني ومن خلقت وحيدًا )

والثاني : نحو قوله تعالى : ( إناأنزلناه في ليلة القدر )

والثالث : نحو قوله تعالى : ( الله الذي خلقکم )

والرابع نحو : ( کُتِبَ عليکم الصيام ) .

**پـوه ســه !** چي بعض مفسرينو رح تفسير د ( ممارزقناهم ينفقون ) په يوازي زکات سره کړی دی . شايد دغه مفسر به افضل د انواعو د انفاق راوړی وي و إلا فقد مرّ منا انّ المراد اعم من الفرضي والواجب والنفلي او عين ممکنه ده چي دغه مفسر دي دصلات لفظ ته کتلي وي ، ولي چي په قرآن مبارك کي ( اقيمواالصلوة وآتوالزکوة ) ډير ځايونه ملګري سره راغلي دي . او صوفيه کرام رح تر دغه لاعام معنا ځني اخلي او وايي چي هر نعمت که ظاهري وي لکه اموال او که باطني وي لکه علم چي دا نعمت خدای پاك وه سړي ته ورکړی بايد دهغه څخه انفاق وکړي .

د نعم ظاهره وو انفاق خو بيان سو ، د نعمت باطني چي علم دی مثلاً انفاق يي دادی چي طالبانو ته د علم ښوونه کوي . قال عليه الصلوة والسلام : إن علماً لايُقال به ککنزٍ لايُنفق منه. او صوفيه رح دا هم وايي چي که رب جل وعلا د يو شيخ ذاکر پر لطائفو باطنه وو دده په خپل فضل او کرم سره فيوضات او انوار متنوعه فيض کړي وه ، بايد هغه شيخ دا

فیوضات په خپله توجه سره دخپلو مریدانو سره شریک کړي . هم دا دده انفاق دی .

**فائده** : درویش وایي په ابتداء کي د تفسیر ددي آیت ما وویله چي اهل السنت والجماعت حرام هم رزق بولي او معتزله یي رزق نه بولي او د دلائلو د تفصیله څخه د طرفینو مي صرف نظر ددي کبله وکړی چي هغه دلائل او جوابونه د هغو طویل الاذیال وه او دا زما تفسیر یو مختصر تفسیر دی . نو ځکه حواله د هغو دلائلو او جوابو وه علم الکلام ته کوم ، اعنی شرح العقائد او شرح المقاصد للعلامة التفتازانی رح ، او مواقف د قاضي عضد الملی والدین رح او دهغه شرح للسید الجرجانی رح او کتاب الملل والنحل لمحمد بن عبدالکریم الشهرستانی رح .

او په تفاسیرو کي وه تفسیر ته د امام همام فخرالدین الرازی رح چي تفسیر کبیر یي بولي او تفسیر ته د امام محقق آلوسی چي روح المعانی یي بولي حواله کوم . ومن لطائف القرآن الکریم انّه تبارك وتعالی ذکر فی هذه الآیة الایمان الذی هو اُسُّ العبادات وموضعه اُسُّ البدن وهو القلب ویرتبط بالایمان جمیع المعتقدات ثم ذکر الصلوة التی ام العبادات البدنیة وینسلك معها جمیع العبادات من نوعها ثم الانفاق الذی هو منبع جمیع العبادات المالیة . ففی هذه الآیة قد ادرج جمیع الشریعة الغراء .

قال صاحب روح البیان : ففی الإیمان النجاةُ ، وفی الصلوة المناجات وفی الإنفاق الدرجات ، وفی الإیمان البشارة ، وفی الصلوة الکفارة ، وفی الانفاق الطهارة ، وفی الإیمان العزة ، وفی الصلوة القربة ، وفی الإنفاق الزیادة وهذه العبادات من بلاغاته رحمه الله .

## حکایت :

ابی عبدالله الرازی رح وایي چي خدای جل سلطانه بعض انبیاء علیهم السلام ته وویل چي د فلاني سړی پاته عمر به نیمایي په غني تیر کي وي او نیم عمر به یي په فقر کي ، نو دي راوغواړه او ده ته اختیار ورکړه چي کومه حصه دمخه درکړم ، یعني غنا او که فقر ؟ نو هغه نبي علیه السلام هغه سړی راوغوښتی او خبر الهي یي ورته بیان کړی ، هغه سړي ورته وویل : چي زه به د مایني سره مشوره وکړم . سړی چي دمایني سره مشوره وکړه . مایني یي ورته وویل چي دغنا ژوند دمخه وغواړه . نو میړه یي ورته وویل خطاوتي ، ولي چي وروسته تر غنا فقر زور غواړي او غنا وروسته تر فقر تر آخره د عمر ډیر ښه خوند کوي . ماینه ورته تینګه سوه چي په دي باب کي به زما په خوله کوي . نو هغه سړي نبي علیه السلام ته ورغلی چي زموږ دغنا ژوند دي دمخه خدای جل جلاله راکړي ، نو خدای جل شانه د رزق دروازه ورته خلاصه کړه . ورځ په ورځ دنیا او غنا ډیریدله ، نو بیا ښځي ورته وویل میړه ته ، که ته غواړي چي زموږ ژوند دي تر آخره د عمر داغسي پراخه پاته سي ، نو دمخلوق او مسکینانو سره سخاوت کوه . نو سړی هم داغسي لار غوره کړه یعني که بي کوره ته کالي راوړي دغونه کالي فقراوو ته ورکول . وهکذا المطعومات وغیره . نو هغه نیمی عمر چي تیر هم دخدای جل جلاله دخوا ورته ټاکلی وو په غنا کي پای پر رسیدو سو ، نو نبي ته خدای ﷻ پیغام ور واستاوه . چي دغه سړی خبر کړه چي چونکه تا د غنا په وخت کي زما شکر ووایه ، یعني زما د مخلوق سره دي ښه وکړه ، نو دا زیری پر وکړه چي ستا تر مرګه عمر به په غنا کي وي .

قال المولوی المعنوی فی المثنوي.

هر که کارد گردد انبارش تهی ✤ لیکش اندر مزرعه باشد بهی

وانکه در انبار ماند وصرفه کرد ✤ اسپش وموش حوادث هاش خورد

# وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ

او هغه کسان دي متقين چي ايمان لري پر هغه کتاب چي نازل کړه سوی دی وه تاته چي قرآن کريم دی او ايمان لري پر هغو کتابو چي نازل کړه سوي دي تر تادمخه لکه تورات او انجيل او نور کتب آسماني يعني چي پر نورو نبيانو ع نازل سوي وه.

**پوه سه !** چي ابن جرير د ابن مسعود رض او ابن عباس رض څخه روايت کړی دی چي دا آيت په مومنانو د اهل الکتابين نازل سوی دی.
او روح البيان وايي چي دمخه آيت تر (ومما رزقناهم ينفقون) پوري په مومنانو کي د عربو نازل سوي دي، نو دواړه آيته تفصيل د متقين دی.
بخاري او مسلم.

د ابی موسی اشعری ﷺ څخه روايت کړی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل چي دري قسمه خلکو لره دوه ثوابه دي. يو هغه سړی د اهل کتابو څخه چي ايمان يي راوړی پر خپل نبی و آمن بمحمد ﷺ تر پايه د حديث.

**مسئله** : ايمان پر تولو کتابو اجمالاً يعني تولـه آسماني کتابونه حق من عندالله وه فرض عين او پر قرآن شريف باندي ايمان تفصيلاً يعني حکماً حکماً او آيتاً آيتاً فرض کفايي دی او اجمالاً فرض عين دی. ددي سببه

پر ټولو مسلمانانو نر او ښځو د قرآن پاك ایمان تفصیلاً فرض عین سي نو پر مسلمانانو حرج عظیم دی او ژوند ابه چارو ته خلل پیښ دی .

**سوال** : قرآن مبارك خو په وخت د نزول ددغه آیت ټوله نه وو نازل سوی ، نو تعبیر یې په ماضي صیغه څرنګه ښې وکړی ؟

**جــواب** : چې په دې آیت کې تغلیب د محقق پر مقدر کړی دی . او په تفسیر کواشي کې یې داسې جواب ورکړی دی چې قرآن مبارك حکماً شیئ واحد دی ، نو ایمان پر بعض یې ایمان پر کل دی . روح البیان .

**فائده** : ماأنزل إلیك عام دی تر قرآن کریم چې وحی متلو یې بولي او شامل وه وحی غیر متلو لره دی چې احادیث نبویه دي ولې چې مرا د انزال مطلق وحی دي او که مطلق وحی سي ، دواړو ته **قال الله تعالی**: **(وماینطق عن الهوی° إن هو إلاوحی یوحی )** **مثال** د وحی غیر متلو تعداد د رکعتو دلمونځو او وختونه د هغو او تعداد دی د زکاتو د اموالو او بیان د نصابو ددوی او حدود او جنایات الی غیرذالك مماجاء فی الأحادیث النبویة فقط .

**پوه سه !** چې انزال چې د لوړي وه کښته را استول دي لکه ډېره چې د لوړي ځخه را ایله کړي . نو انزال خو حقیقتاً صفت د ذواتو دی او قرآن پاك خو الفاظ او معانی دی نو انزال د قرآن مبارك په اعتبار د ذات حامله له دي چې جبرئیل علیه السلام وغیره ی . قال الله عزوجل :

# وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝

او پر ورځ د آخرت د منښو ایمان او تصدیق دی . مراد د آخري ورځي څخه د قیامت دی .

---

**پوه سه !** چي آخرت یي مونث راوړی ، که څه هم ورځ یعني یوم خو مذکر دی . په تاویل د دار آخرت او دار مونث سماعي دی . کما ورد فی القرآن العزیز : ( تلك الدار الآخرة . الآية ).

**فائده** : ایقان چي مصدر دی د يُوْقِنُوْنَ ، معنا یي محکمه علم دی پر شي خفي بیله شك او د شبهې او په نظر او استدلال سره ، ځکه علم ته خدای ج یقین نه وایي . ولي چي استدلال علم نه دی . او علوم بدیهیه وو ته هم یقین نه وایي . روح البیان . یعني اهل کتاب به پر آخرت داسي علم قطعي لري چي ددوی اوهام خرافات پکښي نه وي ، چي بعض د خرافاتو څخه داوه چي یهودیانو به ویل : إن الجنة لايدخلها الامن كان هوداً او نصاری به ویل چي نسي داخلیدای جنت ته مګر نه نصاری . او یا به یي ویل : لن تمسنا النار إلا أياما معدودة. او نور ورته خرافات او اختلافات

**فائده** : څوك چي یقین پر آخرت لري باید ځان د آخرت د نعمتو او جنتو دپاره آراسته کړي . په تفسیر تیسیر کي وایي چي لس قسمه خلګ ډیر مغروره او خطاوتلي دي .

۱ : چي خدای ج خالق خپل بولي او عبادت یي نه کوي .

۲ : او چي خدای ج رازق بولي او زړه په رزق کي مضطرب وي .

۳ : چي دنیا فاني بولي او بیا هم د دنیا پر نعمتو تکیه کوي .

۴: چي ورثه خپل دښمنان بولي او بیا هم ددوی دپاره په دروا‌غو او په سود او خیانت وغیرذالك دنیا جمع کوي . سعدي :

تو باخود ببر توشه خویشتن ✣ که شفقت نیاید ز فرزند و زن

۵: چي د سړي یقین وي چي پر ما مرګ یو وخت راځي او بیا هم د هغه دپاره توښه نه برابره وي .

۶: چي د سړي یقین وي چي آخر قبر زما ځای دی او قبر نه آباته وي او روضة من ریاض الجنة نه ځني جوړوي .

۷: او چي د سړي یقین وي چي خدای ج زره په زره زما سره په ورځ د آخرت حساب کوي او بیا په دنیا کي دخپل ځان سره حساب نه کوي . وقد ورد : حاسبُوا قبل ان تُحاسبوا .

۸ : چي د سړي یقین وي چي جنت ته لاړ یوازي پل صراط دی او خپل بار د ګناه نه سپکوي .

۹ : چي د سړي یقین وي چي دوږخ ځای د فجارو دی او بیا په نیك عمل سره نه ځني تښتي .

۱۰: چي د سړي دا یقین وي چي جنت دار الابرار دی او بیا د ابرار د جملي څخه په اعمال صالحه وو ځان نه جوړوي . انتهی مافی التیسیر مع زیادة من العبدالعاصی . قال الله تبارك وتعالی :.

أُولَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾

او دغه کسان چي دغه اخلاق او عقائد مذکوره پکښي وي ثابت پر هدایت دی د جانبه ځخه د رب ددوی او همدغه کسان فلاح د عذابو ځخه د خدای ج وه دوی ته حاصله ده .

**پوه سه !** چي که اول موصول يعني (الذين يؤمنون بالغيب . الآية) يا دوهم موصول يعني (والذين يؤمنون بما أنزل إليك) آه د متقينو ځخه جلا کړيٰ يعني د متقينو صفت يي نه کړي نو هغه موصول مبتداء ده او دا جمله يعني (اولئك على هدىً) آه په محل کي د رفع د خبر د هغه موصول ده . او که چيري هغه دواړه موصوله صفت د متقين وبولي ، نو دا جمله يعني (اولئك على هدىً) آه جمله مستانفه ده او محل د اعراب نه لري . نو ګويا دا جمله حاصل او نتيجه د دمخه احکامو ده .

**فائده** : (اولآء) جمع ده ، مفرد دخپله لفظه نه لري او مبني پر کسره ده او کاف د خطاب دی لکه په ذالك کي يعني دغه کسان چي دمخه ذکر سول يعني متقين چي موصوف په ايمان بالغيب او نورو صفاتو چي ذکر سول .

**فائده** : (اولئك) په محل کي د رفع مبتداء ده او (على هدىً) يي خبر دی أی ثابتون على هدىً.

**فائـــده** : هدىً چي نکيره راوړی ،دپاره د تعظيم يعني پر دونه لوی هدايت دی چي څوك يي په حقيقت د هغه هدايت پيله خدايه نه پوهيږی . وفيه غاية التعظيم لهولآء المتقين الموصوفون بالصفات المذكورة ليقتدی

بهم غيرهم هذا حاصل ما في روح البيان والتفسير المظهرى مع زيادة من العبدالعاصی .

وقوله من ربهم متعلق دی په محذوف پوري ، صفت د هدیً دی یعني ( هدیً کائنٍ من ربهم. او په کلمه کي د ربهم اشاره وه دي ته ده چي دا صفات کائنه په متقين کي د اثار څخه د تربيه معنوي د مولی جل سلطانه دی .

وقوله واولئك هم المفلحون.

**سوال** : اولئك په تکرار کي څه حکمت الهی دی ، يعني داسي هم کافي وه چي مفلحون يي پر علی هدیً عطف کړی وای . يعني داسي : ( أولئك علی هدیً من ربهم والمفلحون ).

**جواب** : حکمت الهي او فائده د تکرار د اولئك داده چي اشاره وه دي ته راسي چي هر يو د وصف څخه د علی هدیً من ربهم او د مفلحون مستقل دي په امتياز کي د متقين د نورو کسانو څخه . يعني په صورت کي د عطف به دا توهم کيدی چي په مجموع دوو وصفو سره امتياز د متقينو د نورو څخه کيږي .

**فائــــده** : د ( هُم ) پـه مابين کي د مبتداء چي اولئك دی او د خبر المفلحون داده چي دلالت وکړي پر دي چي المفلحون خبر دی صفت د اولئك نه دی. کما هو فائدة ضمير الفصل بين المبتداء والخبر المعرفين او سيبويه رح وايي چي بله فائده د ضمير فصل داده چي خبر چي مفلحون دی حصر دی په مبتداء کي چي اولئك يعني متقين . په دي معنا چي په يهودو او نصاری وو کي دا صفت د فلاح نشته . نو دا قصر د

صفت پر موصوف دی لا بالعکس، ولي چي متقینولره نورصفات فاخره هم سته کما لایخفی

**فائده**: د فلاح حاصل:

۱: پر نفس غلبه چي متابعت د هوا نفساني به نه کوي.

۲: د دنیا په جاه جلال به نه غره کیږي.

۳: د شیطان په وسوسو کي بند نه پاتیږي.

۴: د بدو خلکو سره به مجالست او انډیوالي نه کوي.

۵: د کفر او ضلالت او بدعت ځخه به بیزاره وي.

۶: د غرور النفس او جهل ځخه به پاك وي.

۷: د زوال د ایمان ځخه به پاك وي.

۸: د وحشت ځخه د قبر به خلاص وي.

۹: د بیري ځخه د ورځي د قیامت به بیغمه وي.

۱۰: او پر پل صراط به یي پښي نه ښوري بلکه په امن به تیریږي.

۱۱: په همیشه نعمتو کي د جنت به ابدالابدین پاته وي.

۱۲: د غمه او د حزنه ځخه په سبب د دارالسرور جنت خلاص وي.

۱۳: ځواني به یي په زوړوالي ابدالآباد نه بدلیږي.

۱۴: صحت او عافیت به یي برقراره وي.

۱۵: نعیم د جنت به یي بي حسابه وي.

۱۶: ملاقات د رب العزت به یي بي حجابه په نصیب سي.

۱۷: تکالیف د عباداتو به ځني مرفوع وي إلا ما شاء من تحمیدٍ وتسبیحٍ و تهلیلٍ لفرط البهجة والسرور.

۱۸: حوري د جنت او غلمان به یي دل خواه وي.

۱۹: اوهیڅ جنتي به د بل جنتي په حال سره د خپل په حال ناخوښه نه وي.
۲۰: نِعَم غیر متناهیه به ورته مهیا وي.

**پوه سه !** چي وعیدیه چي ددوی مذهب دادی چي فُساق د مسلمانانو چي بي توبي مړه سي ابدي به یې خای دوږخ وي. په مذکوره آیتو سره دلیل وایي. او دوی وایي چي فلاح د ورځي د قیامت د عذابو څخه خو مربوط په دغو صفاتو سره چي په مذکوره آیتو کي ذکر سوه او فاسق دغه مذکوره صفات ټوله نه لري، نو فلاح د عذاب څخه هم وده ته نسته، بلکه همیشه به مُعذب وي.

**والجواب** : چي دغه صفات مذکوره فی الآیات المتلوة د هغو مفلحینو دي چي کامل الفلاح وي، نو فساق به کامل الفلاح نه وي، بلکه یا په رحمت د ارحم الراحمین، یا په شفاعت د سید المرسلین به د عذاب د دوږخ خلاصون ورته حاصلیږي. او یا به تر وخت محدود پوري په دوږخ کي وي، بیا به وه جنت ته نقل کیږي، لکه په دي دنیا کي چي یو څوك په حبس موقت بندي وي، نو هغه وخت چي پوره سي، خپل کور ته به خي او حبس ابد یوازي او یوازي په دوږخ کي د کفارو په برخه وي. دلیل ددي دادی چي خدای جل سلطانه وایي: **(فمن یعمل مثقال ذرةٍ خیراً یَّرَه)** یعني که څوك په اندازه د یوي زري کار د خیر وکړي، ثواب دهغه به وېني، نو د فاسق نفس ایمان خو عمل د خیر دی، بلکه اعلی عمل د خیر دی. نو ددغه عمل د خیر ثواب به کله ده ته ورکول کیږي، دا خو په اجماع الامت بلکه د وعیدیه د ډلي هم په اتفاق داسي خو نسي کیدای چي رب جل وعلا دي معاوضه فاسق ته اول په جنت کي د ثواب ورکړي او بیا دي دوږخ ته د ابد دپاره بوزي، ولي چي جنت دارالخلود دی، نو

معلومه داده چي وروسته تر دوږخ به جنت دارالخلود ته ځي .

دروېش وايي چي په نجات د فساقو د اهل القبله کي احاديث متواترة المعنی په صحاح ستة و کي موجود دي . اما پر ستركو او عقلو د وعيديه و پرده د خپل بدعت او ضلال اواره ده .

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٦﴾

**په تحقيق هغه کسان چي کافران دي برابره وه دوی ته که يي ته وبيروې او که يي نه بيروې خو دوی ايمان نه راوړي .**

---

**پوښتنه** : ډير داسي کسان وه چي په وخت کي دنزول د آيت کافران وه ، وروسته مشرف په ايمان سره ګرځيدلي دي ؟

**جواب** : بعض مفسرين وايي چي موصول يعني الذين دپاره د عهد دی يعني مراد د الذين کفروا ځنګه معين کفار دي ، لکه ابي لهب ، ابوجهل ، او وليد بن مغيره په مکه مکرمه کي او علماء د يهودو په مدينه منوره کي .

او بعض مفسرين وايي چي موصول دپاره د جنس دی هغه کفارو ته چي تر پايه پوري د عمر پر کفر کلك ولاړ وه لکه مذکورين کفار . هغو ته هم شامل دي او هغو کفارو ته چي په وخت د نزول کافران وه . او وروسته يي ايمان راوړی وي هم شامل دي . او دا وروسته قسم کافران يي په سواء عليهم آه سره وايستل ، ولي چي هغو ته خو انذار فائده وکړه يعني مسلمانان سوه .

## ﴿ تحقیق الکفر ﴾

**پوه سه** ! چي کفر په لغت کي ستر او پټولو ته وايي . لکه دهقان ته چي کافر وايي چي تخمونه د غنمو وغیره په مځکه کي پټوي او په شرعه شریف کي انکار دی د هغه شي څخه چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم راتګ په کړی وي یقیناً یا په امر سره لکه لمونځ روژه زکات وغیره من المامورات او یا په نهي سره لکه زنا ، لواطت ، قتل نفس بغیر حق وغیرها من المنهیات الیقینیة .

**پوه سه !** چي د یقین د قید فائده داده چي که یو مامور به یا منهی عنه په خبر واحد یا قیاس سره ثابت وو د هغه انکار کفر نه دی ، که څه هم ګناه ده .

**سوال** : بعض افعالو ته په شریعت کي کفر ویل سوی دی که څه هم افعال دي ، انکار قلبي نه دي . لکه اغوستل د غیار او تړل د زنار ؟

**جواب** : دا کارونه خو رښتیا فی نفسه کفر نه دی لکن په سبب ددي چي علیه السلام نهي ځني کړي ، نو بیله ضرورته دغه کارونه علامه د تکذیب د علیه السلام بلل کیږي . نو ددي په سبب سره د کفر حکم ورکړه سو .

بیضاوي ، روح البیان او امام بغوی رح وايي چي کفر پر څلور قسمه دی .

۱ : **کفر الانکار** : کفر یو د انکار دی . هغه دادی چي خدای هیڅ نه پیژني او نه خدای ج او خالق العالم مني لکه دهریه چي دوی وايي مایهلکنا إلا الدهر . یعني موږ نه وژني مګر زمانه . او یا وايي : إنماهی هذه الدنیا

نموت و نحیی. زموږ دپاره دغه دنیا ده موږ په څوك مرو او څوك به زیږو یعني هیڅ خدای ج نشته.

۲: **وکفرالجحود** دی. کفر جحود دادی چي په زړه کي خدای ج پیژني او په ژبه اقرار نه کوي لکه کفر د ابوطالب چي دی وایي: **ولقد علمتُ بأن دین محمد من خیر الأدیان البریة دیناً. لولا الملامة او حذاًر مسبّة لَوَجدتني سَمحاً مُبیناً.**

۳: **وکفر العناد**: یعني چي د عناد او حسد د سببه وي لکه کفر د ابلیس او د احبارو ملایانو د یهودو.

۴: **وکفرالنفاق**: چي په خوله اقرار کوي او په زړه کي منکر وي.

بغوی رح وایي چي په هر قسم ددغو څلورو اقسامو چي خدای ﷻ ته څوك ورسي په ورځ د آخرت بخښنه نه ورته کیږي. انتهی. اعراب الآیه.

درویش وایي ددي آیت تفسیر او اعراب په بیضاوي، تفسیر مظهري او روح البیان کي داسي بیان سوی دی چي: **الذین کفروا** یعني موصول سره د صله اسم د **إنّ** دی چي د حروف مشبه څخه دی او **سواء** مصدر دی په معنا د استواء چي دي ته اسم مصدر وایي او حمل یي پر **الذین** مبالغةً دی لکه زیدٌ عدلٌ او یا استواء په معنی د مستوی ده. او جمله د انذرتهم آه مرفوع محلاً ده فاعل د سواءٌ ده کانه قیل مُستو علیهم انذارك وعدمه. او یا جمله د انذرتهم آه مبتداء ده او سواءٌ یي خبر مقدم دی یعني انذارك وعدم انذارك سیان علیهم.

**سوال** : أَأَنْذَرْتَهُمْ آه خو فعل دی ، نو څرنګه به مسند الیه واقع سي ، یعني چي فاعل د سواء سي او یا مبتداء سي ، ولي چي مسندالیه وایي خاصه د اسم ده کما فی کتب النحو ؟

**جواب** : مسند الیه وایي د فعل په معنای تضمني دی ، یعني چي حدث دی یعني د نسبت او زماني څخه مجرد لحاظول کیږي او معنای تضمني د فعل خو مستقله ده مسند الیه کیدای سي کما فی کتب النحو .

**سوال** : ولي یې صریح مصدر نه وایه ؟

**جواب** : ددي دپاره چي فعل پر تجدد دلالت کوي ، نو معنا داده که متجدد انذار وه دوی ته ورکړه سي هم دوی ته فائده نه کوي .

**پوښتنـــه** : همزه او اَم په آیت مذکوره کي خو دپاره د استفهام دی او استفهام خو په جمله پوري تعلق نیسي ، نو څرنګه په آیت مذکوره کي جمله په معنا د مفرد أی إنذارك وعدم إنذارك ترجمه کړه سوه ؟

**جواب** : حضرات مفسرین رح وایي چي همزه او ام په دي آیت مبارك کي مجرد او خالي د معنا څخه د استفهام دي او په معنی د تاکید د معنا د استواء دی .

**فائده** : خدای جل سلطانه یوازي اِنذار ذکر کړی چي تخویف د عذاب الله څخه یې معنا ده او بشارت یې نه کی ذکر چي معنا یې زیری په نعمت او جنت سره دی . ددي سببه چي دفعه د ضرر اهم ده تر جلب د نفع ، نو چي اِنذار وه دوی ته فائده ونکړه نو بشارت په طریق اولی نفع نه کوي .

**فائده** : خدای ﷻ وویل : سواءٌ علیهم او داسي یي نه وویل سواءٌ علیك ددي جهته چي انذار او عدم انذار خو علیه السلام ته برابر نه دی ، بلکه په انذار کې خدای جل شانه ورده ته ثواب د انذار ورکوي که څه هم دوی ایمان نه راوړي . وعلی هذا فقس انذار علماء الأمة رح یعني چي ددوی په انذار خدای ج وه دوی ته ثواب ورکوي که څه هم ددوی په انذار سره عمل ونه کړه سي . فلاینبغی لعلماء الأمة المرحومة ان یترکوا الوعظ والتبلیغ والانذار والتخویف بعلة انه لاینفع فی السامعین ولایترکوا ثوابهم فی التخویف والانذار والترغیب والترهیب ، بلکه امکان لري چي یو انذار او تخویف که فائده سامعینو ته ونه کړي بلکه په کراتو مراتو سره به فائده وکړي لکه ډیره خیرنه جامه چي په کراتو مراتو یې د پاك والي امکان سته.

**قوله لایؤمنون** : دا جمله مستقل جمله ده محل د اعراب نه لري ، ددي دپاره راوړه سوه چي په سواء علیهم آه کي اجمال دی یعني څه شی برابر دی او دوی د انذار او عدم انذار په حال کي پر څه حال دي ، نو جواباً خدای ج وویل چي د دوی حال دادی چي لایؤمنون .

**پوښتنه** : چي ددغو کافرانو په حال کي چي خدای ج خبر وو چي ایمان نه راوړي نو د څه حکمت دپاره علیه السلام په امر کړي چي ته دوی ته تبلیغ د اسلام وکړه ؟

**جواب** : حکمت الهي په دي کي دادی چي پر دوی حجت او دلیل قائم سي چي په ورځ د قیامت دوی څه عذرونه وایي چي ددي حکمت بیان په هل آیت کي خدای جل جلا له بیان کړی دی (لئلا یکون للناس علی الله حجةٌ

بعدالرسل) او بل آیت کې خدای ج داسې ارشاد فرمایلی دی . ( ولو أهلكناهم بعذابٍ من قبله لقالوا ربنا لولا ارسلت الينا رسولاً فنتبع آياتك)

**سوال** : چې خدای خدای جل شانه خبر وو چې دغه معهودین کفار ایمان نه راوړي ، نو ولې یې دوی دمخه نه هلاکول لکه قوم نوح علیه السلام چې هلاك کړه سوه ، وروسته تر دي چې خدای جل شانه نوح علیه السلام ته خبر ورکړی ( إنه لن يؤمن من قومك الا من قد آمن )

**جواب** : رسول کریم صلی الله علیه وسلم خو رحمت للعالمین وو لکه چې قرآن چې شاهدي ورکړي ده ( وماأرسلناك الار رحمة للعالمين ) وقال الله تعالى ايضا ( وماكان الله ليُعذبهم و انت فيهم الآية )

او بل جواب دادی چې هلاك د قوم نوح علیه السلام خو په دعا د نوح علیه السلام مابین ته راغله چې ( ربِّ لاتذر على الارض من الكافرين ديَّاراً ) او آنحضرت صلی الله علیه وسلم داسي په عمومي ډول ښرا نه ده کړي . بلکه ورته دعاء یې د شفاعت د امت دپاره ساتلي ده كما جاء في حديث البخاري وغيره.

**شهانه فائده** : بعض جاهلان کسان وایي چې خدای جل سلطانه چې اخبار وکړی په عدم ایمان سره د معهود او مذکورو کافرانو نو خلاف د اخبار څخه دخدای ج خو ممتنع دی ، نو تکلیف ددغو کافرانو په ایمان سره خو تکلیف په مالایطاق سره دی وهو مرفوع شرعاً . لقوله تعالى : (لايُكلف الله نفسا إلا وسعها ) فكيف يصح تكليف هؤلاء الكفرة بالايمان)

**والجواب** : عنه کما فی البیضاوی و روح البیان و روح المعانی والتفسیر الکبیر للإمام الرازی رح . وشرح العقائد و شرح المقاصد للعلامة التفتازانی رح والمواقف للقاضی عضدالملة والدین رح وشرحه للعلامة السید الجرجانی رح وغیرها . دادی چي اخبار دخدای جل شانه په وقوع د یو شي او یا په عدم د یو شي په اختیار د بنده سلب د اختیار د بنده نه لازموي چي هغه فعل به نو ضروري وي او د قدرته د بنده به خارج وي . لکه چي خدای جل سلطانه چي اخبار وکړی د خپل فعله څخه په خپل قدرت او اختیار او اراده . نو دا فعل خو دخدای ج د قدرت څخه خارج نه ګرځي بل اخباره تعالی وعلمه تعالی عن فعل العبد باختیاره یؤکد الاختیار ولایوجب الاضطرار . وهذا مقامٌ و عرٌ لایفهمُه الکافةُ . د مثال په توګه یو سړی د بل سړي لاسونه او پښي ور تړي او پر څره مثلاً یي بار کړي ا یو خای یي یو سي . دا رسیدل د سړي اضطراري بولي . او که یو بادار وه مریي ته ووایي . یا پلار وه څوی ته ووایي او یا استاذ وه شاګرد ته ووایي چي ته به حتماً فلانی خای ته څي . نو هغه سړی د جهته د مراعت د بادار او یا د مراعت د پلار وغیره په اختیار سره که یي څه هم په زړه نه وي خوښه او ورته تکلیف وي . نو په دي کار کولو دی مسلوب الاختیار نه دی بلکه اختیار یي پر خای دی ولهذا القسم کثیرة من الامثلة لو تفکّر العاقل فیها عرف الفرق بین الاضطرار والاختیار فافهم هداك الله

**پوه سه !** چي د انسانانو استعدات مختلف دي ، ددي خایه باید اختلافات د استعداداتو سړي ته بداهتاً معلوم وي چي په مکه مکرمه چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم اعلان د کلمة التوحید وکړی ، په اول

ملاقات کي سیدنا ابوبکر الصدیق رضی الله تعالی عنه بیله درنګه او بیله د معجزي د طلبه قبول د توحید وکړی ، نو د صدیق نوم یې د جناب الهي څخه په برخه سو . او په مسلمانانو کي الی یوم القیامة په صدیق اکبر سره شُهرت په نصیب سو . او په حدیث شریف کي راغلي دي چي په ورځ د قیامت به بیرغ د صدق په لاس کي د ابوبکر صدیق رض وي وهذا فضلُ الله یؤتیه من یشاء . او تولـه صدیقین د امت محمدیه ﷺ به دده تر بیرغ لاندي جنت ته روان وي . او بالعکس ابوجهل لعین چي آنحضرت صلی الله دده پر ایمان ډیر حریص وو ، په دي سبب چي دی مشر د اهل مکه وو او دده په ایمان راوړو سره ډیر اهل مکه وو اقتداء کول او ددي کبله هره معجزه چي به ابوجهل وغوښتله : علیه السلام به هغه معجزه ورته ښکاره کوله ، لکن سره د هغه ابو جهل ایمان نه راوړی . سعدی رح

چون بود اصل جوهري قابل ÷ تربیت را درو اثر باشد
هیچ صیقل نکند اندکرد ÷ آهني را که بد گهر باشد

**حکایت :**

چي استعداد کامل وي ، په لږ تنبیه سره انسان و پایي ته د کمال رسیږي . عارف بالله المولی جلال الدین الرومی قدس سره د سلطان ابراهیم بن ادهم رحمه الباری څخه په مثنوی معنوی کي داسي نقل کړي دي چي یو شاه عادل مقبول عندالرعیة وو یعني جوهر یې اصل وو او استعداد یې کامل وو ، نو دی یوه ورځ چي د شاهي درباره څخه کور ته راغلی نو ده په یوه برج کي د قصر شاهي یوه خوا او بله خواته وکتل ، د نژدي غره په لمن کي یې یو سړی ولیدی چي هغه د بغل د توبري څخه یو شی راوکښی او په پیاله کي د مشکولي څخه یې او به واچولي او هغه

شی یي پکښتي واچاوه . او پر سر یي پورته کړی او وي چیښتی ، بیا یي یوه ډبره راکش کړه ، سر یي پر کښېښودی بیده سو . د شاه پکښتي سودا سوه چي دا د بغل د خولی څخه یي چښي په اوبو ګډ کړی او وي خوړی ، نو عسکر یي ور واستاوه چي ورسه د غره په لمن کي چي هغه سړی پروت دی رایي وله . عسکر ورغلی ملنګ یي دخوبه راویښ کړی چي شاه دي غواړي ، ملنګ حیران سو چي شاه نو ما څه کوي ؟ خیر خو ملنګ خپله توبره وه بغل ته واچول او پیاله و مشکوله یي هم راواخیستل شاه ته راغلی .

شاه پوښتنه ځني وکړه چي تا چښي وخوړی؟ ملنګ توبره ورته خلاصه کړه چي زه په میاشت کي یو وار د مسلمانانو پر کورو ګرځم . یو څه ډوډی ټوله کړم او هغه وه لمر ته کښېږدم ، چي وچه سي نو یي میده کړم، په دي توبره کي یي واچوم ، هر وخت چي وږی سم یو څه په اوبو ګډه کړم خان په موړ کړم.

شاه ورته وویل چي ولي هره ورځ د مسلمانانو پر کورو نه ګرځي ، چي کم ازکم پسته توده ډوډی به درپیدا کیدای او خوړلای به دي ؟

ملنګ ورته وویل چي زه خدای ج د عبادت دپاره پیدا کړی یم . نه د هر روزه فقر دپاره . نو شاه ورته وویل چي په ورځ د قیامت به خدای ج ستا څخه باز خواست ددغو شیانو هم وکړی . ملنګ ورته وویل چي هو ، د سالم بدن او ددغي وچي ډوډی او اوبو د شکر بازخواست به راڅخه کیږي ، خیر شاه ملنګ چي رخصتاوه عطیه د روپو یي ورته پیش کړه ، خو ملنګ یي د اخستو څخه انکار وکړی . ملنګ ولاړی . سلطان ابراهیم ﷬ د ځان سره فکر وواهه چي دا دونه نعمتونه چي خدای پاک تاته درکړي دي تا یي نو څه شکر ویلی دی ، او حساب هم داغسي سخت

دی . تر ماښامه په داغه فکر کي غرق وو ، چي ماښام سو او د ماختن لمونځ يي اداء کړی . نو يي مصلی اواره کړه ځور کعته لمونځ مثلاً ځه تلاوت د قرآن عظيم الشان يي وکړی دپاره د شکر د نعمتو دخدای ج ، چي ستړی سو نو پر پلنګ شاهي بيده سو ، نيمه شپه پر بام د قصر شاهي د ګوتو کړپی دی

شاه سراسيمه راوغورځيدی چي دا ځرنګه ترپی دی . دخوني راووتی دغ يي پر وکړی چي څوك ياست؟

شنيدستم که ابراهيم ادهم ✣ شبی بر تخت دولت خفت خورم

زسقف خود شنيد آواز پای ✣ زجا بر جست چون آشفته رايی

بندی گفت اوکين کيست بر بام ✣ که دارد بر سپهر قصر ما کام

جواب آمد که ای شاه جهان گير ✣ شتر گم کرده مرد مفلسم پير

زخنده گشت شاه بر جای خود سست ✣ که بر بام آدمی هرگز شتر جست

دگر بار پاسخ آمد که ای جوان بخت ✣ خدا جويی کسی کردست بر تخت

چو بشنيد اين پيام از هاتف غيب ✣ فراغت کرد از دنيا بلاريب

رسيد از راه تجريدی بمنزل ✣ پس از دربار شد مقبول و مقبل

داوه څو خواره ببتونه د مثنوی معنوی . قصه تجريد سلطان ابراهيم بن ادهم چي غيبی پيغام واوريدی ، نو دځان سره يي دا فيصله وکړه چي د تخت شاهي سره سره د خدای جل شانه محبت او شکر نه سي پر ځای کولای ، نو د تخت شاهي څخه يي لاس پر سر کړی او د سپيدو سره يي د

سحار لمونځ په کور کي وکړی او د اهل عيال او د ټولو نعمتو څخه او د شاهي تخت څخه يي الوداع وکړه او د کوره ووتی په نيت د حرمينو شريفينو او په لاركي يي شاهي کالي ديو غريب سړي په کالو بدل کړه ، او نن دلته سبا هلته روان سو او حُب الهي ورځ په ورځ په زړه کي ډيريدی. حاصل دا چي هر څو زمانه چي په لار کي پر تيره سوه . آخر حرمينو شريفينو ته ورسيدی او هلته يي نيت د اقامت الى آخر العمر پوري وکړی .

نو پر مقتضا د هغه حديث قدسي چي خدای پاك وايي : من تقرب إلَيَّ شِبراً تقربتُ اليه ذراعاً ومن تقرب إلَيَّ ذراعاً تقربتُ اليه باعاً الى آخر الحديث . سلطان ابراهيم رح پس له کمي مودي په حرمينو شريفينو کي مقبول شخص وګرځيدی او ډير عقيدت مندان او مخلصان او مريدان يي پيدا کړه .

واوره ! چي بادشاهي دده څرنګه سوله ؟ چي شاه لادرك سو او وزيرانو په ټوله مملکت کي تلاش وکړی پيدا يي نه کړی . او دا هغه وخت وو چي نه په دنيا کي خصوصاً په اسلامي مملکتو کي تلفون وو او نه تلويزون وغيرهما لکه راديو وه ، نو وزيرانو په سبب د عدالت د شاه ، دشاه يو نابالغه خوی برای نام پر تخت شاهي کښيناوه . کاروبار د مملکت دوی پر ذمه واخيستی ، او دا يي فيصله وکړه که شاه پيدا سو خو خپله بادشاهي به سمبال کي او که نه سو پيدا خوی به يي خدای ج لوی کړي ، خپله بادشاهي به پخپله پر مخ بيايي . لکن پلار خو په سبب د عزم د اقامت د حرمينو شريفينو نسو پيدا او خوی خدای ج ځوان او د تخت شاهي لائق وګرځاوه ، نو وزيرانو ټولو په اتفاق واکي د سلطنت من کل الوجوه ده ته وسپارلي .

درویــش وایــي چــي ددي عبرتنــاکي او حیریــت د قصــي څخــه بایــد مسلمانان نصیحت حاصل کړي. ویل سوي دي : مَالایُدرَكْ کُله لایُترَكْ کُله.

# خَتَمَ اللهُ عَلٰى قُلُوبِهِمْ

خدای ﷻ مهر لګولی ددوی یعني دهغه کفارو چي ددوی حالات او صفات دمخه تیر سوله، یعني دا نو اوس ذکر د عذابو ددوی دی

**پوه سه!** چي په بیضاوي او تفسیر مظهري او روح البیان کي ددي آیت په تفسیر کي وایي چي حاصل د ټولو دادی : چي ختم په لغت کي پوټولو ته وایي او پر لفافه وغیره چي مهر ولګول سي ، نو په دي مهر سره هم پوټول د مکتـوب دی ، ترڅو چي تر مُرسَل الیـه پـوري رسـیږي ، اوپـه حقیقت کي پر زړه د کفـارو حسـي مهر خو نسته بلکه مـراد ختني مهر معنوي دی چي په زړو کي ددوی په سبب د کفر ددوی او په سبب د تقلید د نیکه ګانو او د قبیلو د مشرانو او یا د حاسدانو ملایانو یو کیفیت پیدا سوی وو چي د هغه د سببه دوی ته کفر او عصیان ښه معلومیږي او د ایمان او طاعت څخه یي بد راځي . نو ددغه هیئت د پیدا والي په سبب پر دوی نصیحت د ناصح او انـذار د نبی تـاثیر نـه کـوي او پـه معجزاتو کي د نبی یي نظر صحیح نه کوي ، نو دغه هیئت قلبي ته د دوی مجازاً ختم وویـل سو . او پـه قـرآن کـریم د پیـدا والـي څخـه ددغه کیفیت په ډیرو الفاظو سره تعبیر سوی دی . په یوه آیت کي په طبع تعبیر ختـي سـوی دی کماقـال الله تعـالی : ( اولئـك الـذین طبـع الله علـی قلوبهم.الآية) اوپه بل آیت کي د اغفال په نامه یاد سوي دي کما قال جلَّ

ذکره ( ولا تُطعْ من أغفلنا قلبه عن ذكرنا) او په اقساء سره هم قال الله تعالى : ( وجعلنا قلوبهم قاسيةً )

په قرآن مبارك کي ددغه هیئت و خدای ج ته نسبت راغلی کما فی الآيات المذكورة. دا اسناد په دې سبب دی چي دا هیئت د ممکناتو د جملي دی او ممکنات ټوله په قدرت الهي عالم وجود ته راځي .

**پوښتنه:** چي دا هیئت د خدای جل شانه دخوا پیدا دی ، نو د کافرانو په دې کي څه عیب دی . او بل دا چي خدای ج چي ددوی په زړو کي دا هیئت پیدا کړی ، نوځو خدای ج دوی منع کړه د هدايت او ایمان څخه ، نو بیا دوی ته عقوبت څرنګه ورکوي ؟

**جــواب:** په حدیث مبارك کي راغلي دي : كل مولودٍ يُولد على فطرة الاسلام . الحديث. نو ددوی زړونه د ابتدائي خلقت څخه دا هیئت نه وو پکښي تر څو چي دوی معذور وګڼل سي او دعذاب مستحق نه وګرځي ، بلکه دا هیئت ددوی د اختیاري کفره څخه پیدا سو . قال الله تعالى : (بل طبع الله عليها بكفرهم ) وقال فی موضع آخر : ( ذالك بأنهم آمنوا ثم كفروا فطبع على قلوبهم .

حاصل د جواب دادی چي دا ختم ددوی پر زړو ددوی جزاء ده د استمرار ددوی پر کفر وعدم النظر الصحيح ، نو ځکه د اددوی دپاره عیب سو او دوی مستحق د عذاب وګرځیدله . د مثال په توګه یو سړی چي روغو جوړو سترګو په قصد لاس ونیسي او وه څاه ته ولویږي ، خلګ دا سړی ملامت بولي ، نو ددغو کفارو بعینه دغه مثال دی . البته که څوك په سترګو نه ویني او څاه ته ولویږي خلګ منت نه پر کوي او وایي چي

معذوره وو ، يعني كه ددغو كفارو په زړو كي خلقتاً دا هيئت واى نو به معذور واى . وإذ ليس الهيئة المذكورة خلقيةً من جانب الله فليس اى ليسوا بمعذورين بل مُعذّبين عذاباً.

درويش وايي چي معتزله ددي آيت د توجيه څخه سخت حيران دي په دي سبب چي ددوى مذهب دادى چي خلق د قبيح قبيح دى . نو دا ختم پر زړو او پر سترګو او پر غوږو خو قبيح دى او د قبيح اسناد وخداى ج ته كه څه هم خلقاً وي ممتنع دى . نو دوى ددي آيت په بيان كي څو توجيه ګاني د عقل او نقل څخه لري كړي دي چي د هغو بيان قاضي بيضاوى په خپل تفسير كي او علامه تفتازاني رح په شرح عقائد او شرح مقاصد كي كړى دى . او اهل د هغو ټولو رد كړى دى .

او درويش وايي چي موږ ضرورت نه لرو وه نقل د هغو توجيهاتو او بيا ورده ولوده توجيهاتو لانها بناء الفاسد على الفاسد يعني چي دوى چي وايي : خلق القبيح قبيحٌ دا خبره غلطه ده . لانه تعالى خالق د عبادو او ددوى د عملو دى . قال عزّمن قائل ( والله خلقكم وماتعملون ) نو خلق د قبيح قبيح نه دى ، بلكه كسب د قبيح قبيح دى . والتفصيل فى كتب العقائد فراجعها ولايسع المقام لتفصيل تلك الدلائل من الجانبين

# وَعَلٰى سَمْعِهِمْ ؕ

او خدای ﷻ مهر لګولی دی پر غوږو ددوی
چي دحق اوریدو څخه یي بد راځي او په سماع د قبول سره يي نه
اوري که څه هم ظاهراً یي اوري .

**پوه سه!** چي علا سمعهم عطف دی پر قلوبهم او تر ختم الله لاندي دی ، نو په دي ختم کي پر غوږو ددوی هم هغه خبره ده چي دمخه تیره سوه ، یعني چي مراد د ختمه څخه د غوږو ختم حسي نه دی بلکه یو هیئت معنوی ددوی په غوږو کي چي هغه هیئت مانع د اوریدو څخه د تبلیغ نبوی ﷺ او دا ختم جزاء د عمل ددوی ده چي همیشه به یي غوږونه وه سماع الباطل او کفر ته نیولي وه .

او دا ختم هم خلقتاً نه دی حتی یرد الاعتراض المذکور فتذکر جمیع ماقلنا سابقاً.

**فائده:** چونکه ادراک د زړه د ټولو جوانبو څخه کیدای سي او سماع د غوږو هم د ټولو جوانبو او اطرافو څخه کیږي ، نو مانع د ادراک د زړو ددوی او مانع د اوریدو ددوی بي ختم وګرځاوه ، چي ختم پر شي ټوله شی پټوي کما سبق أن الختم هو الکتم.

او په خلاف د سترګو لیدل چي هغه خاص د جانب مقابل څخه کیږي، نو ځکه مانع د ابصار غشاوة چي معنا يي پرده ده پر سترګو وګرځوله کما سیأتی.

**پوه سه!** سمعه په معنی مصدري يعني اوريدل هم راغلي ده او په معنا د

قوت سامعه چي يو قوت الهي خارج عن طوق البشر دی چي د غوږو د

سوريو په پای کي يوه غوښه لکه د ښځي د تيو سرونه خدای جلت قدرته

پيدا کړي ده او پر هغه غوښه يوه پرده يعني پوست اوار دی چي په هغه

پوست کي قوت سامعه خدای جل شانه ايښي ده . يعني په هغه سره

اوريده کيږي كذا فی هداية الحكمة والتفصيل فی شروحه .

او سمع په معنا د خود غوږ هم راغلي ده او همدغه معنی دلته مناسبه

ده ، ولي چي ختم پر جسم کيږي او غوږ هم جسم دی بخلاف المعنيين

الاولين لانهما معنويان كمالايخفى على اُولى النهى.

**فائـــده:** تفاسير وايي چي ولي يي سمع مفرد راوړي او سره ددي چي

مضاف وه جمع ته دی ، نو يوه سمعه خو د ډيرو کسانو نه وي ؟

بعض اهل التفسير جواب داسي ورکوي چي سمع مصدر دی او د

مصادر جمع کول بي فائدي دي ، ولي چي مصدر صالح د تثنيه او جمع

دی .

پر دي جواب دا سوال واردیږي چي ابصار يي ولي جمع کړي او سره

ددي چي مفرد يي بصر دی او هغه هم مصدر دی . په روح البيان کي چي

دا جواب ورکړی دی چي بصر د سترګي نوم او هغه اسم دی مصدر نه دی

لکن دا جواب صحيح نه دی ، ولي چي بصر سترګي ته هم وايي او ليدو

ته د سترګو هم وايي ، چي معنا مصدري ده لکه سمعه . او د اصل سوال

بل جواب دادی چي مضاف محذوف دی ای مواضع سمعهم يعني چي

غوږونه دي . کمافی قوله تعالی : ( واسئل القرية ) ای اهل القرية .

ولایخفی مافیه من التکلف . او د تکلف خلاص جواب هغه دی چي امام النحات سیبویه رح ورکړی دی . هغه وايي : چي سمع په مابین کي د دوو ضمیرو ده جمع راغله چي یو د قلوبهم ضمیر دی او بل د سمعهم ضمیر دی ، نو که څه هم سمع مفرد دی په معنا د جمع دی کما هو القانون چي مفرد چي په مابین کي د دوو جمعو راسي کما فی مانحن فیه او یا وروسته تر دوو جمع راسي هغه مفرد په معنا د جمعي دی . والثاني کما فی قوله تعالی : ( يُخرجونهم من الظلمات إلى النور ) ای الی الانوار لکن یرد علیه چي مفسرین رح د ظلمات د جمع والي او د نور د مفرد والي ، وجه خو دا وايي چي مراد دظلماتو څخه انواع د کفر دی او انواع د کفر خو ډیري دي کالشرك والیهودیة والنصرانیة وغیرذالك . او د نور څخه اسلام مراد دی . اسلام خو یو دین دی .

**فائـده:** ختم د قلوب یي دمخه کړی ، ولي اصل د عدم ایمان ددغو کفارو زړونه ددوی دي او سمع چي تر بصر دمخه سوه ، په سبب د اشتراك د قلوبو سره په ختم کي لري کما مَرَّ . او سمع تر بصر افضله هم ده ، ولي چي په قرآن مبارك کي هر ځای سَمِيعٌ بَصِيرٌ راغلي دي . او هغه چي بعض اهل تفسیر وايي چي سمع شرط نبوت ده ، نو ځکه په انبیاء علیهم السلام کي کوڼ نبي خدای ج نه دی را استولی . او هغه څوك چي پر دغه وجه سوال کوي چي ړوند نبي خو هم نسته . جواب یي یعقوب علیه السلام دی چي د فراق څخه د یوسف ع په سترګو ړوند سو . ویدل علیه قوله تعالی : ( و أَلْقُوْهُ ) أی (القمیص علی وجه أبي یأت بصیراً) فتأمل.

# وَعَلٰٓى اَبۡصَارِهِمۡ غِشَاوَةٌ

او پر سترګو ددغو کفارو پرده ده.

**پوه سه!** چي غشاوة مبتداء ده متاخره او على ابصارهم يي خبر مقدم دی ، ولي قانون نحوي دی چي مبتداء چي نکیره وي تقديم د خبر پر واجب دی تاچه مبتداء ته تخصيص کیدای سي راجع کتب النحو . او دا جمله عطف ده پر دمخه جمله او سړی به وقف کوي پر على سمعهم ترڅو چي دا جمله جلا جمله سي . او على ابصارهم عطف پر على سمعهم نسي کیدای ، ولي چي بیا على ابصارهم تر ختم الله لاندي کيږي او د سترګو دا ختم نه بولي ، بلکه غشاوت يي بولي کمامرّ تحقيقه.

**فائده:** د تنکير د غشاوة معنا داده چي دا غشاوة چي پر سترګو د کفارو ده دا يوه غشاوة عظيمه ده د جنس څخه د غشاوت متعارفه چي حسي غشاوي نه ده . بلکه دا غشاوة معنوي ده چي په سبب ددي چي دوی د معجزاتو ته د نبي عليه السلام ته په نظر د عبرت او نصيحت نه ګوري بلکه په نظر د سحر او کفر ګوري وهذه الغشاوة ايضاً جزاء لكفرهم وعداوتهم النبي صلى الله عليه وسلم و تسميتهم اياه ﷺ بالساحر والكاهن والشاعر والمجنون . وقد مرّ تحقيق هذا الجزاء في تفسير ختم الله على قلوبهم فتذكره.

# وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٧﴾

او دوی لره عذاب دی لوی

**پوه سه!** چي عذاب او نکال لفظاً و معناً سره یو شی دي . په محاورد عربي کي وايي أعذبُ عن الشيئ چي سړی به د هغه شي څخه منع کوي او عذاب هم عاقل سړی د جنایت څخه منع کوي .

روح : په تفسیر یسیر کي وايي چي دعذاب عظیم معنا کبیر ده یعني د کیفیت د لحاظه او یا کثیر د مقدار د حیثیت او یا دائم وهو العذاب فی النار ابداً .

او بعض مفسرین رح وايي چي عذاب عظیم قتل او بند دی په دنیا کي او اور دی په عقبی کي . نو پر مسلمان عاقل باندي دا لازم ده چي همیشه والی پر ګناهو ونه کړي ، ولي خدای نخواسته منجر وه انکار ته ونه ګرځي یعني کفر چي د عذاب عظیم سبب دی او په طمع د دنیا او زکات وغیره باید وه ظالمانو ته سر ټیټ نه کړي او د ظالم پر ظلم سترګي پټي نه کړي او د حرام خور سړي څخه باید نه دنیا خني وغواړي او نه يي ډوډی وخوري .

بعض کسان بنه خبر وي چي د حاجي صاحب دنیا حرامه ده لکن په مزه مزه يي خوري .

سعدي شیرازي رحمه الله :

بگمراه گفتن نکو میروی ✥ گناه بزرگست وجور قوی

مگو شهد شیرین شکر فائق است ✥ کسی را که سقمونیا لائق است

وحی راواستولي چي دغه بادشاه ته ووايه چي ته چي د استقامت څخه واوښتی او زما نوم دي پر ځان کښيښود ، نو زما دي په خپل عزت و جلال قسم وي چي زه پر تا بخت نصر بابلی مسلطه وم . هغه وو چي لږ زمانه بعد بخت نصر حمله پر وکړه فضرب عنقه . او ددغه شاه د خزانو څخه يي اويا کښتی سره زر يو وړه . په روح البيان کي دغه قصه په لږ تغير سره موجوده ده .

**قال المولی جلال الدين قدس سره فی المثنوی :**

جُز عنایت که کشاید چشم را ✣ جز محبت که نشاند خشم را

جهد بی توفیق خود کس را مباد ✣ در جهان والله اعلم بالرشاد

# وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُولُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

او بعض د خلکو څخه داسي کسان دي چي په خوله وايي موږ ایمان راوړی دی پر خدای ج او پر ورځ د آخرت چي قیامت دی.

**فائده:** خدای جل جلا له (۱) اول حال د قرآن عزیز د حق والی بیان کړی

**بقوله:** ( ذالك الكتاب )

(۲) آه او بیا یي په مناسبت د حال د قرآن کریم حال د مخلصینو بندګانو چي ظاهراً و باطناً مومنان دي بیان کړی **بقوله** : ( هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ).

(۳) او بیا یي هغه کسان بیان کړه چي ظاهراً او باطناً دخدای ج او د قرآن او د اسلام دښمنان وه . **بقوله تعالی** : ( إن الذين كفروا ).

(۴) آه اوس حال د هغو کسانو بیانوي چي ظاهراً او په خوله مسلمانان دي ، دبیري د تُوري د اسلام او په باطن کي همهغسي کافران دي لکه دویم قسم چي وه دي ډلي ته منافقین وايي چي : ( لاإلى هؤلآء ولا إلى هؤلآء ) بل مُذبذبين بنهما . او همدغه ډله خبیث تره دټولو کفارو ده. ولي چي سره د کفرباطنه په اسلام او مسلمانانو استهزاء او پسخند يې واهه. کما سيأتي في بيان احوالهم بالتفصيل ، نو ددي سببه خدای ج بیان د مختوم علی قلوبهم کفارو په بیان کي د احوال ددوی دوه آیته راوړي دي او په باب د منافقینو کي يي دیارلس ۱۳ آیته ذکر کړي دي.

**پوه سه!** چي منافقين اکثر يهودان وه ، چي نامورړي کسان يي دغه دي: (عبدالله بن ابی بن سلول ، معتب بن قشیر ، اوجدبن قیس او ملګري ددوی تر دري سوه پوري رسیده )

**فائده**: کلمه د مَن موصوفه ده ، ولې چې معهود کسان نشته .

**سوال**: په ( يقولُ ) کې ضمير د مفرد راغلی دی او په ( ماهم ) کې ضمير د جمع دی ؟

**جواب**: نحات وايي چې کلمه د مَن صالح د مفرد او د جمع دواړو ده . او بعض مفسرين رح وايي چې کلمه د مَن موصوله ده او دپاره د عهد ده او معهود هغه دمخه کفار دي يعني ( إن الذين كفروا ) آه . ولې چې منافقين په عدد کې د هغو کفارو چې ( ختم الله على قلوبهم ) آه داخل دي ، لکن دوی تر هغو کفارو يو خبيث صفت بالالري . چې هغه خداع د مسلمانانو سره ده او د کفر او اسلام سره يو ځای کول دي ، ددي سببه ددوی مَقَر په دوزخ کې اسفل السافلين دی . او مجاهر کفار پر دوی سربيره طبقه کې وي .

**فائده**: تفسير مظهري وايي چې اصل د ناسُ أُناسُ وو . نو همزه يې ځني حذف کړي ، عوض يې حرف تعريف وګرځاوه . ځکه الأُناس نه دی روا چې جمع د عوض او معوض عنه لاړميږي .

بعض مفسرين رح وايي چې ناسُ جمع د انسان ده ، لکن صحيح داده چې ناسُ اسم جمع ده ولې فُعال په اوزان کې د جمعي نه دی راغلی . او په وجه کې د تسميت د انسان په ناس سره اختلاف دی .

ځوک وايي چې مشتق د اُنس څخه دی په معنا د الفت دی ، ولې انسانان يو د بل سره الفت لري او يا روحان د بدونو سره اُلفت لري وبالعكس .

او بعض وايي چي مشتق د آنس څخه دی په معنا د ظهور دی ، ولي انسانان ظاهر او په سترګو ليدل کيږي لکه جن چي جن بولي په سبب د پټوالي د سترګو څخه . او بعض وايي چي د نسيان څخه ما خوذ دی. قال الله تعالى : ( ولقد عهدنا الى آدم من قبل فنسى . الآية)

**پوښتنه**: تفسير مظهري وويل چي الأُناس نه ويل کيږي او سره ددي چي په شعر عربي فصيح کي داسي راغلي دي :

**إن المنايايطلعن على الأُناس الآمنينا ÷ فترزهم شتّى وقدكانوا جميعاً وافرينا**

**ترجمه**: په تحقيق مرګونه راخيژي يعني راځي پر خلکو چي دوی دمرګه خان بيغمه بولي ÷ نو دا مرګونه دوی وګرځوي فراکنده او حال دا چي دوی وه سره جمع يعني ټوله ژوندي کامل وه .

**جواب**: قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چي دا شعر شاذ دی ، يعني د قياس مذکور څخه مخالف دی . درويش وايي چي دا شعر د ضرورت شعري په سبب راغلي دی .

**تنبيه**: منافقانو ولي دا دوه جزء د ايمان په ذکر سره خاص کړه يعني ايمان بالله و باليوم الآخر ، او ايمان بالرسل والكتب يي نه کی ذکر ؟

**جواب**: دوی مسلمانانو ته په خيال کي دا ورکول چي موږ د ايمان سر چي ايمان بالله دی او پای چي ايمان باليوم الآخر دی دواړه سره جمع کړي دي نو مابين ته د بيان ضرورت سته .

او حکمت الهي په ذکر کي ددغو دوو ۲ مؤمَن به دادی چي ايمان په دغو دوو سره اګر چه مُشترك دی په مابين کي د قرآن او تورات . او دوی

په دغه دوه کي خان مخلص په خپل زعم سره بولي ، خو بيا هم په دغو دوو جزء کي دوی منافقين دي ، ولي چي دوی مسلمانانو ته دا په خيال کي ورکوي چي زمونږ ايمان باالله داسي دي لکه ستاسي ايمان باالله ج او سره ددي چي دوی دروا غ وايي ، ولي چي يهود ( عُزير ) ابن الله بولي او نصاری (عيسی ع ) ابن الله بولي . او ددوی ايمان پر يوم الآخر باندي هم داسي نه دی لکه د مسلمانانو چي دی . ولي چي دوی خو وايي : ( لن يدخل الجنة إلا من كان هودا او نصاری ) او دا صريح درواغ دي .

**پوه سه!** چي قول او کلام دواړه مصدرونه دي په معنا د تلفظ بما يفيد دی او په معنی د مقول او متکلم به هم راغلی دی . بلکه په معنا د معنی

الوحي لایستطیع احد ان یحکم علی شخصٍ بالمنافق بالمعنی المذکور یعني المنافق الکافر . إلا بالقرائن الواضحة الصادرة من شخصٍ .

**پوه سه!** چي نفاق دوه قسمه دی . یو نفاق دعقیدي دی چي بیان یې تیر سو . او یو نفاق د عمل دی . په حدیث صحیح کي د بخاری او مسلم وغیرهما راغلي دي : ( أَرْبَعَةٌ مَن كُنَّ فيه كان منافقاً خالصاً ومن كان فيه خصلة منها كان فيه خصلة من النفاق حتى يدعها . مَن اُوتمن خان ، مَن وعد اخلف وَمَن عاهد غدر ومن خاصم فجر او کما قال ﷺ .

**ترجمه:** څلور خویه چي په سړي کي وي هغه خالص منافق دی او که په سړي کي یو خوی ددغو څلورو خویو وي نو په هغه کي یو خوی د نفاق سته تر هغو چي هغه خوی پرېږدي . هغه خویونه دادي : چي ته دی آمن وبولي دی خیانت کوي . ۲) چي وعده ورسره وکړي خلاف د وعدي کوي. ۳) چي یو قرارداد درسره وکړي په هغه کي غدر او چم کوي . ۴) او چي د چا سره یې جنګ سي فحش بښکنځل کوي .

درویش وایي : چي ډیرو مفسرینو رح په ترکیب کي د (ومن الناس من یقول) آه تفصیل او بیان نه دی کړی . لکن چونکه دا یو مُغلق ترکیب دی نو دپاره د وړونو طالبانو د بیان څخه یې چاره نه لرم ، که څه هم وه اطناب ته منجر سي .

**پوه سه!** چي مشهوره ترکیب خو دادی چي مَن یقول آه مبتداء ده او من الناس یې خبر دی او ټوله جمله په عطف قصه عطف ده پر قصه د إن الذین کفروا آه لکن علامه تفتازانی رح په حاشیه کي د کشاف پر دي

ترکیب دا سوال کړی دی چي ځای د فائده په جمله خبریه اسمیه کي خو
خبر وي ، نو ددي اخبار چي من یقول انسانان دي څه فائده ده ؟

**جواب:** أنّ ناس په عرف عام کي د تحقیر دپاره دی یعني من یقول آ
صرف په جنس او په ژبي انسانان دي او د انسانیت دخواصو څخه په
دوی کي هیڅ علامه نسته ولاشك ان هذا الخبر فی غایة البلاغة والفائدة

**پوښتنه:** څه دلیل دی چي لفظ ناسُ دپاره د تحقیر دی ؟

**جواب:** یو ستر عالم که پر لار روان وي ، بل پسي ور رټ کي آسړیه ! دغه
عالم په دي نداء وه هغه ته خوشکه کوي ، نو خو دا عالم په دي پوهیږي
چي دا د تحقیر لفظ دی ورنه ملاصاحب خو په رښتیا سړی دی خر او
غویي خو نه دی .

او بل دلیل دادی چي علماء د احنافو رح د امام بخاري رح څخه گیله
لري چي دی ولي چي د امام اعظم رح قول رانقل کوي ولي داسي وایي
و قال بعض الناس او ذهب بعض الناس کم ازکم داسي به یي ویلي وای :
وقال بعض العلماء او بعض الفقهاء او په خپله علامه تفتازاني رح په
حاشیه مذکوره کي وایي چي من تبعیضي په معنی د بعض دی نو معنا
داده : وبعض الناس نو دا مبتداء د او من یقول تر آخره خبر دی ، نو دا
خبر بلاشکه فائده مند دی . لکن بعض حواشي د شرح العقائد للعلامة
التفتازاني رح وایي : إنّ ابتدائیة من التبعیضیة مما اخرجه الشارح من
القوة الی الفعل و عبارة هذا المحشی یحتمل المدح والذم وایضا یحتمل
القبول والرد وهذا تحقیق هذا القرآني . ومن الله التوفیق

درویش وایي : وما انا من کید الحسد بآمن

هم يحسدونني وشر الناس ❖ من عاش في الناس يوما غير محسود!
لکن په مقابله کي د حاسد قوات د مقصود دی

وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ ﴿٩﴾

او هيڅ کله دوی نه دي موسان

ولي اصل معتبر په ایمان کي تصدیق قلبي دی او هغه په دوی کي نسته بلکه صرف د خولي اقرار دی ، هغه صرف د مسلمانانو د خداع دپاره او فقط د دفع د دنیایي ضرر دپاره .

په روح البیان کي وایي چي هره دعوه چي بي دلیله د صحت وي هغه مردوده ده لکه دعوی ددغو منافقانو .

## حکایت:

یو شیخ کامل مکمل چي ډیر مریدان یي درلوده او یو مرید یي وو چي دعوی د ډیر اخلاص د شیخ سره درلوده او دا یي غوښتل چي په اسرار الهي وو ما خبر کړي او ما دخان خلیفه هم وګرځوي او ده خان لوی امین معرفي کړی وو . نو شیخ دپاره د امتحان او دده د ابطال د دعوی دپاره یي یو بل مرید راوغوښتی او هغه ته یي وویل چي ته به یو څو ورځي د فلاني اطاق دباندي نه راوزي بیا شیخ را ولاړسو او یو پسه یي را وایستی او ذبح یي کړی په خپل اطاق کي او چاره او لاسونه او کالي یي دهغه په وینو سره کړه او بیا یي هغه مدعی مرید راوغوښتی او هغه حلال کړی پسه یي په یوه جوال کي اچولی وو . مدعی مرید چي راغلی او د شیخ چاړه په لاس کي په وینو سره او کالي او اطاق هم په وینو لړلي دي نو مدعی مرید ورته وویل یاسیدی ماهذا ؟ یعني دا څه قصه

ده ؟ شیخ ورته وویل چي فلانی مرید عین هغه چي ده پټ کړی وو دلته راغلی او زه یې ودرولم باره مي مړ کړی. او د شیخ غرض د قتله څخه دفع د شهواتي امورو د مرید وه ترڅو چي د قتل په اخبار کي کاذب نسي، نو شیخ وه مدعی مرید ته وویل چي دادي ستا سره امانت وي او ماښام راسره چي دواړه دا جوال په سرای کي پټ کړو او ډیر پام کوه چي څوك په دي راز خبر نه کړي ، نو ماښام شیخ او مدعی مرید د شیخ د اطاق وه شاته یوه غار جوړه کړه او جوال و مافیه یې پکښي ښخ کړی.

او چونکه هغه ژوندی پټ کړی مرید ماښام کور ته نه ورغلی ، نو سحار یې پلار پسي ورغلی چي زما خوی براېي کور ته نه راغلی. نو شیخ ورته وویل چي خوی دي زما سره دی او زما په کار دی. پلار يې ولاړی ، نو هغه مدعی مرید ته چي د شیخ قتل ورمعلوم سو نو د شیخ څخه یې عقیده بدله سوه ورغلی دهغه بل مرید پلار ته او ورته وي ویل چي خوی دي شیخ مړ کړی او ما و ده په دواړو د شیخ د اطاق تر شا د شپي ښخ کړی. پلار دهغه بل مرید ورغلی حاکم الوقت ته یې عریضه وکړه چي زه،ا خوی فلاني شیخ وژلی دی او ښخ کړی په سرای کي دی. او حاکم الوقت ته چونکه جلالت او بزرګي د شیخ مذکور معلومه وه ، نو حیران سو او د پلار څخه د هغه بل مرید یې طلب د شاهد الواقعه وکړی. نو هغه مدعی مرید راغلی شاهدي یې حاکم الوقت ته اداء کړه چي ما ورسره ښخ کړی د شپي په جوال کي د شیخ د اطاق سره ، نو حاکم د احتیاط دپاره قاضي د محکمي او بعض علماء او شاهد د واقعي یعني مرید مدعی دپلار سره د هغه بل مرید ورسره کړه چي تاسي ورسی دغه مدفون راوکاږی ، که دغه سړي خوی وو نو بیا به د شیخ سره قانون الهي وچلوو. خیر قاضي او ملایان چي شیخ ته ورغله او ورته وي ویل

چي دغه سړی وايي چي زما خوی شیخ وژلی دی . شیخ ورته منکر سو او وي ویله چي ما نه دی وژلی . هغه مدعی مرید ورته راتیر سو او ډیر سخت بنکنځل يي وه شیخ ته وکړه چي ولي دله دووسه ما و تا د شپي دلته نه کی بنیخ ؟ شیخ ورته وویل چي ورسی هغه ځای وشني . هغو چي هغه ځای وشانه او په وینو لړی جوال يي راوکښی ، نو جوال چي يي خلاص کړی ، حلال کړی پسه پکښي کي وو . او شیخ دهغه سړي پټ کړی خوی ته ورروغ کړه . هغه ژوندی راووتی . قاضي او علماء او د هغه بل مرید پلار حیران پاته سوله ، نو شیخ وه قاضي او ملایانو ته دمرید مدعی قصه وکړه او هغه مرید مخ توری سو . او پښیمان سو لکن پښیماني فائده نه ورته کوله .

درویش وايي : چي په اوسنۍ زمانه کي دغه درواغو مدعیان په شاګردانو کي بیخي ډیر دي باید استاذ د خولي په خبرو خطا نه وزي . او که چیري پټ راز وو باید د هر شاګرد سره يي شریك نه کړي .

په راديو کي يو پټ راز داسي ژر نه نشر کیږي لکه چي بي اخلاصه طالب ته چي پټ راز سړی ووايي خصوصاً که دي وه هغه طالب ته دي دا هم وويله چي پام کوه چي دا خبره چاته ونه کړي .

درویش وايي چي طالبان چي د ناکامی سره مخامخ وي ، لوی سبب يي بي اخلاصي ده إلا ماشذَّ وندر.

درویش وايي چي زما تخمیناً ۶۰ شپیته کاله د درس کیږي او زه د امیانو دلاسه دونه په عذاب سوی نه يم لکه د شاګردانو د لاسه.

يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۹﴾

او دوی يعني منافقين چم کوي دخدای ﷻ سره او د هغو کسانو سره چي ايمان يې راوړی دی او دوی نه خطاباسي مکر خپل خانونه او دوی نه پوهيږي .

**پوه سه!** چي حمله د يخادعون استيناف بياني ده يعني د سوال مقدر جواب دی چي دا سوال د ماقبل څخه پيدا سو . هغه دادی چي ددغو منافقينو څه غرض وو چي سره د کفرباطني يې اظهار د ايمان وه عليه السلام او مسلمانانو ته کاوه .

**فأجيب بان غرضهم في ذالك للاظهار الخداع .**

**فائده:** يخادعون باب د مفاعلة دی . مجرد يې خدع ده . خدع په پښتو کي چم او فريب دچاسره کول . لکن يخادعون دلته په معنا د يخدعون مجرد دی ، ولي دخدای ج دخوا څخه ددوی چم نه وو لانه قبيح يمتنع اسناده اليه تعالی کما يقتضيه باب المفاعلة . لکن دا يك طرفه چم د منافقينو چي په لباس يعني په صيغه د مفاعلي راوړی مبالغة في خداعهم لأنَّ کل فعلٍ اذا کان علی طريق المفاعلة يقتضی المغالبة والمغالبة يستلزم المبالغة علی ما بيّنه علماء النحو والمعاني .

**سوال:** چم خو د هغه چا سره کيدای سي چي هغه په باطن د چم کوونکي نه وي خبر ، لکن خدای ﷻ خو په ظاهر او باطن د هرچا خبر دی نو څرنګه منافقان دخدای ج سره چم او خداع کولای سي ؟

**جواب:** بعض مفسرين دا عبارت په حذف سره د مضاف بولي اى يخادعون رسول الله لكن خداى ج خداع د رسول كريم ﷺ خداع د حذف سره وبلل يعني مضاف يي حذف كړى تعظيماً لشان رسول الله صلى الله عليه وسلم. ددي خبري دليل دادى چي منافقينو خو هم چم د خداى ج مقصود نه وو بلكه چم د عليه السلام سره يي مقصود وو.

او بعض مفسرين رح وايي چي حذف ته ضرورت نشته بلكه معامله د رسول سره د خداى عيناً معامله دخداى ج سره ده، ولي چي عليه السلام خليفه د خداى ج دى په مځكه كي او ټوله اوامر او نواهي د عليه السلام دخداى ج دجانبه دي (ومايَنطق عن الهوى ° إن هو إلا وحيٌ يُوحى).

او بعض مفسرين وايي چي باب د مفاعله پر خپل ظاهر دى لكن لا من حيث الحقيقة بل من حيث الصورة يعني ددوى معامله د خداى ج سره چي اظهار د ايمان يي وكړى او كفر يي پټ ساتلى وو، او معامله دخداى ج ددوى سره چي اجراء د احكام د مسلمانانو ددوى سره وكړه او باوجودي چي اخبث د كفارو په نيز د خداى ج او اهل ده تر ټولو كښتني درجي د دوږخ دي استدراجاً لهم. او عليه السلام او مسلمانانو فرمان برداري دخداى ج وكړه په اخفاء كي د حال ددوى او اجراء د مسلمانانو يي پر دوى باندي معامله د متخادعينو دوطرفه ده صورةً ومن حيثُ الظاهر هذا محصل مافي روح البيان.

**پوه سه!** چي منافقين په خپل مقصد كي كامياب نه سوه، ولي د قتل او د بنده او تاړاك څخه د مالو د مسلمانانو دخوا محفوظ سوه، بلكه علاوه پر هغه د مسلمانانو په ټولو اسرارو او پټو حالاتو هم خبريدل هم او په عين حال كي يي مشركينو دمكي جاسوسي هم كوله. او د مسلمانانو د

غنیمتو څخه یي فائدي هم وړلي . او چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم او مسلمانان به غزاوو ته وتل ، دوی به د درواغو په عذرو او قسمو خانونه د غزواتو څخه پاته کوله . او دا ټوله دخدای جل سلطانه دخوا استدراج وو . **اللهم احفظنا من حال هؤلاء المنافقین وغیرهم .**

**قوله تعالی : ومایخدعون فی المظهری ( قرائةُ قراء الحرمین ) ومایُخادعون علی صیغة المفاعلة . وقرائة غیرهم علی صیغة المجرد .** دلیل ددي آیت دادی چي دوی یعني منافقینو په دغه خداع سره د مومنانو خپل خانونه غولولي دي او خطاایستلي دي ، ولي دوی توهم کړی دی او خپل په زړو کي یي دا سنجولي ده چي موږ به دي خداع د عذاب او رسوايي څخه په امن کي سو او سره ددي چي پر خدای پاك باندي خو پته نسته او خدای جل سلطانه به علیه السلام او مومنان ددوی په دغه خداع سره خبر کړي نو ضرر د خداع وه دوی ته راجع کیږي .

**فائـــده:** کلمه د واو د حال دپاره ده ای **یفعلون ، مایفعلون والحال ومایخدعون** آه اولفظ د نفس په ډیرو معناوو سره راغلی دی . دلته په معنی د ذات دی . **قال المولوی المعنوی المثنوی رح.**

بازی خودیدي ای شطرنج باز + بازی خصمت به بین دور دراز

**قوله تعالی : ( ومایشعرون )** دا جمله حال ده دّ ضمیر څخه د **ما یخدعون** یعني حال دادی چي دوی احساس ددي لاهم نه لري چي ضرر د خداع موږ ته راجع دی .

**پوه سه!** چي شعور ادراك ته د حواسو خمسه وو وایي چي د انسان په شمول ټول حیوانات یي لري ، نو دوی تر حیواناتو هم بدتر دي .ته نه

ويني چي سپي چي هر څو جنګره وي او خپل مالك يي هر څو و ډبوي نوغ نه ورته کوي بلکه لکۍ د عاجزي ورته ښوروي او منافقين د مالك حقيقي په مقابل کي ولاړ دي وهكذا سائر الحيوانات مع مالكيها.

**پوښتنه:** نفی د شعور د دوی څخه خو مستلزم نفي د علم لره ده ، نو په دي آيت کي ګويا لايعلمون وه دوی ته وويل سول . او بل آيت په شان کي ددوی داسي راغلی : ( وتكتمون الحق و أنتم تعلمون ) نو په هغه آيت اثبات د علم وه دوی ته کړی دی فماالتوفيق .

په روح البيان کي وايي چي چونکه دوی په علم سره عمل نه دی کړی نو دوی ګويا علم نه لري لأن العلم يوُجب العمل فإذا لم يعمل العالم فهو والجاهل سواء بل الجاهل اسعد حالاً من العالم الغيرالعامل لأن الجاهل قد يغدر فالمنافقون بمنزلة الجمادات.

**حکايت:**

يو عالم د علم ظاهر ملاقات ته د يو شيخ چي په علم باطن سره آراسته وو ورغلی او د شيخ كور ، مسجد او مهمان خانه وه يوه غره ته نژدي وه ، نو عالم مذکور چي د ماښام لمونځ په شيخ پسي وکړی قرائت يي خوند ور نه کړی او پر خپل راتګ پښيمانه سو . د ماښام تر لمانځه وروسته د غره وه خواته ولاړی د سيل دپاره ، نو عالم چي غره ته ورغلی د غره دخوا يو مخري پسي راميدان كړه . عالم مخ د مسجد د شيخ پر خوا ځني رامنډي كړي دي چي مسجد ته رارسيدی شيخ دمسجد څخه راووتی . عالم په ډيره وارخطايي وه شيخ ته وويل چي دغره څخه په ما پسي مخری پسي دی . په دي حال کي مخری هم راورسيدی . شيخ ورته

وویل ظالمه ! ما تاته نه وو ویلي چې زما په میلمنو کار مه لره مخرې لکۍ ورته وښوروړل او بیرته غره ته ولاړې.

نو شیخ وه عالم مذکور ته وویل چې تا ظاهر آراسته کړی فقط ، نو ځکه د مخلوقه ځخه یعنې مخرې ځخه بیریدلې او زما که ظاهر خراب دی لکن باطن مې د خدای ج په خوف آباد دی ، نو ددې سببه مخلوق زما ځخه بیریږي . یعنې نو عالم مذکور دخیلې بدګمانی ځخه توبه وکښل او نادم سو .

**فائده** : پر هر عالم لازمه دي چې دعلم سره عمل خاصتاً لوجه الله ولري او د ریا او سُمعت ځخه خلاص عمل او عبادت وکړي . وفي الحدیث : **قال علیه الصلوة والسلام مخاطباً للأمة** هغه چې زه ډیر بیریږم پر تاسي باندي هغه شرك اصغر دی **قالوا وماالشرك الاصغر** ؟ صحابه وو ورته وویل چي شرك اصغر څه شي دی یارسول الله ؟ **قال الرِّیَاءُ** . علیه السلام زیاته کړه چي په ورځ د قیامت چي خدای پاك وه بندګانو ته جزاء د اعمالو د خیر ورکوي مُراینونو ته به وایي چي ولاړ سئ هغه چاته چي تاسي دهغه د لیدو دپاره عملونه کوله په دنیا کي . ایا تاسي د هغو سره یو خیر او ثواب پیدا کولای سی .

په حدیث قُدسي کي راغلي دي خدای ﷻ وایي : **أنا أغنى الشركاء عن الشرك** . سعدي رح :

بروی دریا خرقه سهلت دوخت ✣ وگر برخُدا در فروشی نکوست

**والخلوص من الرياء صَعبٌ جداً . قال عز قائلُ**

فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ ﴿١٠﴾

په زړو کي ددغو منافقینو ناجوړي سته، خدای ﷻ یې هغه ناجوړي ور زیاته کړه په سبب ددې چي دوی درواغ ویله.

---

**پوه سه!** چي قاضي بیضاوی رح او قاضي ثناء الله رح او صاحب د روح البیان رح په یوه خوله او اتفاق دا وایي چي مرض حقیقتاً وه هغو عوارضو ته وایي لکه د سر درد ، محرقه تبه ، د نس درد وغیره ته چي بدن انساني ته عارض سي . او د اعتدال خاصه څخه یې وباسي . او ضعف ورته پیښ کړي . او ګاهي مفضی وه مرګ ته وګرځي . او مجازاً وه اعراضو قلبیه ته هم وایي چي روح د اعتدال څخه وباسي .

او د روح د کمالاتو او د فضائلو مانع سي لکه جهل باالله او حسد او کبر وغیرها . او چي دغه اعراض وه نهایت ته ورسیږي چي کفر دی ، نو سبب د هلاك ابدي وګرځي چي ژوند د دوږخ دی . نو په دغو منافقینو د عصر نبوی ﷺ کي دواړه قسمه امراض موجود وو . اماالأمراض المجازية فقد حسدوا مع النبى ص والمؤمنين فى كلمة الحق وكانوا على أخبث الامراض النفسانية حتى اوصلهم الى الكفر بمحمد صلى الله عليه وسلم والكفر بالقرآن والكفر بالتوراة وذالك هوالهلاك الابدى.

و اما الأمراض الحقيقة د منافقین مذکورون زړونو به حسي درد کاوه او طبیعتونه به یې خراب وه چي ددوی ریاست دلاسه ووتی او دوی ثبات او قوت د دین محمدي لیدی او د خدای جل سلطانه دخوا څخه دواړه

مرضه دوی ته مخ پر زیاتیدو وه .

اماالاول هر حکم الهي چي به پر علیه السلام نازلیدی ،دوی به انکار خني کاوه او عداوت به یي نور د علیه السلام سره مخ پر ډیریدو وو . نو خدای ج پر زړو ددوی طبع او رین زیات کړی لعلمه تعالی بأنهم لایؤثر فی قلوبهم الانذار والتذکیر .

واماالثانی فلأنه یزداد تألم قلوبهم وحرقها علی ازدیاد الله تعالی نصر نبیه ﷺ والمؤمنین علی اعدائهم و تبسُّط دین الإسلام فی القُری والبلاد و دخول الناسِ فوجاً فوجاً فی دین الله والإتفاق والإتحاد بین المؤمنین .

قوله عذابٌ أليم : أی فی الآخرة په داسي ډول چي بدنونه او زړونه ددوی به تول سوځي .

روح البیان او تفسیر مظهري وایي چي ألیم فعیل په معنی د مَفعَل دی یعني په معنا د مفعول دی .

**سوال** : درد کرده شده خو اهل النار دي خودي او خو درد دهنده دي نو وصف د عذاب په مفعول سره څرنګه دی ؟

**جواب** : دا مفسرین وایي چي وصف د عذاب په ألیمٌ سره مبالغه ده په شدت کي د عذاب . او بعض مفسرین رح وایي چي فعیل یعني الیم په معنا د مُفعِل علی صیغة اسم الفاعل دی یعني درد دهنده . نو پر دي تقدیر خو اتصاف د عذاب په الیم سره حقیقت دی . لکن فعیل په معنا ده مفعِل نه دی راغلی .

درویش وایي چي فعیل په معنا د مفعل خو راغلی دی کهٔ څه هم شاذ دی . کما فی قول الشاعر :

أمِنْ رِيحانة الداعي السميع ✤ يورقني و اصحابي هجوع

دغه سميع په معنا د مُسمِع پر صيغه د اسم فاعل . ريحانه د شاعر خور وه چي چا په زور ځني نيولي وه . نو شاعر ته د هغي دفراق د سببه خوب نه ورتی . نو دی وايي چي ايا د ريحاني دخوا يو څوك په ما خبري اوري چي ماته خوب نه راځي او زما ټوله ملګري بيده دي . داتجاهل د عارف دی ولي چي په حقيقت کي دی پوهيدی چي سميع نسته بلکه د پريشاني د سببه ده ته خوب نه ورتلی .

**قوله بما يكذبون** : پوه سه ! چي كلمة الباء سببيه ده او لفظ د كانوا زائد دی دپاره د استمرار د كذب دی ای سبب كذبهم المستمر في قولهم آمنا آه **پوه سه !** چي د كوفي قراء يي په تخفيف وايي نو معنا مامرٌ آنفا او باقی قراء يي په تشديد د ذال وايي يعني ( بما كانوا يُكذِّبون) ای الرسول صلى الله عليه وسلم لكن دا تكذيب الرسول ﷺ صرف په زړه كي ددوی وو .

**فائده** :كذب يعني درواغ ګناه كبيره ده . اويه حديث مبارك كي راغلي دي چي درواغ دري ځايه روا دي . يو د ميړه او د مايني تر مابين چي يو وه بل ته وايي چي ته پر ما ډير ګران يي او په حقيقت كي داغسي نه وي صرف دکورنی چارو د اصلاح دپاره دا درواغ وايي . او بل په اصلاح كي د ذات البينی عداوت كي دخلګو درواغ وايي . او بل په جنګ كي درواغ وايي لأن الحرب خُدعة.

**فائده** : خبري دپاره د مقاصدو واسطه دي نو كه هغهٔ مطلب مباح وو نو درواغ پـه هغـه كي ويـل ګناه ده . او كـه هغـه مطلب واجب وو نـو كـه پـه رشتيا ويلو سره حاصليدی نـو درواغ ويـل پكښي حرام دی . او كه بي

دروغو نه حاصلیدی ، نو درواغ ویل یکښي واجب دی کما فی انقاذ البری من الظالم السفاك . او تعریض یعني په ظاهره کِذب او په باطن کي رشتیا کذب منهی عنه نه دی . لکه په یوهِ حدیث کي چي راغلي دي چي علیه السلام او ابوبکر رض سره ملګري وه . یو کافر چي علیه السلام یې نه پیژندی وه ابوبکر رض ته یې وویل چي دا ستا سره ملګری سړی څوك دی ؟ ابوبکر رض ورته وویل : رجل یهدني السبیل دهغه کافر دا خیال سو چي ظاهر لار راښیي لکن د ابوبکر رض مراد الهدایة الی الله وو .

وما ورد فی الخبر اَنَّ ابراهیم علی نبینا علیه الصلوة والسلام کذب ثلاث کذبات فهو ایضا محمول علی التعریضات و تسمیتها بالکذب انما هو باعتبار الظاهر . یو دا وو : ( إِنِّي سَقِيمٌ ) بل داچي : ( بل فعله کبیرهم ) بل دا چي د ماینی په باره کي چي ساره یي نوم وو ده وه هغه ظالم جبار باچا ته وویل : ( هذه اُختی ) .

د اول تعریض سبب داوو چي نمرودیانو ده ته بلنه ورکړه چي زموږ سره د اختر په ورځ ولاړسه زموږ د ملایانو شوکت به ووینې ، ده ورته وویل چي زه ناجوړی یم ، غرض یي دا وو چي زه په سبب ددي چي تاسي ستوري خدایان بولی ، نو زه قلبي ناجوړی یم . په دي تعریض کي دده اصلي غرض دا وو چي ددوی څخه ځان پاته کړی تر څو چي بتان مات کړي .

درویش وایي : دهغو مشرکانو د ابراهیم علیه السلام د زماني د اختر د ورځي عادت دا وو چي دوی ښه ښه خواره به یي کورو کي پاخه کړه او لوی بت خانه چي ددوی وه ، ډیر به یي په مفروشانو عالیه شائسته کړه

او بتان به يي هم ډير صفا کړه او هغه ماکولات به يي راوړه د بتانو په مخ کي به يي دپاره د تبرك كښيښول . او دوی به ټوله خني ولاړل . او په صحراء کي به يي خوشحالي او ساتيری کاوه . چي بيا به يي خانونه سنړي کړه او وږي به هم سوه ، نو به بيرته بتخاني ته راغله او هغه ډوډی چي ددوی په عقيده بتانو برکت پکښي اچولی وو په مزه مزه وخوړله او بتانو ته به يي د تعظيم سجدي وکړي ، نو به کورو ته ولاړل .

نو ابراهيم عليه السلام چي ددوی څخه خان په بهانه د (إني سقيم) پاته کړی ، نو د موقع څخه په استفاده سره چي دوی ته وښيي چي دا ستاسي خدايان څومره بي وسه او ضعيفه دي چي د خپل خانه څخه ضرر نس دفع کولای،نو تاسي دداسي ضعيف جماد مخلوق عبادت ولي کوی؟ په دي اميد چي موږ ته به يي نفع راورسيږي او دفع د ضرر د موږ څخه وکړي . نو هغه وو چي تبر يي ور واخيستی او ټوله کوچنی کوچني خدايان يي ټوټه ټوټه کړه او په ابتداء کي يي ورته وويل : (مالكم لاتأكلون) او تبر يي د هغه لوی خدای بت وه مخ ته کښيښودی او ماکولات يي ټوله سره چپه کړه . او څني ولاړی .

دوی چي غرمه راغله بُت خانه ټوله لړلي ده او بُتان ټوله ټوټه ټوټه پراته دي نو يي وويل : (من فعل هذا بآلهتنا) او دوی سره وويل چي دا کار د ابراهيم عليه السلام دی . نو مشرانو ددوی وويل : (فاتوا به) آه نو ابراهيم عليه السلام يي راوستی او ورته وي ويل چي دا کار تا زموږ دخدايانو سره کړی دی ، نو ابراهيم عليه السلام ورته وويل : (بل فعله كبيرهم) چي دا کار دهغه لوی خدای دی چي تبر يي وه مخ ته پروت دی .

ابراهیم په دي قول کي چي : بل فعله کبیرهم دا غرض وو چي دا د بتانو ماتول ما په سبب د دغه لوی خدای د بُغض او عداوت د سببه وکړي.

درویش وایي : نو پس له دغه کاره د ابراهیم علیه السلام نمرود امر وکړی چي د فلاني غره په لمن کي تاسي تولـه بوټي او لرګي جمع کړی چي ابراهیم پکښي وسوځو او د خپلو خدایانو کومك وکړو . او خلګو هم د بوټو په جمع کیدو پیل وکړی او میل په میل کي یي لرګي جمع او ابراهیم علیه السلام یي ورواچاوه . خدای پاك ده ته نجات ورکړی لکه داقصه به وروسته په قرآن شریف کي په تفصیل راسي .

نو نمرود چي په دي کار کي پاته راغلی نو یي ابراهیم علیه السلام ته حکم ورکړی چي زما د مملکته ووزه . هغه وو چي ابراهیم علیه السلام سره د خپلي همسفري سارة مجبوراً د ملك د نمرود ولاړی .

درویش وایي چي د ( هذه اختي ) تعریض بیان به په وروسته کي چي د ابراهیم علیه السلام پوره قصه په قرآن مبارك کي راسي درته وبه کړه سي . انشاء الله العزیز . حاصل د حال د منافقینو دادی چي دوی د حضرت سید المرسلین صلی الله علیه وسلم او د مسلمانانو سره په درواغو ویلو سره خپلي شپي او ورځي سباح کولي . او د ځان او مال حفاظت یي په درواغو سره کاوه ، لکن د درواغو میدان لنډ دی . کما سیأتي في قصة غزوة تبوك إنشاءالله تعالی . سعدي شیرازي رح وایي :

گر راست سُخن گویي و در بند بمانی به زانکه دروغت دهد از بند رهائی

قال الله عزوجل :

# وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ

يعني چي وبه ويل سوه د مسلمانانو دخوا وه دغو منافقانو ته

# لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ ۙ

تاسي فساد مه کوی په مځکه کي

**پوه سه !** چي فساد هر ضررناکه قول او فعل ته وايي او ضد دده صلاح ده چي هر فعل او قول ته چي فائده پکښي وي وايي .

**سوال** : مفعول مالم يُسم فاعله ده قيل خو جمله ده لاتُفسدوا ده ، نو جملي ته څرنګه اسناد صحي دی ؟

**جواب** : اسناد وه جملي ته په تاويل د هذالقول دی . فافهم.

**سوال** : د يهود فساد فی الارض څه وو ؟

**جواب** : يهود به اهل مکه او نور قبائل د مشرکانو به يي وه جنګ ته د مسلمانو آماده کول او باعث کول به يي حتی چي مکي مکرمي ته به يي وفدونه استول او مشرکانو ته د مکي به يي ويله چي که تاسي جنګ د مسلمانانو سره شروع کړی موږ مو هم ملګري يو . او دا به يي هم ويله چي مسلمانان زموږ او ستاسي ګډ دښمنان دي ولي موږ او تاسي ټوله کافران بولي . او د مسلمانانو احوال به يي په طور د جاسوسی کفارو او مشرکانو ته استوله . او د مسلمانانو د اوس او خزرج د قومو ده انصاربه بي د بي اتفاقی او يو د بل سره د جنګولو کوشش کاوه . إلی غيرذالك

من سُوء اقوالهم وافعالهم.

قَالُوٓا إِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُونَ ﴿١١﴾

دوی به ناصح مذکور ته په جواب کي ویل موږ نه یو مګر اصلاح کوونکي.

---

**پوه سه !** چي دا جمله جواب دی د إذا ده او په ډیر کلکه اومبالغه یې جواب ورکړی یعني د مفسد خطاب ګرسره وه موږ ته نه ښایي ولي چي زموږ حال په اصطلاح کي حصر دی.

**سوال:** دغه مذکوره فسادونه خو په دي کوله او دوی چي معلوم هم وه نو دوی څرنګه ویله: (إنمانحن) آه.

**جواب:** ددوی په عقیده دا تول کارونه چي ذکر سوله عین ثواب او حق بلله. ولي په زړو کي ددوی مرض د کفر او د یهودیت وو او دا کارونه ددوی په عقیده خدمت د یهودیت باله. نو ځکه دوی انکار د فساد څخه وکړی. کما قال الله جل سلطانه فی آیة مستقلة: ( أفمن زُيِّنَ له سوء عمله فرءاه حسناً ).

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَٰكِن لَّا يَشْعُرُونَ ﴿١٢﴾

خبر او آګاه اوسئ اې مسلمانانو چې دغه منافقين دوی دي مفسدان يعني فساد پر دوی حصر او بند دی لکن دوی شعور نه لري .

**پوه سه !** چې د يشعرون مفعول محذوف دی يعني إنهم مفسدون.

**فائده:** په نفي کي د شعور ددوی ښخه اشاره خدای ج وه دي ته وکړه چي فساد ددوی لکه محسوس دی لکن ددوی حواس ته د کفر د مرض د سببه آفت رسيده دی .

قال السعدي رحمه الله :

کسی را که پندار در سر بود ✣ مپندار هرگز که حق بشنود

ز علمش ملال آید از وعظ ننگ ✣ شقایق بباران نروید ز سنگ

د سعدي رحمه الله مقصد دادی چي هر سړی چي دده په عقيده ځان پر حق بولي لکه دغه منافقين د عصرنبوی ﷺ نو ددغه سړي طمع مه کوه هيڅ کله چي حق دي واوري . دغسي سړی د ښووني ښخه د حق خوابدی کيږي. او د وعظ ښخه د واعظ تنګيږي . د مثال په توګه ګُل لاله په سبب د باران نه شنه کيږي په ډبره کي . نو ددغو منافقينو زړونه لکه ډبري وه نو ځکه په باران د وعظ نبوی ﷺ يا د اصحابو رض ددوی په زړو کي ګل لاله د ايمان او قبول وعظ نه پيدا کيږي . کما قال الله تعالى : ( أَفَمَن زُيِّنَ له سوء عمله فرءاه حسناً ) قال المولى الرومي رحمه الله :

ای که خود را شیر یزدان خوانده ✣ سالها شد باسگ درمانده

چون کند آن سگ برای تو شکار ✣ چون شکار شد سنی آشکار

غرض دمولانا رح دادی چي دغو منافقانو خپل ځانونه ددوی په خیال مخران د لاري د حق بلل یعني خپل ځانونه یي پر حق بلل مع هذا ویر کلونه د نفس خبیث چي په مثال دسپي دي عاجزه راغلي وه یعني څوك چي د نفس او خواهشات کي د نفس یعني حب الریاسة والدنیا گرفتار وي هغه څرنگه شیر یزدان وي یعني پر حق کیدلای سي . او څرنگه به هغه سپی ستا دپاره د حق ښکار وکړي . چي ته پخپله د هغه سپي نفس ښکاروي په ښکاره . یعني گرفتار په شهواتو کي د نفس اماره یي لکه دغه منافقان چي وه هر گز په سبب د وعظ او تبلیغ وه حق ته نسي رسیدای . ولنعم ماقیل :

آن کس که نداند و بداند که بداند ✤ درجهل مرکب ابدُ الدهر بماند

درویش وایي چي دا بعینه حال د منافقانو د عصر نبوی ﷺ وو نو ځکه نصیحت د مومنانو په دوی کي تاثیر نه کوی . او دوی به ویل : (إنما نحن مُصلحون) او هم ورته حال دی د هغه بعض کسانو چي سیاست او چارچلند د غربیانو بالخصوص د امریکایانو او انگریزانو تر قوانینو د اسلام او قرآن او تر سیاست د شریعت غرا نبوی ﷺ په زړو کي خوښ وي هغه هم د اسلام سیاست او قوانینوته غوږ نه نیسي . ولي په زړو کي محبت د سیاست امریکایي موجود دی . قال الله تعالی :

# وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ

او چې وه به ويل سوه وه دغو منافقينو ته چې تاسي ايمان راوړى لكه چې ايمان راوړى نورو خلكو يعني دا نفاق پريږدى .

**پوه سه!** چې لام په الناس كې دپاره د عهد دى ، مراد خني مسلمان دى او يا د منافقينو چې اكثر يې يهود وه قوي كسان دي لكه عبدالله بن سلام ﷺ و اتباعه چې په يهودو كي يو ستر عالم وو .

**فائده:** كاف د كما په معنا د مثل دى او مثل صفت د مصدر محذوف دى . أى آمنوا إيماناً مثل إيمان الناس نو كاف په محل كي د نصب دى كذا فى روح البيان . او بعض مفسرين رح چې لام د (الناس) دپاره د جنس دى او وايي چې مراد د جنس څخ هغه كامل فى الانسانيت دى .

ډيره ضعيفه توجيه ده كمالايخفى.

# قَالُوٓا اَنُؤۡمِنُ كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ؕ

منافقینو به ویل ایا موږ به ایمان راوړو لکه بي عقلان خلکو چي ایمان راوړی دی .

---

**پوهه سه !** چي همزه د ( أنؤمن ) دپاره د انکار دی یعني داسي ایمان خو موږ نه راوړو لکه چي بي عقلان خلکو چي راوړی دی .

**فائده:** لام تعریف دپاره د عهد دی . چي مراد ځني معلوم کسان دي یعني مسلمانان او یا لام د جنس دی یعني جنس بيعقلان چي ددوی په ګمان فاسد په دغه جنس کي مسلمانان هم داخل دي .

**پوهه سه !** چي سَفه قصور د عقل او خِفة د رایي ته وایي .

**ســوال :** مسلمانانو ته منافقانو بي عقلان ولي ویله او سره ددي چي مسلمانان خو کامل العقل کسان وه ؟

**جواب :** دا ویل ددوی د نهایت حماقت او ضلالت او غوایت ښخه کیږي، ولي چي ددوی په فاسده عقیده اسلام یو غلط دین وو ، نو خود یي دوی تابعان د اسلام سُفهاء بلله ، ولي ځوک چي ضلال هُدیً بولي نو به خامخا هُدیً ضلال بولي .

او منافقانو خپل دین د یهودیت چي په حقیقت کي ضلال وو هدایت باله نو ځکه دین د اسلام چي په حقیقت کي هدایت وو ددوی په فاسده عقیده ضلال وو . نو لازماً ددوی په عقیده تابعان یي سُفهاء وه .

او یا ددي سببه سفهاء وبلل چي اکثر د مسلمانانو دهغه عصر مسکینان او فقراء وه لکه صهیب ﷺ او بلال ﷺ ، ابوهریره ﷺ او اصحاب صفه ﷺ. داغنیاووقدیماًوحدیثاً دا وینا ده چي فقراء صرف بي عقلان دي.

**سوال** : ناصح په دي قول کي ( آمنوا کما آمن الناس ) خو مسلمان وه نو منافقین څرنګه مخامخ د مسلمانانو دا جواب ووایه په دې جواب سره ، خو ددوی نفاق د مابین څخه تلی او مجاهرت بالکفر لازمیدی ؟

**جواب** : اول دادی چي دوی دا جواب مخامخ وه مسلمانانو ته نه وایه بلکه په خپل مابین کي به یي سره وایه ، لکن خدای ﷻ دوی بي پردي کړه او ددوی مقاله یي مسلمانانو ته ښکاره کړه .

**دوهم جواب** : چي منافقانو لعنهم الله تعالی دا جواب په خوله مسلمانانو ته نه وایه بلکه په زړه کي د خانه سره دا خبره کوله . مګر خدای ﷻ ددوی خباثت مسلمانانو ته ښکاره کړی . دا هم د خدای ﷻ دخوا څخه یو دنیوي عذاب وو چي دوی به یي رسوا کړه .

**دریم جواب** : ابوالسعود ﷺ په ارشاد کي راوړي دي هغه دا چي منافقین د عصر نبوی ﷺ په نفاق کي ډیر رسیده خلک وه ، داسي خبري به یي د اصحابو کرامو رض سره کولي چي هغو خبرو به دوه احتماله درلوده . یو احتمال به یي بد احتمال وو چي هغه ددوی مراد وو . او بل احتمال به یي ښه وو او په هغه احتمال به یي مسلمانان خطائیستله . نو بناء علی هذا دغه خبره ( انؤمن کما آمن السفهاء ) هم دوه احتماله درلوده. یو احتمال داوو چي ایا موږ به داسي ایمان راوړو لکه بي عقلان یعني لکه تاسي مسلمانان . دا احتمال ددوی مراد وو . او بل احتمال داوو چي

ایا موږ بي عقلان یو چي د بي عقلانـو ایمـان بـه راوړو یعني چي پـه زړو کي مـو ایمـان نـه وي او صـرف پـه خـولـه بـه د ایمـان کلمـه وایـو . دا خـو د بیعقلانوکار دی . موږ خوشکر بي عقلان نه یو . زموږ خولـه او زړه سره برابر دي . پـه دي احتمال یي مسلمانان خطائیستله . نـو دا خبـره چي دوی مخـامـخ وه ناصحانو تـه د (آمنـوا کمـا آمـن النـاس) وکـړي نـو ددوی کفـر جهراً و علانیتاً ته نه راوزي . فافهم .

ددي جواب تائید هغه حدیث شریف هم کوي چي مسلمانانو به علیه السلام چي په یوه خبره به نه سو پوه (راعنا) به یي ویـل ، یعني ده زمـوږ د حال مراعت وکړی یعني دپوهیدو خیال یي وساته . دا خبره پـه ژبـه کي د یهودو بد ښکنځل وه . یعني دوی بـه یوبـل تـه (راعناً) یعنـي احمقـه ویـل . نو منافقینو په دي کلمه د مسلمانانو ډیر خوشحاله سوله او دوی بـه سره ویله چي پخوا بـه مـو علیـه السلام تـه پټـلا ښکنځل کـول . اوس بـه یي مخامخ ورته کوو . نو علیه السلام چي به وعظ او نصیحت مثلاً کـاوه یـو منافق به وررېغ کړه (رَاعِناً) حتی چي خدای ﷻ ددوی دغـه پټ راز ښکاره کړی او مسلمانان یي امر کړه . (یاایها الذین آمنـوا لاتقولـوا راعِنـا وقولـوا انظرنا) یعني پـه (انظرنـا) کـي بهانـه د ښکنځلـو د منـافقینو نسـته بخـلاف راعنا .

**تنبیه**: لکه چي منافقینو د عصرنبوی ﷺ دپاره حفظ د امور دنیویه وو یعني حفظ الدماء والاموال من المسلمین وحفظ الریاسة والجاه عن المجاهدین من اهل جلدتهم یعني قوم ددوی چي یهود وه او د هر فریقه سره په مداهنت او غوره مالی کولي کذالك بعض علماء الدور الحاضر مداهنون المقتدیین حتی که چیري مقتدیان ددوی سود خواره وه دوی په خپلو نصائحو کي د سود قبائح نه بیانوي . او که یي مقتدیان د امریکایانو طرف داره وه ، دوی په دي موضوع کي هیڅ بحث نه کوي او قبح او ملامتیا پر دغو خلګو نه بیانوي وهکذا نور قبائح که یي په مقتدیانو کي وي ، نه یي بیانوي ، بیریږي چي د منصب د امامته مي ونه باسي.

**فائده** : په اوسنی زمانه کي پر عمومي خلګو حُب الدنیا و حُب الجاه وحُب الجلال والعمل للریاء والسُمعة غالب دی لهذا مسلمانان ورځ په ورځ مغلوبه کیږي او کافران دوی په نقودو وه خپل ځان ته جلبوي.

( قال حامداللفاف اذا اراداالله هلاك إمرئٍ) چي اراده سي دخدای جل جلاله وه هلاك ته دیوچا (عاقبه بثلاثة اشیاء) نو ده ته عقاب ورکوي یعني مبتلا کوي یي په دري شیانو سره (الأول یرزقه العلم ویمنعه عن عمل العلماء) اول چه خدای تعالی سرِي ته علم ورکړي او محروم یي کړي دعمل څخه د علماوو. یعني په ورکړه سوي علم عمل نه کوي لکه د علماء صالحین رح لکه چه علماء ا احبارو ته د یهودو علم بالتورات خدای ج ورکړی وو لکن په خپل علم یي عمل ونه کړی ( والا لآمنوا بمحمد صلی الله علیه وسلم )

(والثاني يرزقه صحبة الصالحين ويمنعه عن معرفة حقوقهم ) دوهم داچي په صُحبت د صالحانو عملاوو رح او اولياوو رح يې خداى جل جلاله مشرف کړي لکن د حقوقو ښخه دهغو محرومه پاته وي .

(والثالث يفتح عليه باب الطاعة ويمنعه عن الاخلاص بل ابتلاه بالريا والسمعة ) او دريم دادى چي خداى ﷻ د طاعت دروازه پر سرې خلاصه کړي يعني توفيق دعبادت ورکړي لکن محروم يې کړي د اخلاصه ښخه په هغه عبادت کي بلکه په بلاء د ريا او سُمعي يې اخته کړي .

قال العارف الشيرازى رحمه الله :

عبادت باخلاص نيت نکوست ✣ وگرنه چي آيد زبي مغز پوست

چي زنار مغ درميانت چي دلق ✣ که درپوشي الله بهر پندار خلق

وفى موضع آخر:

بروى در با خرقه سهلت دوخت ✣ اگر برخدا در فروشى نکوست

وفى موضع آخر:

که داند چو در بند حق نيستى ✣ اگر بيوضوء درنماز ايستى

اگر جز بحق ﷻ ميرود جاده ات ✣ در آتش فشانند سجاده است

درويش عبيدالله وايي :

که فاسق يم که فاجر يم ياالله! ✣ اشاعت د دين مي خوش دى يا الله

هذا إشارة الى الحديث النبوى ﷺ ان الله قديؤيد الدين بالرجل الفاجر اوكماقال ﷺ

ماكاميابه په تفسيرکي د قرآن کي ✣ وروسته هرڅه چي سوه پيښبه زما رضاده

[illegible] دتفسير تکميل هم غوارمه دخداى

الفاروق القوی فی دینه الباذل نفسه وماله لرسول الله ﷺ) او بیا یې علی ﷺ ترلاس ونیوی او ورته وي ویل : (مرحبا بابن عم رسول الله ﷺ وسید بنی هاشم ماخلا رسول الله ﷺ وختنه) نو علی رض ورته وویل یاعبدالله ده خدایه وبیریږه او منافقت مه کوه، ولي چي منافقان بد دمخلوق دي. ابن أبی ورته وویل: ته ودریږه یا اباحسین تاڅرنګه ماته داخبره وکړه. قسم په خدای چي زموږ ایمان لکه ستاسي ایمان دی. باره سره جلاسوه.

نو ابن أبی وه خپلو ملګرو ته وویل چي وګورئ څرنګه مي ترخان تیر کړه او تاسي هم هرخای چي مسلمانان په مخه درسي دغسي معامله ورسره کوی لکه ماچي ورسره وکړه. نو ملګرو ورته وویل چي موږ به تل په خیر سره یو چي ته ژوندی یي . نو دا آیت نازل سو.

درویش وایي: چي دا قصه روح البیان او قاضی بیضاوی رح او نورو مفسرانو هم رانقل کړیده. او هغه سوال چي په حاشیه کي د بیضاوي راغلي چي داقصه موضوعي ده په دلیل ددې چي سورت بقره په اول کال کي د هجرت نبوی ﷺ نازل سوی دی او حضرت علی ﷺ خو فاطمه ﷺ په سنه دوهم کي د هجرت په نکاح کړیده. نو څرنګه ابن أبی حضرت علی ته ختن وویل او ختن خو دلور میړه بولي.

عاصي وایي چي بعید نه ده چي لفظ دختن دي سهواً دبعض رُواتو څخه ویل سوی وي. او بل داچي سورت بقره که څه هم په مدني سورتو کي حسابول سوي ده. لکن ټوله سورت په یوه پلا نه دی نازل سوی. په دلیل ددي چي منافقان وروسته ترغزا د بَدر پیداسوله په اتفاق د مفسرانورح او دبدر غزا د سنه دوه۲ په اول کي پیښه سویده، نوپه دغه وخت کي یعني په اول د سنه ۲ دهجرة دي امکان لري چي علی ﷺ دي

دعلیه السلام زوم ګرځیدلی وي. او دمنافقانو وجود دي هم په سنه ۲ کي وجودته راغلی وي والله اعلم.

او حافظ ابن حجر دا قصه د راویانو درواغ بللي ده. بعضي محدثین سند ددغي قصي سلسلةُ الذهب بولي. او ابن حجر رحمه الله وایي چي سند ددغي قصي سلسلةُ الکذبِ دی. والله اعلم بالصواب.

## وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَٰطِينِهِمْ

**او چي دوی جمع او یوځای شي (نو اِلٰی په معنی د مَعَ دی او یا چي دوی تنها سي نو الی په معنا د باء دی) دخپلو شیطانانو سره.**

---

**پـوه سـه!** چي مراد د شیطانانو څخه هغه مُجاهرین یهودان دي چي دشیطان سره په عناد او سرکښي کي مشابه دي. او دشیطانانو اضافت چي یې و دوی ته وکړی دجهته د اشتراك په کفر کي.

فی روح البیان (کل کاهنٍ مُتمردٍ فهوشیطانٌ) او ضحاك رحمه الله وایي چي مراد د شیطانانو څخه ددوی کاهنان چي په قُریظه وو کي کعب بن اشرف وو. او بنی اسلم کي ابوبرده وو او دجُهینه وو په قبیله کي عبدالدار وو. او په بنی اسدو کي عوف بن عامروو او په شام کي عبدالله بن اسود وو. او ددوی او د عربو دا عقیده وه چي دغه کاهنان په غیبو او په اسرارو خبر دي. او دا یې هم عقیده وه چي دهر کاهن سره شیطان ورسره دی او هغه یې په غیبو او اسرارو خبروي. کذافی التیسیر.

**خبرتیا !** په کویټه او اطرافو بلکه په ټوله پاکستان کي دغسي غیب ګویان سته. نر لاځه کوي په ښځو کي هم ورته ښځي سته چي په اصطلاح پټي خبري معلوموي. په نرو کي په نامه د ملافلانی، خلیفه فلانی ورته

وايي او په ښځه کي بي بي فلانۍ ورته وايي. او د ښځو خو ټولو دا عقيده ده چي داغه ملايان او خليفه ګان او ښځي په غيبو خبر دي. او بعضي نران چه د ښځو په شان دي هغه هم دا عقيده لري او دوی وايي چي ورسه په فلاني ملا او فلانۍ بي بي کتنه وکړه.

**حکم الهي**: (قُل لايعلم الغيب الا الله) دغه مدعيان د غيبو د علم او هغه معتقدان ددوی ټوله کافران دي.

د مُلا يا خليفه دمايني سره يي نکاح قطع ده او د ښځي د ميړه سره نکاح قطعه ده. او وروسته تر قطع د نکاح ټوله په زنا اخته دي. او عيالونه اولاد الزنا دي.

**سوال** : دي ملايانو ياخليفه ګانو يابي بي فلانۍ ولي ځانونه دخدای ﷻ و غضب ته او د عليه السلام و مخالفت ته سپارلي دي؟

**جواب** : که دعربو کاهنان وه او که ديهودو کاهنان وه او که د اوسني زماني کاهنان دي. دخلګو ځخه پردغه غيب ګويي دراهم او روپۍ غواړي. حاصل داچه حُب الدنيا په دغه کار دوی اخته کړي. (فصدق رسول الله ﷺ حب الدنيا رأس كل خطيئة) د تعجب کار دی چي زموږ کاهنان پنځه وخته لمونځ کوي. علاوه ترهغه په دغو روپو حج ته هم ځي.

قيل : چو كفر از كعبه برخيزد كجا ماند مسلماني؟ په افغانستان کي دمځه تر انقلاب او اوس هم دا کسب هيڅ وجود نه درلودی. زموږ افغاني کاهنانو دا کسب په پاکستان کي زده کړی.

آنچه مردم ميكنند بوزينه هم . لكن څوك به ددغه كهانت ځخه تائب سي؟! خدا ﷻ خبر دی.

**تتمه** : بعضي غیبي شیان په وحی د رب ﷻ دخواځخه معلومیدای سي لکه انبیاء علیهم السلام. او د بعضي غیبي شیانو علم د سترګو په لیدو سره هم حاصلیږي لکه چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم ته په شپه د معراج کي جنت او دوږخ ، سدرة المنتهی وغیره خدای پاك دده په سترګو ور ولیدل. او دغه رنګه بعضي بنه شیان په کشف صحیح سره اولیاء رح او صلحاوو ته معلومیږي لکه چي په صحیح کتابو کي دحدیث مبارکه وو راځي چي امیرالمومنین عمررضی الله تعالی عنه یووخت په مشري د ساریه ﷺ یولښکر نهاوند ته استولی وو چي دمديني څخه ډیر لیري واقع وو. نو یوه جمعه امیرالمومنین ﷺ دخطبي په دوران کي نعره وکړه (یاساریة الجبل الجبل) په دغه ورځ جنګ په نهاوند کي شروع وو او کفارو د غره دخوا څخه په پټه حمله کوله. نو امیرالمومنین ﷺ خپل امیر د لښکر ته نعره وکړه او امیر د لښکر هم دده نعره واوریدله او لښکر ته یي حکم ورکړی چي غره ته وخیژئ.

او بعضي وخت پټ شی په الهام صحیح سره و اولیاءالله کرام رح ته معلوم سي. او بعضي وخت په قرائنو عقلیه سره یو پټ شی معلوم سي لکه دحاجیانو د راتلو په وخت کي په یو کور خلګ وزي و ننوزي او دهغي خواځخه یي مختلف اقسام تسبیح په لاسو کي وي، نو سړی پوهیږي چي دي کورته یو حاجي راغلی دی. فتدبر هداك الله.

جواب ته دسوال اشاره ده. سوال دادی که د اوسني زماني غیب ویونکي هم ورته بهاني دخپلي غیب ګویي دپاره وکړي نو دوی ولي مُتهم بالکفر دي؟

**والجواب** : دوی خو دوحی دعوه نسي کولای ولي نبيان خو به ځان نه بولي. او دمعراج دعوه نسي کولای کمالایخفی. او دحضرت عمر او ساریه رضی الله تعالی عنهما دسترګو او غوږو دعوه هم نسي کولای او دغه رنګه الهام، که څه هم حق دی، لکن د اوسنی غیب ګویانو د شان څخه ډیر لیري دی بلکه تقریباً بي امکانه دی. ولي چي دوی د ورځي ۲۰ کسه نر یا ښځي او دی وهریوه ته جلاجلا غیب وایي. چاته وایي په تاسحر سوی دی او بعض په تا یوې تورې ښځي مثلاً تعویذ آه او بعضي پیغلو ښځو ته وایي ستابخت د نکاح یي در بند کړی دی وغیره (من خرافاتهم و امثال هذه الالهامات الکثیرة لایتصور لمثل هؤلاء الطالبین للدراهم والنقود و بل الالهام انما یکون لاولیاءالله والصالحین من اُمة محمدصلی الله علیه وسلم. والقرائن العقلیة علی دُعاویهم الکثیرة ایضاً غیرمتصوّرة کمالایخفی) نو په لاسو ددغو غیب ویونکو او پټي معلوموونکو نه سوه پاته بي له دعوي د علم الغیب (وهو کفر بواحٌ قال الله تعالی تعلیماً لرسوله صلی الله علیه وسلم : لوکنت اعلم الغیب لاستکثرت من الخیر ومامسّنی السوء )

**حکایت** : یو منجم وو چي هغه به د ستورو د حساب څخه وخلکو ته غیب بیانوه. آخر یو ورځ یي پر ماینه باندي سری ونیوی یعني چي د منجم د مایني سره یي زنا کوله او منجم رسواسو. یو دوست دخدای ﷺ ددغه ماجری څخه خبر سو نو یي وژړل چي دغه منجم د آسماني ستورو په حالاتو ځان خبر باله او په خپله ماینه چي شپه او ورځ دده په کور کي وه په فحاشي د هغي نه وو خبر . انتهی

قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ

نو دوی ورته وايي وخپلو شيطانانو ته موږ په دين کي قلباًستاسي ملګري يو

اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۴﴾

**پوه سه !** چه داجمله مستانفه ده. جواب دسوال ده چي ګويا شيطانانو ودوی ته وويل چي تاسي که زموږ سره په دين او اعتقاد کي موافق وای نو ولي د مسلمانانو په حضور کي کلمه شهادت واياست او مسلمانانو ته خپل موافقت في الدين ښکاره کوی. نو منافقانو خپلو شيطانانو ته داسي وويل چي موږ په اظهار کي د كلمة التوحيد او اقرار په رسالت د محمد ﷺ په مسلمانانو پُسخندوهو. يعني د مسلمانانو په خيال کي دا ورکوو چي موږ ستاسي سره په دين کي موافق يو ترڅو چي د مسلمانانو څخه دنيايي ګټي ترلاسه کړو لکه په غنيمتو کي ددوی اشتراك او نكاح دښځو ددوی او حفظ د ځانو او اولادو او ښځو او مالو ددوی څخه. او دغه رنګه د مسلمانانو په پټو رازو ځان خبرکو او ترتاسي پوري يي راورسوو. ( والإستهزاء = الإستخفاف والسخرية) ته وايي.

**سوال** : منافقانو دمسلمانانو سره په مخاطب کي داسي وويل : (آمنّا) او په مخاطب کي دخپلو شيطانانو يي داسي وويل : (انامعکم) يعني په اول مخاطب کي يي جمله فعليه راوړه او په دوهمه مخاطبه کي يي جمله اسميه راوړه. ددي سر څه دی؟

**جواب** : جمله فعليه په نيز د نحاتو پر حُدوث او تجدد دلالت کوي. او

دوی خو هم دعوی د نوي ایمان کوله مسلمانانو ته .
او جمله اسمیه پر دوام دلالت کوي او دوی وخپلو شیطانانو ته دا ښوله چي موږ پر خپل پخواني دین ثابت او قائم او دائم یو یعني په موږ کي هیڅ تغییر او تبدل دخپله حاله څخه نه دی راغلی.

**سوال** : مسلمانان خو پردوی بدګمانه وه نو دوی باید چي په مخاطبه کي د مسلمانانو یا په قسم سره او یا په جمله اسمیه او د (انما) په راوړو سره د مسلمانانو بدظنی دفع کړي وای، نو دوی ولي په مخاطبه کي دشیطانانو. کلمه د (انما) چي دلالت پر حصر کوي او جمله اسمیه چي هم د موکداتو څخه شمیرل کیږي او کلمه د (إن) تحقیقیه یي استعمال کړه.

**جواب** : چونکه مخاطبه دمسلمانانو په خپل ایمان سره ددوی د زړه د کومي نه وه نو ددوی زړو یي تاکید نهِ غوښتی او مخاطبه د شیطانانو چونکه ددوی د زړو د بیخ څخه ده نو ځکه یي تاکید وکړی. او بل دا چي دوی بیریدله چي که موږ مسلمانانو ته قسمونه او تاکیدونه وکړه نو به راباندي بدګمانه سي. کماهو المتعارف فی اهل السرقة وغیرها کذا فی البیضاوی والمظهری والکبیر لأن السارق والزانی مثلاً یمتنع عن الیمین الکاذبة قبل الوقت لاجل تهمة الناس علیهم بایمانهم الکاذبة .

# اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ

خدای جل سلطانه استهزاء کوي په دوی سره.

**فائدة**: چونکه استهزاء چي په پښتو يي معنا پُسخند دی د جل سلطانه سره مناسب نه ده، ولي چي استهزاء د افعالو څخه د جُهال الناس ده، نو ددي آيت مبارك وه تاويل ته ضرورت سته، نو مفسرين حضرات يي قسم قسم تاويل کوي.

**اول**: معنا داده چي خدای ﷻ ودوی ته جزاء د استهزاء ددوی په دنيا او آخرت کي ورکوي. په دنيا کي په رسوايي او ذلت سره او په آخرت کي په عذاب النار سره، نو چونکه دغه جزاء الهي په جواب کي ددوی د استهزاء راغلي وه، نو يي تعبير په استهزاء خندي وکړی. (کمافي قوله تعالی: وجزاء سيئةٍ سيئةٌ بمثلها) او سره ددي چي جزاء خو سيئه نه ده.

**دوهم**: معنا د آيت داده چي وبال د استهزاء ددوی ودوی ته راجع دہ. مسلمانانو ته هيڅ ضرر نه لري (لأنه تعالی حافظهم ومُنيهم) د.

**دريم**: چونکه د استهزاء سره ذلت د مستهزء به لازم او غرض د استهزاء څخه هم ذلت دی، نو معنا د آيت مبارك داده چي خدای عز اسمه پر دوی باندي حقارت او ذلت نازلوي.

**پوه سه!** چي دا دري جوابونه په مثال کي سره نژدي دي. او بعضي حضرات وايي چي په دي آيت کي استعاره تمثيليه ده، چي معنا يي تشبيه د يوه حالت په بل حالت سره ده لکه په دي قول کي د سړي چي يو بل متحير سړي ته وايي: (رئيتك تُقدِم رِجلاً و تؤخر اُخری) وتحقيقها في

فی البیان دی.

نو دلته هم معامله د خدای پاك ددوی سره په دنیا کي باوجودیکه دوی دا خبث د کفره و دی، سره دهغه یي احکام د مسلمانانو پر جاري کړي دي او دَم ددوی او اموال ددوی محفوظات کړي دي او مهلت یي ورکړی دی او نعمتونه یي هم ورکړي دي. داسي معامله ده لکه یوځوك چي په بل چا پسخند وهي. کمالایخفی.

# وَيَمُدُّهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١٥﴾

**او خدای ﷻ پریږدي او مُهلت ورکوي ودغو منافقینو ته په سرکښي کي او تر حد تیریدو په کفر او عصیان کي.**

---

**پوه سه!** چي مد او آمداد په یوه معنا دي لکن مد ډیر استعمال په شر کي دی لکه په دغه آیت کي او د آمداد اکثر استعمال په خیر کي دی. نحو: (وامددناکم باموالٍ وبنین) او عمه په عقل کي داسي ده لکه عمی په سترګو کي ، هذا مافی المظهری.

او روح البیان وایي چي دوی ته خدای ﷻ زیادت او قوت ورکوي. کما فی مدالجیش = ازاده وقواه. و بالجمله مراد زیاتوب د عمر دی، ولي چي هغه متعدي په (الی) سره دی. بیضاوی.

**فائـدة** : دا تحیر ددوی دپاره یو عذاب دی، ولي چي دواړي غاړي د اسلام او کفر یي په ذمه کي اخیستي دي، نو حیران دي چي څرنګه چار چلند وکو.

**فائدة** : د إعراب د لاري (یعمهون) حال دی د ضمیر منصوب څخه د

(يمدهم) او هغه چي بعضي مفسرين رح وايي چي د ضمير مجرور ځخه د (طغيانهم) هم حال کيداى سي تکلف دى بحيث لايحتـاج اليه، ولي چي نحـات وايـي چـي حـال بـه يـا د فاعـل ځخـه او يـا د مفعـول ځخـه وي. د (طغيانهم) ضـمير خـو مجرورږى بيـا توجيـه تـه او جـواب تـه ضرورت لري يعني چي (طغيان) مصدر دى، نو ضمير يي حكماً مرفوع دى.

**پوه سـه!** چي خداى ﷻ مسـلمانان نـه كړه اړ وه جـواب او مكافـات تـه د اسـتهزاء د منافقـانو، بلكـه خداى جـل سـلطانه پـه خپلـه مكافـات ځنـدي واخيستى په (الله يستهزء بهم) سره وفى ذالك شرف عظيم للمؤمنين فى تعالى وتقدس.

**فائدة**: استهزاء او پسخند په خلكو پوري وهل گناه ده قال الله تعالى: (لايسخرقوم بقوم) نو پسـخند پـه خداى ﷻ سره بـه ځونـه بدكار وي. قال عليه الصلوة والسلام: (المستغفرُ من الذنب وهو مصرٌ عليه كاالمستهزء بربه) يعني هغه ځوك چي ديوي گناه ځخه دخداى ﷻ ځخه بخښنه غواړي او پر هغه گناه دى ټينګ ولاړ وي، داسي دى لكه سړى چي په خداى ﷻ استهزا كوي.

درويش وايي: كه په دغه حديث مبارك كي كاف د تشبيه نه واى، نو به دغه عاصي كافر واى لكن سره ددي تشبيه يي گناه كبيره ده.

قال جل سلطانه:

# اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰی ص

دغه منافقین چي ددوی بد افعال او اقوال او د کفر عقائد ذکر سوله دوی هغه کسان دي چي رایي نیول ګمراهي او کفر په هدایت سره او په ایمان سره (یعني ایمان او هُدی یي پر کفر او ضلال دلاسه ورکړه او ایمان یي ثمن د کفر وګرځوله)

---

**پوه سه!** چي اشترا په اصل لغت کي داده چي سړی ثمن یعني نقود ورکړي او مطلوبه مبیعه لاس ته ورولي، اما چونکه دلته نه هُدی مال دی او نه ضلالة مال دی، نو په آیت مبارك کي مراد تشبیه د معاملي د منافقینو ده چي دمخه ذکر سوله، یعني په دغه آیت کي د معاملي سره دغه چا چي شراء د مال په مال سره کي، یعني لکه مُشتری چي د ثمن یعني د نقود څخه تیریږي او مطلب یي بیعه وي دغه رنګه دغو منافقینو هُدی او ایمان دلاسه ورکړی او په مقابل کي د هغه یي کفر او ضلالت و خان ته حاصل کړی.

**پوښتنه**: مشتری خو روپی په لاس کي لري نو مبیعه په رانیسي او دغو منافقینو خو هدایت او ایمان نه درلودی، بلکه پر خپل کماکان کفر باندي وه، نو څرنګه ودوی ته مشتریان د کفر ویل کیږي؟

**جواب**: دغو منافقینو که په معجزاتو کي د علیه السلام فکر کړی وای او خطابات قرآنیه یي سنجولي وای بلکه په خپل تورات که یي عمل کړی وای، نو دوی به ایمان او اسلام قبول کړی وای یعني دوی ته کامل اسباب د هدایت او ایمان حاصل وه، نو دغه حصولي د اسبابو د هدایت یي په

خای کي دهدایت وګرخاوه، ګویا دوی ته هدایت حاصل وو، مګر دوی هغه ثمن د ضلالت او کفر وګرځاوه. یعني پر خپل ضلالت او کفر باندي قائم او ثابت پاته سوه. دا ټوله معامله ودوی ته د حب الدنیا، حب الریاسة، حب الجاه والجلال څخه پیښه سوه.

فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿١٦﴾

نو ګټه ونه کړه دغه تجارت ددوی (یعني چي په عِرَض د هُدیٰ یې ضلالت مختاره کړی او په عوض کي د ایمان یې کُفر غوره کړی) او نه وه دوی لارموندونکي (دتجارت وچارو ته)

ولي چي د تجارت څخه اصل مقصد دادی چي اصل راس المال محفوظ پاته سي او په بیع و شراء سره څه ناڅه ګټه هم حاصل کړي. او دي منافقینو په شراء کي د ضلالت په هدایت سره ګټه خو چیري بلکه خپل ایمان په تورات او خپل استعداد فطری چي لکه راس المال وو هم دلاسه ورکړی.

**فائدة** : اصل ګټه کوونکي خو تاجران دي، لکن چونکه تجارت سبب د ګټې د تاجرانو وو، نو ددي سببه یې مجازاً إسناد د ګټې وه تجارت ته وکړی. بیضاوی ، مظهری ، روح البیان ، تفسیرکبیر وغیرها.

**پوه سه!** چي کلمه د (فاء) په آیت کي جزاء د شرط محذوف ده ای اذا اشتروا فماربحت آه.

# مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِي اسْتَوْقَدَ نَارًا

او حال عجيب د منافقانو لکه حال عجيب د هغه چا دی چي اور بل کړي (يعني په شپه کي کمايدل عليه مابعده او دا اور هم دپاره ددي وي چي شاوخوا مځکه به راته روښانه سي او د درندګانو څخه به امن کي سو او د لاري درک به هم راته معلوم سي)

**پـوه سـه!** چي (مَثَل، مِثْل او مثيل) په معنا د نظير دي. او بيا دا لفظ استعاره سو د يوي داسي خبري دپاره چي هغه خبره څوك په يوځای کي مستعملوي، هغه ځای به مشابه وي د هغي خبري د اصلي يعني اول ځای سره دهغي چي په پښتو يي خلګ متل بولي. لکن مثل په يوي نادري خبري او حالت کي ويل کيږي . او مثل د خپل اصلي حال چي مورد يي بولي په مضرب کي نه بدلوي نه په تذکير او تانيث کي او نه په افراد او جمعيت کي الى غيرذالك . لکه په کتابو کي د ادبو چي راغلي دي چي يو سپين ږږی سړی چي ډير مالداره وو او لنګي غواوي يي درلودي، يوه پيغله خوانه ښځه يي په نکاح کړه. چونکه طبعاً د ښځي خصوصاً چي خوانه هم وي د سپينو وبښتانو څخه يي بدراځي. همدا سبب دی چي خلګ چي سپين ږيري سي، ږيري توروي. او هغي خواني ښځي د سپين ږيري ميړه سره ډير بد وضعيت او نشوز يعني نافرماني کوله، نو اخيرالامريي سپين ږيری و طلاق ته مجبور کړی. او طلاقه يي کړه. او دغه وخت هم د دوبي وو. د ښځي چي عده يي تيره سوه يو ښه خوان لکن مسکين سړي سره نکاح وکړه. خير د جماع حاجت خو يي حاصل سو، لکن يوه ورځ په ژمي کي د زاړه ميړه د کور شيرچای او شيدي و غوړي ور په ياد سوه، نو ښځي بله ښځه د زاړه ميړه کور ته

ورواستوله چې ته خو یو څه شیدي ماته راواستوه چې ډیره مې اوا ورته کیږي . سپین ږږي د راستولې ښځې په لاس دغه پیغام ورکړی چې ودې ته ووایه چې (لقد ضيَّعتِ اللبن بالصيف) یعني تا په خپله شیدې دلاسه وایستې په دوبي کې. یعني چې زماڅخه دې طلاق وغوښتی. نو دا خبره په عربو کې متل سوه، ولې چې دا یوه غریبه او نادره واقعه وه. او دغه ښځې ته مورد ددې خبرې وایي.

نو دا متل په داسې ځای کې مستعملیږي چې مثلاً دوه کسه سره آشنایان وي. او دې یوه اشنای وه هغه بل ته په وار واره ډیرې روپۍ مثلاً ورکړې وي. بیا دا دوهم آشنای د اول څخه خوابدی سي او خبرې او ملاقات نه ورسره کوي، لکن یو وخت ډیر مجبور سي، نو هغه زاړه انډیوال او اشنای ته یو سړی ورواستوي چې ته یو څو روپۍ را واستوه چې زه ډیر مجبوره یم، نو هغه زوړ اشنای وه قاصد ته ووایي چې ده ته داسې ووایه: (لقدضيعتِ اللبن بالصيف) نو که څه هم دې سړي خو روپۍ غوښتې دي، نه شیدې او سړی خو نر دی لکن متل ته به تغیر نه ورکوي. په کسره د تاء به یې وایي چې د مونث خطاب دی که څه مخاطب دلته نر دی. او لبن به وایي که څه هم سړي دلته روپۍ غوښتې دي . دا ټوله عدم تغیر ددې کبله دی چې په تیره سوې قصه غریبه باندې دلالت وکړي او دا یې (مضرب) بولي. و امثلة هذا المثل كثيرة في كتب العلماء وعدم التغيير فيها مجمعٌ عليه، بلکه په پوره ژبه کې متلونه سره وایي.

**فائدة** : وروسته بیا لفظ د مثل پر هغه حال او قصې او صفت ته مستعار سو چې په هغه کې غرابت وي. کمافي قوله تعالى: (ولله الْمَثَلُ الاعلى) اى الوصف الذى له شانٌ وقال جل جلاله (مثل الجنة التى وُعدالمتقون) اى

حالها وقصتها)

فائدة المثل : داده چې وهم دعقل سره موافقت وکړي په هغه شي چې عقلي وي. نو وهم مساعده د عقل سره او موافقت نه کاوه. لميله الى المحسوسات، نو چې مثال دمعقول په محسوس سره ووبل سي، نو وهم ته قناعت حاصل سي او هغه معقول ومني او ددې سر دکبله په آسماني کتابو کې امثال ډير دي. حتی چې په انجيل شريف کې پوره سورت سته چې سورة الامثال يې بولي او په قرآن کې زر آيته د امثال سته. او په احاديثو نبويه و کې بيخي ډير مثالونه سته. او دغه رنګه په خبرو کې د نورو انبياوو عليهم السلام او په خبرو کې د علماوو او حکماوو هم په لکو مثالونه سته. روح البيان، مظهرى و بيضاوى، روح المعانى، تفسير کبير او درويش.

**فائدة مهمة** : قاضي ناصرالدين البيضاوى ﷫ وايي چې لفظ د الذى په معنا د الذين دى لکه په هغه آيت کې **(وخُضْتُم كالذى خاضوا)**

**پوه سه!** چې که مرجع دضمير د (بنورهم) دغه الذى وګرځوى، نو دغه خبرې ته د بيضاوى ضرورت سته او که مرجع الضمير منافقين وي، بيا ضرورت نسته. په هر صورت داخبره تحقيق غواړي چې الذين جمع د الذي ده اوکه نه قاضي بيضاوى وايي چې جمع نه ده بلکه الذين ذوالزيادة دى دپاره د زيادت فى المعنى په جمع کې مستعمليږي، ولې که جمع واى نو بايد په حال د رفع اللذون ويل کيداى وليس كذلك على اللغة الفصيحة التى جائت عليها القرآن الكريم. حاصل داچې الذى په مفرد او تثنيه او جمع ټولو کې جائز الاستعمال دى لکه مَن و ماَ فافهم.

**سوال** : په القائم کي لام موصوله دی او القائم په ځای کي د القائمین نسي راتلای، نو الذي خو هم موصول دی، نو په ځای کي د الذین یې څرنګه استعمال صحیح دی؟

**جواب** : القائم خو مستقل وصف دی او په اوصافو کي مفرد په ځای کي د جمعي نسي راتلای بخلاف الذی، ولي چي دا لفظ په خپله صفت نه دی بلکه اصلي صفت هغه جمله ده چي وروسته تر الذی راځي لکن چونکه جمله بنفسها صفت نه سوای واقع کیدای یعني د مفرد کماتقرر فی النحو نو الذی یې ورته واسطه کړی، او اصلي مقصود بالتوصیف صله ده او واسطه چي هرڅو کوتاه وي ښه ده. نو ددي کبله الذین نحاة جمع نه بولي کمامرّ.

# فَلَمَّآ اَضَآءَتۡ مَا حَوۡلَهٗ

**پوه سه!** چي (اضاء) متعدي هم راغلی دی، نو ترجمه د آیت داسي ده چي ( څه وخت چي روښانه کړي ماحول د اور بلوونکي یعني شاوخوا ځایونه)

نو د (اضائت) ضمیر و اور ته راجع دی. هغه فاعل دی تانیث یې په سبب ددي چي (نار) مونث سماعي دی او (ماحوله) یې مفعول دی او د (حوله) ضمیر و (مستوقد) ته راجع یا (والذی) ته دی. او مفردوالی یې په اعتبار د لفظ د (الذی) دی او وروسته چي ضمائر د جمعي ورته راجع دي په اعتبار د معنا د (الذی) چي جمع ده.

او دغه رنګه (اضاء) لازمي هم راغلی دی نو معنا د آیت داسي ده:
رڅه وخت چي روښانه سو اور) نو پر دي تقدیر (ماحوله) منصوب محلاً
دی ظرف دی. او یا څه وخت چي روښانه سوه ماحول د (مستوقد) نو پر دي
تقدیر (اضائت) مسند دی وه (ماحوله) ته او تانیث یي په اعتبار ددي دی
چي ماحول د مستوقد خو ډیر شیان او اماکن دي.

او**پوه سه!** چي په (ضوء) او په (نور) کي اختلاف دی. روح البیان وایي
چي (ضوء) قوي ده تر (نور) په دلیل ددي قول دخدای ﷻ (هوالذي جعل
الشمس ضیاء والقمرنوراً) او بل په دي سبب چي د لمر رڼا ذاتي ده او د
قمر رڼا د لمر څخه ده. **لقولهم نورالقمر مستفاد من نورالشمس.**

او هغه چي بعض علماء وایي چي نور قوي دی تر ضوء په دلیل ددي
قول دخدای ﷻ (الله نورالسموات والارض) والتفصیل فی حاشیة شرح
الچغینی صفحه ۱.

حاصل دهغه جواب دادی چي په آیت مذکوره کي نور پر خپله معنا نه
دی بلکه د آیت معنا داده ، (الله منور السموات والارض) یعني په لمر
سپوږمۍ او ستورو سره

# ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ

خدای پاک ددوی ښخه بوزي نور ددوی یعني اور بي یک لخنه مرسي

**پوښتنه** : خدای پاك داسي نه وويل چي (ذهب الله بنارهم).

**جواب** : مقصود د مستوقدینو خو اور بلولو ښخه نور وو، هغه مقصود خدای پاك ذکر کړی چي هغه د مابین ښخه ولاړی.

**پوښتنه** : نسبت د ذهاب يي و خدای پاك ته ولي وکړی؟

**جواب** : په دي سبب چي خالق د ټولو شیانو خدای دی جل سلطانه. او یا دا چي سبب د ذهاب یو امر سماوي وو لکه باد یا باران او د امور سماویه وو نسبت عادتاً و خدای ﷻ ته کیږي. او یا په دي سبب چي کم شی چي قادر مقتدر خدای ﷻ یو سی د بیرته راګرځیدو احتمال يي هم نسته بخلاف ماذهب به غیره تعالی فانه یحتمل عوده بقدرة الله ﷻ کما لایخفی علی العاقل.

وَتَرَكَهُمْ فِي ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ

او پرېښودل خدای ﷻ دوی په تاریکیو کې چې څه په سترګو نه ویني

**پوه سه!** چې تاریکی یې په جمع سره راوړه او نکیره یې هم وګرځولې او سره ددې چې د تاریکی ذات خو یو دی، دپاره د مبالغه په شدت کې ددغې یوې تاریکی یعنې د سببه د سختې ددغې ګویا ډېرې تاریکی سره جمع سوې دي چې معرفت یې نه کېږي او د اعراب د لارې که (ترك) پر خپله معنا پرېږدی چې متعدي وه یوه مفعول ته دې نو هغه مفعول یې ضمیر د (هم) دی. او که (ترك) په معنا د (صیّر) کې نو لکه افعال قلوب دوه مفعوله غواړي. اول یې ضمیر د (هم) دی. او دوهم (فی ظلمات) دی. او د (لایبصرون) مفعول محذوف دی ای (شیئا) او یا نازل منزلة لازم یې ګرځولی دی ای لایقع منهم الابصار اصلاً او پر هر تقدیر جمله د (لایبصرون) حال دی. او یا استیناف بیاني دی. یعنې په داسې تاریکیو کې نو ددوی څه حال وو. او روح البیان وایې چې (لایبصرون) مفعول ثانی بعد المفعول الثانی د ضمیر دی لکه ډېر خبرونه د یوه مسندالیه

تصویر معنی الجمع فی المنافقین داده چې یو ظلمت د کفر دی او بل ظلمت د نفاق دی او بل ظلمت د غضب الهي دی او بل ظلمت د ورځې د قیامت دی او بل ظلمت د عذاب ابدي دی. په تفسیر عیون کې وایې چې منافقینو په ویلو سره د کلمه نوراني د (لا اله الا الله محمدرسول الله) خان ته یې فائده د حفظ او سلامتیا په خان، عیال او په اموالو کې پیدا کړه. او دوی ته عزت اسلامي لکه د نورو مسلمانانو ور په برخه سو. او په

قسمت کي د غنائمو يي شراکت پيدا کړی. الی غیر ذالك من مزایا الاسلام وفوائده. لکن چي آخر ته د عمر ورسيدله. د نور ايماني څخه بې برخي سوله او پر ظلمت د کفر او نفاق د دنيا څخه ولاړه او په ظلمت کي د سخت الهي او عذاب سرمدي داخل وهذا هوالخسران المبین نجنالله تعالی بفضله ومنه و احسانه منه

**فائدة**: دامثال د هغو کسانو هم دي چي ده ته په سبب د مریدي د یو شيخ کامل څه نور د ارادت حاصل سي، لکن د تکبر او غرور په سبب هغه نور بیرته څنډي قطع فیبقی متحسراً فی هاویة الظلمة

صُمٌّ

خبر د مبتداء محذوفي دی

---

**سوال** : منافقین خو کاڼه نه وه بلکه خبري يي اوريدلي ؟

**جواب** : هغه اوريده د قرآن او د مواعظو د علیه السلام چي قبول قلبي نه وي ورسره هغه لکه نه اوريده ګڼل کيږي

بُكْمٌ

او دوی د ويلو څخه د کلمة الاسلام ګونګيان دي

---

**سوال** : منافقینو خو کلمه مبارکه په خوله او ژبه ویله؟

**جواب** : هغه دخولي وينا چي مواطات القلب نه وي ورسره لکه نه وينا شميرل کيږي

# عُمْيٌ

او دوی ړانده دي (چې دوی په سترګو د آنحضرت صلی الله علیه وسلم و معجزاتو او کمالاتو ته په کتو د عبرت او کته اخیستو نه ګوري، نو دوی فاقدالابصار ورته ویل صحیح دي

نو خدای ﷻ دوی په ورځ دقیامت هم دوی په دغو دروے۳ صفاتو سره موصوف حشر کوي (جزءًا بماكانوا يكسبون) وليعلم اهل المحشر ان هؤلاء كانوا منافقين في الدنيا. قال الله عز وجل في موضعٍ آخر من القرآن (ونحشرهم يوم القيامة على وجوههم عُميا وبكما وصُما).

# فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ

نو دوی د ضلالت څخه نه راجع کیږي وه هدایت او ایمان قلبي ته (یعني دوی مسلوب الاختیار نه دي بلکه رجوع وه ایمان ته کولای سي، لکن په خپل سوء الاختیار اوحب الدنیا او حب الریاست په سبب رجوع نه کوي)

قال العارف الشيرازي رحمه الله

زبان آمد از بهر شکر وسپاس ✣ به غیبت نه گرداندش حق شناس

گزرگاه قرآن وپندست گوش ✣ به بهتان باطل شنیدن مکوش

دوچشم از پی صنع باری نکوست ز عیب برادر فرو گیرو دوست

# أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ

**پوه سه!** چي په دي مثال کي مضاف محذوف دی والتقدیر کاصحاب صیبٍ تاچه مرجع د ضمیر د (یجعلون اصابعهم) پیدا سي او د (صیب) اصل (صیوب) وو . زُرادي. واو و یاء بهم آمدند، نخستین ایشان ساکن بود، واو را بیا بدل نمودند و یاء را در یاء ادغام کردند. مشتق د (صوب) څخه دی. (صوب) سخت تویبدو ته د باران وایي، نو د (صیب) ماده هم دپاره د مبالغي ده او صیغه یي هم دپاره د مبالغي ده او تنکیر یي دپاره د تعظیم دی. نو معنا ډیرسخت باران.

او کله دا (او) نه دپاره د شك ده او نه دپاره د تشکیك ده. بلکه دپاره د تخییر ده کمافی خصال الکفارة.

**حاصل** : څوك چي حال د منافقینو چي مفصل ذکر سو وپیژني نو هغه اختیار لري چي ددوی حال او قصه د مستوقدینو د حال او قصه سره مشابه بولي کمامرّ. او که یي د حال اوقصي سره د اصحاب صیِّب تشبیه ورکوي کما سیاتي.

نو حاصل د معنادادی چي یا حال د منافقینو دحال سره دهغو کسانو چي تر ډیر سخت باران لاندي راغلي وي وسیاتي وجه التشبیه بین الحالین انشاء الله تعالی.

**فائـــدة** : الف و لام په اسماء کي دپاره د استغراق دی یعني چي دټولو اطرافو څخه د آسمان باران اوري. یعني وریځ مُطبق وي.

**فائدة** : مظهري وايي چي د حسن بصري رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چي باران د آسمانه اوري او که د وريځي څخه ؟ ده رحمه الله ورته وويل چي باران د آسمانه اوري، وريځ يې علامه ده.

درويش وايي چي حکما، د علم طبيعي توله دا وايي چي باران، واوره، ږلۍ، او وريځ او پيلبو او تالنده په طبقه زمهريميه د هوا پيدا کيږي چي تفصيل يې په هغو کتابو کي مطالعه کړه. او ظاهر د قرآن او احاديثو مبارکه پر دي دلالت کوي چي باران وماذکرنا معه آنفاتوله له آسمان څخه نازليږي . پر وريځ او د وريځي څخه په مثال د غلبيل نوبږي، لکن بعضي جزوي بارانونه تر آسمان لاندي د وريځي څخه اوري، ولي چي په تجربه ثابته ده چي بعضي اوقات پر لوړ غره سړی ناست وي هلته لمر وي او لاندي باران اوريږي. او يا په طياره کي خلک سپاره وي، تر طياري لاندي وريځ وي او باران اوري، مګر طياره خوش خوش په ختلي لمر کي روانه وي. والله اعلم باالصواب.

# فِيهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعۡدٌ وَّبَرۡقٌ ۚ

## او په باران کي تاريکي وي او تالندي و پيلبو وي

**پوه سه!** چي روح البيان ضمير د (فيه) و (صيب) ته راجع کړي دي يعني باران ته، نو سوال دا پيدا کيږي چي رعد او برق خو په وريځ کي وي، په باران کي خو نه وي، نو جواب دادی چي چونکه رعد او برق په مُخذر کي د باران دي، نو ګويا چي په باران کي دي

او مظهري ضمير د (فيه) هم وه (صيب) ته او هم و (سماء) ته روا کړی دی، نو د (صيب) سوال خو هغه وو چي تير سو او د سماء د ارجاع ده سببه دا سوال وارديږي چي سماء خو مونث دی، نو مذکر ضمير څرنګه ورته راجع کيږي؟ نو ددي سوال ددفعي دپاره مظهري وايي:

چي لفظ د سماء مذکر او مونث دواړه په قرآن کي راغلی دی. (إذا السماء انفطرت) او بل ځای وايي (والسماء منفطر به)

**پوه سه!** چي ظلمات چي په صيغه د جمعي راغلی دی قاضي بيضاوي، تفسير مظهري او روح البيان داسي وايي چي باران چي پيوسته و اوري هوا تاريکوي او بل توره مُطبق وريځ چي لوړه وي دا هم تاريکه جوړوي او بل ظلمت د شي دی.

**پوښتنه** : چي په دي آيت کي شپه د کمه ځايه څخه فهميږي؟

**جواب** : د سياق څخه د آيت معلوميږي يعني ددي قوله څخه د خدای ﷻ (کلما أضاء لهم مشوا فيه و اذا أظلم عليهم قاموا) ولي چي په رڼا کي د پيلبو تګ کول، او چي پيلبو ورکه سي ددوی دريدل. دا خو په شپه کي

صورت پیدا کولای سي ، یعني چي د پیلبو رڼا سي، نو دوی لاړ ووېني، نو ځغلي او چي پیلبو ورکه سي دوی ودرېږي، ولي خو لاړ نه وېني، دا خو په شپه کي کیدای سي، او د ورځي که هرڅو تاریکه وي خلګ لاړ وېني او و رڼا ته د پیلبو انتظار نه کوي کمايدل عليه العقل والتجربة.

او د برق او رعد تفسير خو قاضي بيضاوي رحمه الله د حکماوو پر ډول کړی دی وايي: سببه اى الرعد اصطكاك اجرام السحاب اذا حدتها الريح . او برق هم د شدت څخه ددغه اصطکاك پیدا کیږي. او دی وايي چي چونکه رعد او برق دواړه په اصل کي مصدر دی والمصادر لاتجمع نو ددي سببه يې رعد او برق جمع نه کړي لکه ظلمات. لکن صحيح هغه خبره ده چي په حديث کي د ابن عباس رضي الله عنه چي ترمذي يې روايت کړی دی راغلي دي چي يهوديان وه عليه السلام ته راغله او ورته يې وويل: (اخبرنا عن الرعد قال عليه السلام مَلَكٌ من الملائكة اى صوت ملكٍ موكَّل بالسحاب معه مخاريقُ من نارٍ) یعني غمچنی د اور ورسره وي يسوقه بها الى حيث شاء الله فقالوا ماهذا الصوت الذى يُسمع؟ قال زجره حتى ينتهي ال ى حيث اُمر قالوا صدقتَ.

درويش چي ددي حديث څخه دا معلومه سوه چي رعد آواز د زجر د هغي ملکي دی او د برق سوال که څه هم يهودو نه وو کړی لکن د حديث څخه صفا معلومه سوه چي برق د وهلو څخه د هغي ملکي چي جرم السحاب په مخاريقوووهي بيداکيږي. دټولومفسرينورح پردغه اتفاق دی

**سوال** : بيضاوی رحمه الله خو د احاديث نبويه صلى الله عليه وسلم پابند دی؟

**جواب** : بيضاوی هغه مخکنی خبره په داسي لفظ راوړي ده: والمشهور آه په

صفحه ۳۶ حاشیه ۱۳ کي وايي چي بيضاوي رحمه الله په لفظ کي مشهور اشاره ودي ته وکړي چي دغه خبره خلاف التحقيق ده، لکن بيضاوي رحمه الله ډير خايونه تطبيق د قرآن مبارك پر قول د حکمائو کوي کذا في مرئة التفسير. والله اعلم بالصواب.

**فائدة** : درويش هيچ مدان صرف اقوال د مفسرانو رح راجمع کوي. حق د اعتراض وخپل خان ته پر اهل الاتفاق والتحقيق ددغو مفسرانورح نه ورکوي. بلکه قبول او نه قبول په علماوو پوري اړه لري.

## يَجۡعَلُونَ أَصَٰبِعَهُمۡ فِيٓ ءَاذَانِهِم

نو دوی ګرځوي يعني ننباسي ګوتي په غوږو کي خپل

---

**پوه سه!** چي دا جمله استيناف بياني دی. جواب د سوال مقدر ده. يعني کيف حالهم فی تلك الحالة الشديدة؟ فاجيب بانهم يجعلون آه. او دوه ضميره د (يجعلون) او (اصابعهم) راجع دي اصحاب الصيب ته چي په سر کي د کلام مقدر وو کما مر.

**پوښتنه** : توله ګوته خو په غوږ نه ننوزي؟

**جواب** : هو، مراد د اصابعو څخه انامل دي، دپاره د مبالغي په حرص کي ددوی د غوږو په بندولو کي اصابع ذکر کړه.

**پوښتنه** : په عادت کي خو دا سبابه ګوته په غوږ چخل کيږي او دلته اصابع مطلق ذکر سوله؟

**جواب** : چي دوی دومره حيرت او خوف زده دي چي د سبابي او نورو

ګوتو په فرق نه پوهیږي. او په روح البیان کي وایي چي چونکه سبابه د (سَب) څخه مشتق وه چي معنا یې ښکنځل دي نو ددي ذکر د قرآن کریم د زینت او آدابو سره لائق نه وو.

**پوښتنه** : د سبابي ګوتي خو بل زیبا او ښائیسته نوم هم وو یعني (مُسَبِّحَة یا مُهَلِّلَة) نو هغه به یې ذکر کړي وای؟

**جواب** : هغه نومان په وخت کي د نزول القرآن مروج نه وه بلکه مستحدث نومان دي.

## مِّنَ الصَّوَاعِقِ

**په سبب د تکو**

---

**پوه سه!** چي لفظ د من تعلیلي دی متعلق په (یجعلون) سره دی.

**فائدة** : (صواعق) جمع د (صاعقة) ده او (تاء) یې دپاره د مبالغي ده. لکه په علامت کي د تانیث نه ده ولي چي موصوف یې مذکر دی یعني الصوت او (صعق) سخت آواز ته وایي چي سامع یې یا بیهوشه کیږي او یا مري. او مرګ او بیهوشتیا ته هم وایي. قال الله تعالی: (فصعق من فی السموات) حاصلُ للتفسیر المظهری.

**پوه سه!** چي صاعقه چي په پښتو یې تکه بولي د سختي تالندي سره ګاهي ګاهي پیدا کیږي او یو ډیر تیز اور هم ورسره وي چي خدای ناکرده پر سړي ولویږي کالي یې نه ور وسوځي مګر سړی مړ کي. او که پر درخته ولویده درخته سوځي.

**فائدة** : ابن عباس رض وايي كه چا په دوران او وخت كي د (رعدتنا) دا آيت ووايه: (سبحان الذي يُسَبّح الرعد بحمده و الملائكة من خيفته وهو على كل شيئ قدير) نو كه دغه سرى به د تكي دهلاك څخه مامون وي.

او په حديث شريف كي راغلي دي كمانقله روح البيان عن تفسير الشيخ چي عليه السلام چي به آوازونه د (رعد) واوريدله نو دا دعاء به يي كوله. (اللهم لاتقتلنا بغضبك ولاتهلكنا بعذابك وعافناقبل ذالك).

حَذَرَ الْمَوْتِ وَاللَّهُ مُحِيطٌ بِالْكٰفِرِينَ ﴿١٩﴾

دوى ګوتي ددي سببه په غوږو كي نيولي وي چي د مرګه څخه بيريدله او خداى ﷻ په قدرت سره احاطه كړي پر كافرانو باندي (نو په حيلو د خداى څخه نسي خلاصيدلاى)

نو (حذرالموت) منصوب دى مفعول له د (يجعلون) دى.

---

**پوه سه!** چي احاطه حقيقتاً په اجسامو كي مستعمليږي دخداى ﷻ په باره كي مجاز دى. د احاطه څخه د علم او قدرت. (روح... مظهري)

**فائدة** : (والله محيط بالكافرين) جمله معترضه دپاره ددي چي سد الآذان ودوى ته هيڅ فائده نه كوي، ولي چي تقدير الهي په حيلو او تدبيرو سره نه دفع كيږي او دپاره د تنبيه پر كفر ددوى لفظ د كافرين پر ځاى د (بهم) كنبيينود. فافهم

**پوښتنه** : بندول د غوږو ودوى ته د صاعقي د وژلو څخه څه فائده كوله؟

**جواب** : بندول د غوږو دوى ته دا فائده كوله چي سخت آواز خوبه د تنا نه

اوري. یعني ددوی دا بیره وه چي په ډیر سخت آواز د تنا مړه نسو کماقیل الفریق یتمسك بکل حشیش.

## یَكَادُ الْبَرْقُ

نژدې ده چي پیلبو

دابله جمله مستانفه ده چي ددوی د پیلبوګانو سره څه حال وو.

## یَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ

چي پیلبو دي به حمله کي او ډیر چابک سترګي ددوی حمله کړي (یعني په سترګو دي رانده کي)

## كُلَّمَآ اَضَآءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِیْهِ ۙ وَاِذَآ اَظْلَمَ عَلَیْهِمْ قَامُوْا ؕ

هروخت چي به روښانه کړه پیلبو ودوی ته لار نو دوی په رڼا کي د پیلبو روان سوه او هر وخت چي پیلبو تاریکه جوړه کړي پر دوی (یعني پیلبو به ورکه سول) نو دوی ودریدل (ولي خو لار نه وښي توره تاریکه وي)

**پوه سه!** چي ضمیر د فیه راجع وه برق ته دی. په پیلبو کي خو تګ نه کیږي نو مراد دادی چي دوی به روان سوه په لاز کي چي پیلبو به روښانه کړه. نو مضاف محذوف دی ای فی مطرح لوزه.

**پوه سه!** چي دغه مذکوره معنا پر تقدیر ددي وه چي (اضاء) په طرف کي د (کلما) راوړي چي دلالت پر تکرار کوي. او د اظلام سره یي (اذا) راوړي، ددي سببه چي دوی خو حریص پر تګ دي چي تر خایه خانونه وزسوي او

تګ څو په رڼا کي د پیلبو کولای سي او د اظلام په وخت کي څو مجبوراً درېږي . دل ناخواسته.

**فائدة** : (کلما) ظرف زمان دی او عامل یې لفظ د (مشو) دی.

**پوښتنه** : لفظ د (مشو) استعمال سو چي عادي تګ ته وایي او ددوی د حرصه سره څو مناسب (سعوا) وو؟

**جواب** : څغاسته څو په سبب د ډیر دهشت او خوف نسي کولای چي نباید په یوه کنده کيْ ونه لویږو.

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَأَبْصَارِهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٠﴾

او که چیري اراده وای دخدای جل شانه ذهاب د اوریدو ددوی او د سترګو ددوی (نومفعول دشاء محذوف دی په دلالت د جواب د «لو» چي لذهب آه دی، یعني په سبب د رعد او برق) نو به یې سمع ددوی او ابصار ددوی نابود کړي وای (لکن مشیت الهي نه وو چي سمع او ابصار ددوی پاته سوه، ولي چي دټولو اسبابو تاثیر په حقیقت کي په مشیت لهي پوري مربوط دی) نو فی الواقع خالق او موثر په جواهرو او اعراضو او په افعالو کي دخدای جل شانه قدرت دی و بس او اسباب صرف او صرف علامات ظاهره دي. لااله ولاخالق وقادره الاهو. وهو مذهب اهل السنة والجماعة.

---

**نصیحت** : د حسن بصري رحمه الله تعالیٰ چي په شریعت او طریقت کي ناموري شخصیت وو او د خیرالقرون د زماني لوړ عالم وو. یو چا پوښتنه وکړه کیف اصبحت؟ څرنګه دي سحار کی؟ یعني شپه څرنګه درباندي تیره سوه؟ قال الحسن بخیر هغه سړي ورته وویل : کیف حالك؟ نو حسن

بصري رحمه الله کرار ورته وخندل او ورته وي ويل : لاتسأل عن حالي زما دحال پوښتنه مه کوه. ماظنك نباس؟ ستاخه ګمان دی؟
پر هغو خلګو چي د دریاب مابین ته ورسیږي. فانکسرت سفینتهم نو کښتی یي ماته سي فتعلق کل انسان منهم بخشبةٍ، نو لاس تینګک کي هر سړی په یوه لرګي پوري. علی أيُّ حالٍ هُمْ؟ قال الرجل علی حالٍ شدیدٍ هغه سړي ورته وویل چي دا خلګک خو به په سخت حال کي وي. قال الحسن حالي اشد من حالهم حسن رحمه الله ورته وویل چي زما حال دهغو خلګو تر حال سخت دی. فالموت بحری مرګک زما دریاب دی. والحیاة سفینتي او ژوند زما کښتی ده. والذنوب خشبتی او ګنهونه زما د لاس تینګولو تخته ده. فکیف یکون حال من وَصْفه هذا یابُنَیَّ!؟ نو څرنګه به وي حال دهغه چا چي دا یي بیان د وصفت دهغه وي اي زویه!؟
درویش وایي چي دخدای جل شانه نیکان او اولیاء الله رح په ګناه دغسي معترف وي او د حساب د ورځي د قیامت دغسي حیران او پریشان وي لکه د حسن البصري رحمه الله بیان چي مو واوریدی. هو دخدای جل سلطانه د دوستانو ماسوی یعني ما وارو غافل بنده ګان ګناه داسي بولي که څه هم کبیره وي لکه د سړي پر پزه چي مچ کښیني او دی لاس ورته وښوروي او مچ ولاړ سي او دخدای عزّبرهانه نیک بنده ګان صغیره ګناه داسي بولي لکه یو سړی چي په هواء کي غروي او دده پر سر برابر وي او سړی بیریږي چي اوس به دا غر زما پر سر را ایله سي. په دي باره کي خواجه عبدالله انصاري رحمه الله چه خوش گفته :

دلا در کار خود میکن نظرها ✣ که در راه تو میبینم خطرها
کشاز خواب غفلت چشم ✣ بیدار بگوش وهوش تو گویم خبرها
نگر در خلق گورستان فگنده ✣ زیک یترفنا جمله سرها
بسا شاهان مه رویند در خاك ✣ کزیشان در جهان مانده اثرها
معاصی زهر قهر است ونموده ✣ بکام نفس تو همچون شکرها
گذر گاهست این دنیای فانی ✣ نماند مرد عاقل در گذرها
چو در پیش است مرگ ای پیر انصار ✣ تماشای جهان کن در سفرها

**پوه سه!** چي د پیر انصار رحمه الله مخاطب خپل خان دی رحمه الله تعالی.

**پوه سه!** چي شئ مصدر دی. (شاء) کاهی په معنا د فاعل راځي ای الشائي نو شئ په دي معنا خدای پاك ته هم شامل دی لکه په دي آیت کي (قل ايُّ شیئ اکبر شهادةٍ قل الله). او کاهي په معنا د مفعول هم راځي ای المشئ وجوده وهو الممکن کقوله تعالی: (خالق کل شیئ) ای الممکن. نو هم په دغه آیت کي په معنی مفعول دی د (یشیئ) په دي آیت کي یعني (ان الله علی کل شیئ قدیر). او استثناء ته خدای پاك په دي دوو آیتو کي ضرورت نسته لکه معتزله چي وایي. تفسیر بیضاوي والمظهري آخذاً منه کما لایخفی.

# يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ

اي خلکو عبادت کوی د ترتیبوونکي ستاسي (چي خدای جل شانه دی)

**پوه سه!** چي دا خطاب الهي عام دی ټوله خلکو ته چي اهل د خطاب وي، که موجود وي په وخت د خطاب او که وروسته پیدا کیږي الی یوم القیامة.

**قانون** : هره جمع یا اسم جمع چي الف و لام د تعریف پر داخل وي دواړو قبیلو ته شامل دی وعلی هذا جمعت الصحابة رضوان الله علیهم اجمعین.

ابن عباس رض وایي چي (یاایهاالناس) خطاب دی و اهل مکي ته او (یاایهاالذین آمنوا) خطاب دی واهل مدیني ته، ولي چي په وخت کي د نزول د آیت اهل مکه اکثر کافران وه او مسلمانان پکښي لږ وه، نو و دوی ته خطاب عام چي مسلمانانو او کافرانو ته شامل دی په (یاایها الناس) وکړی او اهل مدینه چونکه اکثر مسلمانان وه، نو دپاره د اظهار د شرف ددوی په (یاایهاالذین آمنوا) خطاب ورته وکړی. قاله المظهری.

**پـوه سـه!** چي دا آیت تر پای پوري دپاره د اثبات د توحید الهي او د اثبات د نبوت د علیه السلام راغلی دی. او الناس مسلمانانو، کافرانو او منافقانو ټولو ته شامل دی.

حضرات مفسرین رح جمیعاً وایي چي خدای جل سلطانه نو خلک په (یاء) د نداء حاضر کړه او په شرف د خطاب یي خپل مشرف کړه. او امر د عبادت یي ورته وکړی، ددي کبله چي په عبادت الهي کي چي اوامر او نواهي ټولو ته شامل دي خامخا کُلفه او مشقت پکښي سته، نو هغه

کُلفت یې په لذت او خوند د خطاب ددوی څخه پورته کړی لأن خطاب رب السموات والارض له لذةُ.

**فائـــدة** : چونکه کمامر (نــاس) مشـرکینو، مهاجرینو، منـافقینو او مسلمانانو ټولو ته شامل وو، نو مشرکینو ته امر د توحید فی العبادة ورکوي او منافقینو ته امر د اخلاص په عبادت کې ورکوي یعني ترک د نفاق او مسلمانو ګناه کارانو ته د توبې د عصیان څخه امر ورکوي او مطیعانو مسلمانانو ته امر د ثبات او دوام پر اطاعت ورکوي. نو لفظ د عبادت د کلم جامعه څخه دی، هیڅ انسان ددې امر څخه خارج نه دی کمالایخفی. دعبادت تحقیق په تفسیر کې د سورت فاتحې تیر سو.

**دیاد وړ خبـره** : دعبادت معنا صرف تعظیم د ماسوی الله نه دی لکه وهابیه چې وایي. دوی وایي چې تعظیم د ماسوی الله عبادت دی او عبادت د غیرخدای ﷻ شرک دی ، چې په عقیده ددوی د نړۍ ټولې ډلې بیله خپلې ډلې ټوله مشرکان بولي. دا ددوی لوی جرئت دی.

د احادیث مبارکه د مطالعې څخه په ډاګه دا ثابته ده چې اصحابو کرامو ﷺ د آنحضرت صلی الله علیه وسلم بیحده لوړ احترام او لوی تعظیم کاوه بلکه خود وهابیان د خپلو امیرانو او ددوی د عقیدې د رهبرانو ډیر غټ تعظیم کوي. بعضي شیخ الاسلام بولي، بعضي امام المسلمین بولي وهکذا. بلکه عبادت تعظیم د غیر الله دی پر وجه مخصوصه . یعني وضع د اشرف د اعضاوو چې مخ دی پر اخس د ځایو چې مځکه ده کماکان المشرکون یفعلونه فی الجاهلیة فی محضر آلهتهم من الاصنام. او هغه خبره چې وهابیان یې کوي چې یو شرکت په الوهیت کې دی یعني په وجوب الوجود او خالقیت او رازقیت وغیره کې دی هغه

شرك خو مشركانو د مكي هم نـه كـاوه. (ولئن سألتهم من خلق السموات والارض ليقولن الله) الى غيرذالك من الآيات الدالة على عدم شركهم فى الالوهية.

او بل شرك فى العبادة دى چي هغه مشركانو د مكي كاوه او هغسي شرك په نامه مسلمانانو كي هم سته وهو تعظيم ما وراء الله عزوجل. موږ وايو: هـو شرك خـو دوه قسـمه دى لكن شرك فى العبادت هغه دى چي مشركانو د مكي كاوه يعني السجود للاصنام وهذا الشرك لاوجود له فى احدٍ ممن يدعى الاسلام.

**افسوس**: دوى موږ ته په صرف تعظيم د مور او پلار يا استاد يا شيخ الطريقت كافران بولي. اودوى پخپله تعظيم د خپلو مشائخو تر موږ بالا كوي. البتتأ بعضي جاهلان عوام وه خپل پيرته د عالم الغيوب عقيده او دوى پر هرشي قادر بولي. هغه موږ هم غلط بولو، بايد پوه كړه سي. او دمخه تر پوه كولو بايد په غشي د شرك نه وويشتل سيِ. او كه پس له نصيحته او پوه كولو دوى بيا هم پر خپله فاسده عقيده مصر وي بيايي نو مشرك وبوله.

**فائدة**: علماء وايي چي عـالم او ناصح چي هرڅو ښه عـالم او ښـه سړى وي تر موسى او هارون عليهما السلام خو يقيناً بـالاتـسي كيـداى. او عاصي ګناه كاره كه هرڅو بد سړى وي تر فرعون مدعي الربوبيته خو حتماً بد نه وي. نو څه وخت چي خداى پاك موسى او هارون عليهما السلام فرعون ته د دعوت دپاره ور استوله نو دوى ته يې داسي وويله: (وقولا له ليِّناً الآية).

**پوه سه!** چي خدای جل سلطانه امر دعبادت مربوط په (ربکم) سره وګرځاوه ددي سببه چي تربیه خو نعمت دی او شکر د منعم عقلاً لازم دی نو باید عاقل د منعم حقیقي حق د تربیه ور اداء کړي او دده وه حکم ته غاړه کښیږدي.

اَلَّذِیْ خَلَقَكُمْ وَالَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿٢١﴾

**هغه خدای او رب چي تاسي یې پیداکړي یاست (یعني د نیست څخه و هست ته رااېستلي یاست) او هغه کسان یې پیدا کړي دي چي تر تاسي دمخه وه شاید تاسي به دعقل څخه کار واخلئ ( اوپوه به سئ او خپل معبود حقیقي به وپېژنئ، نو به دهغه عبادت وکړی)**

---

**پـوه ســه!** چي دا موصول صفت دی د (ربکم) دپاره د تعظیم د رب او تعلیل د عبادت د رب ﷻ . او د خلق ترجمه روح البیان او مظهري دواړو په پیدا کولو د شي بیله دمخه مثاله دهغه . او د (الذین من قبلکم) ترجمه روح البیان په ( اُمم سابقه) سره کړي ده. نو (من قبلکم) صله د (الذین) او (من) جاره متعلق په محذوف پوري دی. یعني (کانوا من قبلکم) لکن پر دي تقدیر ترجمه د خلق چي ذکر سوله د مفعول سره د (خلقکم) سمون نه خوري، ولي چي اُمم سابقه خو مثل زموږ د امت وه یعني انسانان وه.

او مظهري ترجمه د (الذین من قبلکم) په هغه مخلوق سره کړي ده چي تر انسانو دمخه خدای جل جلاله پیدا کړي لکه ملائکه او جن وغیره. نو پر دي تقدیر د (کُم) اول څخه ټوله بني نوعه د انسان مراد ده. نو پر دواړو مفعول د خلق په معنای مذکور سره صحیح دی.

**ســوال** : نحــات وايــي چي صـلـه د موصـول بايـد داسـيِ جملـه وي چي مخاطب په خبر وي . نو مسـلمانان مخاطبين كـه پـه دغـه صـلـه علم لـري مشركان خو يي نه پر لري؟

**جواب** : مشركان هم دغـه خلق مني لقوله تعـالى : (ولئن سألتهم من خلق السموات والارض ليقولن الله) بلكه د (خلق الانسان) نسبت هم مشركانو و خداى جـل جلالـه تـه كـاوه. كـه څـوك آيـات قرآنيـه مطالعـه كـړي نـو د مشركانو اقـرار پـه خالقيـت د خداى جـل شـانه د ټولـو كائنـاتو دپاره بـه پكښي وويني. او بالفرض والتقدير كه مشركان په خالقيت د خداى ﷻ اقرار هم ونه كي بلكه منكره وي، لكن چونكه دلائل د خالقيت د خداى جل شـانه ډيـر واضـح دي كـه دوى لـږ فكـر پكښـي وكـړي نـو دوى بـه هـم اعتـراف پـه خالقيـت د خـداى ﷻ وكـړي. نـو دا تمكـن ددوى پـر علـم د خالقيت دخداى قائم مقام العلم يي وګرخاوه او جمله د (خلقكم الآيه) صـلـه د موصول يي راوړه . فتدبر!

درويـش وايـي چي مشـكل اعـراب او معـركـة الآراء اعـراب د (لعلكـم تتقون) دى. نـو زه بـه حتـى الوسع كوشش وكـړم چي ددي اعـراب حـل او حاصل ورونو طالبانو او وطنوالو ته وړاندي كړم . ومن الله التوفيق.

قاضي البيضـاوي رحمه الله وايي چي بعضي مفسـران رح ودي تـه تللي دي چي (لعل) په معنى د (كى) تعليلي دى. او دا تعليـل دى د خلق . نو معنا داده (خلقكم لكى تتقون) كما فى قوله تعالى (وماخلقت الجن والانس الا ليعبدون). يعني په دي آيت كي خو تصريح په تعليل د خلق الجن والانـس په عبادت سره سويِ ده. بيضـاوي رحمه الله وروسـتـه ويلـي دي (وهـو ضعيف اذ لم يُثبت مثله فى اللغـة ) لكـن دا تضعيف د بيضـاوي رحمه الله بـي ځايـه دى. د

تفسیر بیضاوي شارحان وایي چي دا تفسیر په ډیرو آیاتو حضراتو مفسرینورح کړی دی. او علماء د نحوي هم په دغه تصریح کړي ده، یعني چي (لعلّ) په معنا د (کَیْ) ثابت دی. او دوی استشهاد په اقوالو د فصحاء العرب کړی دی.

**پوښتنه** : چي علماء وایي چي افعال د خدای جل سلطانه معلل بالاغراض نه دي. نو څرنګه به صحیح وي چي (لعل) په معنا د (کَیْ) تعلیلي دی او دا تعلیل د (خلقکم) به وي.

**جواب** : اول په قرآن کي تصریح په تعلیل د خلق سوي ده کما فی (وماخلقت الجن الآیة)، نو څرنګه انکار د تعلیل څخه د افعالو دخدای ﷻ صحیح دی؟

دوهم علامه عبیدالله په شرح کي د تنقیح الاصول او نور محققین رح د فن الاصول هم وایي چي حق په مسئله کي د تعلیل د افعالو دخدای ﷻ داده چي د انزاع په تعلیل او عدم تعلیل کي نزاع لفظي ده، ولي که تفسیر د علت او غرض په دي سره وکړه سي چي په هغه سره فاعل کاملیږي او فائده وه فاعل ته راجع وي، نو دا په باره دخدای ﷻ کي ممتنع دی لانه تعالی تام الفاعلیة دی او هیڅ شي ته محتاج نه دی. هغه علماء چي تعلیل نه وایي دهغو دغه معنا د غرض څخه مراد ده. او که د علت تفسیر په حکمت او فائده سره وسي چي پر فعل د خدای جل شانه مرتبیږي فلاشبهة فی وقوعها لأن افعاله تعالی مُعَلَّلة بمصالح العباد عندنا قال تعالی : (أفحسبتم أنما خلقناکم عبثاً الآیة)

سیبویه وایي چي (لعل) دپاره د ترجی دی. نو پوه سه چي (لعلکم تتقون) یا حال دی د فاعله څخه (اُعبُدوا) ای راجین الوقایة من عذاب الله یعني رجا راجع وه عابدینو ته ، نه وه خدای جل شانه ته.

**سوال** : عابدین چي عبادت هم وکړي او اوامر الهیه ټوله پرځای کړي او د منهیاتو څخه پرهیز وکړی بیاخو به نو یقیناً متقین وي، نو د رجاء څه معنا ده؟

**جواب** : ایمان په مابین کي د خوف او رجاء دی او هیڅ عابد ،زاهد ،سالك او صالح ته دا نه ښائي چي په خپل عبادت او زهد او سلوك دي وغولیږي او پر خان دي د متقي یقین وکړي کیف وحقیقت التقوی وهو التبرء من کل شیئ سواه تعالی الیه تعالی‌وهو منتهی درجات السالکین والعابدین والزاهدین بل غایة امر السالك والعابد الرجا الی رحمته تعالی کما قال الله تبارك وتعالی فی حق العابدین: (یدعون) ای یعبدون (ربهم خوفاً وطمعاً) ثم بیّن جل جلاله الخوف والطمع بقوله تعالی : (یرجون رحمته ویخافون عذابه) صدق الله العظیم.

او یا جمله د (لعلکم تتقون) د مفعول څخه د (خلقکم) وماعُطف علیه حالٌ.

**پوښتنه** : نو پر دي تقدیر خو رجاء حقیقتاً نه د متکلم چي خدای جل شانه دی ممکنه ده. لان الترجی لایحصل الا عندالجهل بعاقبة الامور وهو محالٌ علی الله عزوجل کماهو المجمع علیه فی جمیع الادیان والمذاهب ولایتصور الترجی الحقیقی عن المخاطبین وقت خلقهم ، ولي چي دوی په

وخت د خلق اهل د رجاء نه وه کما لايخفى . و اشار القاضی البیضاوی رحمه الله الی دفع هذا الاشکال بقوله علی معنی إِنَّهُ خلقکم ومن قبلکم فی صورة من يُرجى منه التقوى) ولي چي امر د تقوی راجح دی ولي اسباب يي جمع دی او بواعث يي نهايت ډير دی .

درويش وايي چي حاصل ددي جواب دادی چي خدای ﷻ د مکلفينو هغه کارونه کړي دي، که غيرد خدای ﷻ ددوی سره کړي وای نو به داسي معلوميدلای چي دهغه غير اميد او رجاء د حصول د مقصود لري، يعني خدای جل شانه ودوی ته قدرت پر خير او شر ورکړی وو . او عقول هاديه يي ورکړي وه . وازاح يعني زائل کړي وو خدای ﷻ عذر د نقصان دعقولو ددوی په را استولو د انبياء عليهم السلام او په انزال د کتب الهيه هاديه وو. ومحصول الجواب انه شبَّه فعله تعالی بهم بفعل المترجی فأُستعمل فيه حرف الترجی وهو لعَلَّ .

**فائدة** : فی اعراب الآية صاحب کشاف علامة زمخشری په خپل تفسير کي او قاضي ثناء الله په تفسير مظهري کي او په روح البيان کي ټولـه دا وايي چي (لعل) دپاره د اطماع دی يعني چي خدای جل شانه خپل بندګاه په طمع کوي د تقوی. وروسته ټوله دا وايي چي (اطماع) دخدای ﷻ دخوا واجب وي حصول د مقصود لان الکريم لايطمع غيره الا فيما يفعل.

درويش وايي چي پر دي خبره يو دقيق سوال وارديږي چي قاضي ثناءالله رحمه الله په دي قول سره په هغه سوال تصريح کړي ده. قُلْتُ ان کان کذالك لزم وجود التقوى من الناس کلهم وليس کذالك انتهی. يعني که اطماع دخدای ﷻ دخوا واجب الحصول وای نو بايد تقوی د ټولو خلګو

ځکه پیدا وای او دغسي نه ده، ولي په انسانانو کي کافران سته او په انسانانو کي ګناه کاران سته.

درویش وایي چي قاضي ثناءالله ددي سوال په جواب کي یو د تکلف سره مخامخ جواب راوړی دی. عاصي خو نه پوهیږي، تاسي یې وګورئ او مطالعه یې کړی شاید په پوه به سئ. والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب ومنه الهدایة والتوفیق وهوالمسئول عنه فی کل مضیق ومشکل.

درویش وایي چي لفظ د لعل په قرآن مبارک کي ډیر ځایونه راځي خو جامع بیان یې دغه دی چه درویش دلته بیان کړی، نو په هر ځای کي چي (لعل) راسي باید ودي جامع بیان ته رجوع وکړه سي او آئنده په هرځای کي طمع د تفصیل به نه سره کوو.

**الَّذِیْ جَعَلَ لَکُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً**

**هغه خدای ﷻ چي ګرځولی ستاسي دپاره ځمکه لکه فراش اواره او ګرځولی یې دی آسمان بناء (یعني لکه قبه او بام)**

---

**پوه سه!** چي (جعل) په معنا د (صَیَّرَ) دی چي دوه مفعوله غواړي اول مفعول یې (ارض) دی او دوهم مفعول یې (فراشاً) دی او لام د (لکم) دپاره د نفع دی وعلی هذا فقِس والسماء بناءً.

او لام تعریف په (سماء) کي دپاره د جنس دی او (سماء) یوه او ډیر ته ویل کیږي. او ځمکي ته (فراش) ویل په دي اعتبار دي چي ځای د قرار او سکونت دی نه داسي دی لکه اوبه او نه داسي دی لکه ډبري چي بیا

نو قابل د قرار او سکونت به نه وای او(بناء) په اصل کي مصدر دی. مراد خندي مبني ده.

**پوه سه!** چي (الذی جعل) آه دوهم صفت دی د (ربکم) اویا مبتداء ده، جمله ده (فلاتجعلوا) یي خبر دی. او یا محلاً مرفوع دی (هو) مبتداء ورسره محذوفه ده او یا منصوب دی اعني ورسره محذوف دی چي په اصطلاح د نحاتو یي مرفوع علی المدح او یا منصوب علی المدح بولي.

**فائدة** : قال اهل اللغة: چي مځکه بساط العالم ده چيِ تخمیناً پر دروَ۳ ربعو یي بحر محیط راګرځیدلی دی او یوه ربعه یي دپاره د حیواناتو او نباتاتو سره د خرابو مځکو او غرو خالي ده.

**سوال** : حکماء وایي چي مځکه کروي ده. ایا کرویه او فراش منافات نه سره لري؟

**جواب** : د حکماوو مراد علی مافی کتبهم کرویه حسي دی . یعني که څوك دآسمان څخه مځکي ته فرضاً وګوري، نو به ګُره په خیال کي ورسي، نو فراش والی بلکه غرونه او غاري و کرویه حسي ته د مځکي تاوان نه رسوي. په کتابو کي د هیئت وایي چي د ترټولو د لوی غره چي جبل نهاوند یي بولي نسبت وه قطر ته د مځکي لکه نسبت د اوومي حصي د اوربشي دپاره وهغه کري ته چي قطر یي یو ګز وي . والتفصیل فی شرح الچغمینی کذا قال البیضاوی رحمه الله وروح البیان والتفسیر الکبیروغیرها

**پوه سه!** چي آسمان لکه ګُنبده ده پر مځکه باندي. درویش وایي چي روح البیان د تفسیر د ابی اللیث رحمه الله څخه داسي نقل کړي دي: والسماء

الدنیا ملتزقة اطرافها علی الارض انتهی. یعني د اول آسمان اطراف جوت دي په مخکه پوري. پر دي خبره دا سوال واردیږي چي هرڅو چي طیاره شرقاً یا غرباً یا جنوباً یا شمالاً سفر کوي، آسمان هغونه لوړ دی لکه چي دهغه ځایه څخه چي لوړ وو چي طیاري سفر شروع کاوه او هیڅ د آسمان اطراف په مخکه پوري مبنتي نه دي.

**والجواب**: چي د ابواللیث رحمه الله مراد التزاق حسي دی یعني هرځای په سترګو د خلکو کي داسي ور ښي چي د آسمان اطراف په مځکه پوري مبنتي دي. ولاریب انه کذالك فی کل اطراف الارض ولیس مراده الالتزاق الحقیقی.

## وَّاَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً

او راتوی کړي خدای ﷻ د آسمان څخه اوبه

---

**پوه سه!** چي په قرار د احادیثو نبویه ﷺ وو د باران اوبه د آسمان څخه پر وریځ راتوییږي او د وریځي څخه پر مځکه راتوییږي.

درویش وایي چي ددي خبري پوره تحقیق وړاندي تیرسو فتذکر.

# فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ

او بیا خدای ﷻ را ایستلي دي بعضې د میوي په سبب د باران د اوبو دپاره د رزق ستاسي

**پوه سه!** چي په دي آیت کي رد دی پر حکماوو چي هغه وایي چي تولہ بارانونه د طبقه زمهریره څخه د هوا اوري. وقدمرّ بیان ذالك.

**فائدة** : د ثمراتو څخه صرف هغه شیان چي د میوو په نامه متعارف دي مراد نه دي، بلکه مراد تولہ داني لکه غنم، اوربشي، جوار، ورجي وغیره او تولہ متعارفي میوي لکه انګور، انار، سیب او نور تولہ فواکه دي.

**فائدة** : خدای جل شانه په مځکه کي قوت منفعله ایښی دی او په اوبو کي قوت فاعله ایښی دی چي ددغو دوو د اجتماع څخه حبوب او ثمار او فواکه زیږي. ګویا په مابین کي د آسمان او مځکي شبه د عقد نکاح سته یعني د آسمان څخه شبه د مني انساني راکښته کیږي او په اعماقو کي د مځکي چي شبه د رحم انساني لري جمع کیږي او ددي څخه نباتات من الحیوان والثمار والحبوب وغیرها چي شبه د اولاد لري پیدا کیږي او دا میوي وغیره انسانانو او حیوانانو ته دپاره دپاره د رزق ماکول ګرځي، نو باید خلګ خصوصاً قرآن د خدای ﷻ وه خالقیت او قادریت او رازقیت او رحمت عامه او اعتقاد ته غاړه کښیږدي او دهغه عبادت د وحدانیت دلازي وکړي.

**فائدة** : اول (من) ابتدائیه دی یعني ابتداء د اوبو د آسمان څخه دی او دوهم (من) تبعیضي دی او تنکیر د (ماءً) هم دپاره د تبعیض دی. او د

(رزقاً) تنوين او تنكير هم دپاره د تبعيض دي. او (ثمرات) كه څه هم معرفه دي لكن چونكه په مابين كي د دوو نكيرو چي (ماءً او رزقاً) دی په معنا د (بعض الثمرات) دی. وهذا هوالموافق للواقع، ولي چي د آسمان څخه ټولي اوبه نه دي نازلي سوي. او ټولي ميوي په اوبو د باران هم نه دي عالم وجود ته راوتلي. لان الجنّات فيها من الثمار مالاعينٌ رئت ولا اُذُنٌ سمعتْ ولاخطر على قلب بشرٍ او ټوله مرزوق ميوي هم نه دي، غوښي شيدي وغيرها هم مرزوق دي.

فَلَا تَجْعَلُوا لِلّٰهِ اَنْدَادًا

نو تاسي مه كرځوی خدای ﷻ لره امثال (په عبادت كي چي تاسي دهغو هم عبادت كوی لكه دخدای ﷻ. او (ند) په معنا د ضِد هم راغلی دی. خدای ﷻ لره نه مثل سته او نه ضِد)

---

قال الشاعر:

اتيماً تجعلون الىّ نِداً ✤ وماتيمُ لِذِي حَسَبٍ نديدٌ

**فائدة** : خدای جل سلطانه اول خلق يعني ناس په عبادت سره خپل امر كړه. بقوله : (ياأيهاالناس اعبدوا ربكم) او علت د امر بالعبادة يي هم ذكر كړی يعني ربكم الذی خلقكم الآية. اوس يي بيا جمله د نهی د (فلاتجعلوا) آه پر هغه امر عطف كړه بالفاء تنبيهاً على ان اسباب الامر بالعبادة هی اسباب النهی عن اتخاذ الانداد شبرًا بشبرٍ.

وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۲۲﴾

او تاسي هم پوهيږئ (چي خداى لره مثل نسته)

**پوهه ده!** جمله د (وانتم تعلمون) حال دضمير څخه د (فلاتجعلوا) او (تعلمون) مُنزلة منزلة اللازم دى اى انتم من اهل العلم او يامفعول محذوف دى أى انتم تعلمون ان خالق هذه الاشياء واحد. حتي چي تاسي اقرار هم په كوئ. (ولئن سألتهم من خلقهم ليقولن الله) نو تاسي ولي شريك في العبادة ده لره واياست.

شاعر وايي:

ابرو مه وباد خورشيد وفلك در كار اند ✤ تانوناني بكف آري وبغفلت نه خوري

اين همه از بهر تو سرگشته وفرمان بردارند ✤ شرط انصاف نباشد كه توفرمان نبري

**فائدة** : په حديث كي د وصيت د عليه السلام وه معاذ چي حاصل يي دادى چي خداى اوه آسمانونه پيدا كړي دي او دهر آسمان دپاره يوه ملكه (بواب) يعني د دروازي ساتونكي هم پيدا كړي ده، نو (كرام كاتبين) يعني حفظه د بعض بندګانو ښه ښه عبادتونه پورته كوي ترڅو چي جناب الهي ته يي ورسوي او ددي عملو لكه د لمر داسي رڼا وي. نو ملك بواب د اول آسمان ورته ووايي چي ددي عملو د پورته كيدو اجازه نسته. زه خداى امر كړي يم چي دهغه سړي عمل چي غيبت د مسلمانانو كوي مي راپريږده. داغه سړى صاحب الغيبت وو. سعدي وايي :

زبان آمد از بهر شكر وسپاس ✤ بغيبت نگرداندش حق شناس

درویش وايي چي حدیث مذکور چونکه ډیر طویل وو، نو به يي زه اختصاراً مقصود ځايونه درته ذکر کړم.

علیه السلام وايي چي حفظه کرام رض د يوه بل سړي ښه ښه عملونه، روژي، لمونځونه، صدقات تر اول آسمان تير کړي. د دوهم آسمان ملك بواب يي راوګرځوي او حفظه ته ووايي چي په دغو عملو دغه سړی چي دا عملونه يي کړي پر مخ يي په ووهئ. زه خدای ﷻ ددي دپاره مقرره کړي يم چي هغه عمل چي دپاره د عرض الدنیا چا کړی وي. ماته يي مه راپريږده او ددي سړي عمل د جمع اوري ددنيا وو. ما دپاره نه وو.

چه زنا درمیانت چه دلق ✤ که در پوشی از بهر پندار خلق

خلاصه داچي په دريم آسمان کي د متکبر عمل راګرځول کيږي چي پر خلګو به يي کبر او لويي کوله. سعدي شيرازي رحمه الله وايي:

فروتن بود هوشمند گزین ✤ نهد شاخ پُر میوه سر بر زمین

او په څلرم آسمان کي اعمال د صاحب العجب يعني خود بين مفتخر راګرځول کيږي.

چو روي بخدمت نهی بر زمین ✤ خدارا ثنا گوی وخود را مبین

او په پنځم آسمان کي اعمال د حاسد سړي راګرځول کيږي، چي حسد د اهل علم سره کوي. سعدي رحمه الله :

عُقبه زین صعب تر در راه نیست ✤ ای خنك آن کس حسد همراه نیست

او په شپږم آسمان کي اعمال د هغو انسانانو راګرځول کيږي چي پر چا به يي رحم نه کاوه او دبل په ضرر به خوشحال وو.

رحم خواهی رحم کن بر اشکبار ✤ رحم خواهی بر ضعیفان رحم آر

او په اووم آسمان کي عمل د رياکار او شهرت پسنده راګرځوي.

بروی و ریا خرقه سهلست دُوخت ✤ گرش باخدا درفروشی نکوست

قال علیه الصلوة والسلام ويصعد الحفظة بعمل عبد من زكاة و صوم و صلاة وحج وعمرةٍ وخُلقٍ حسنٍ وذكرالله. او د ګردو آسمانو ملكي ورسره همراه وي، حجابونه ټولـه پورتـه سي او ملكي دشاهدي دپاره وحضورته دخدای جل سلطانه ودريږي. نـو خدای ﷻ ورتـه وايي چي تاسي خو پر ظاهر عمـل د بندګانو رقيب او مقرر ياست. د زړو د حال مالك زه يم. ددغه عامل په دغو عملو كي مقصود زه نه وم ، بلكه د بل چا دپاره يي كول. فعليه لعنتي ، نـو ملكي ټولي ووايي : عليه لعنتك فتلعنه السموات السبع ومن فيهنَّ.

## تمهيد

چونكه كافران دمكي به آنحضرت ﷺ په نبوت نه، بلكه ګاهي به يي شاعر باله او ګاهی ګاهی به يي كاهن باله او ګاهی بـه يي مجنون باله او ګاهی يعلمه البشر باله او دغه دوی قرآن مبارك كلام الهي نه بالـه، بلكه ګاهي شعرګاهي كهانت باله. نـو پـس لـه دي خدای ﷻ خپـل توحيد په دلائلو ثابت كړی. كه دوی قناعت پر كاوه او كه يي نه پركـاوه. اوس خدای جل سلطانه د كفارو نه طريقه د پيژندلو د حقيت دقرآن كريم يعني إنه مـن الله تعـالى دی او طريقـه د پيژنـدلو د آنحضـرت دينـي برحـق والـی بيانوي او داسي وايي :

وَإِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا

او که چیرې تاسي په شک کي یاست په هغه کتاب چي موږ نازل کړی پر بنده خپل (یعني محمد علیه السلام)

**پوه سه!** چي کلمه د (نزلنا) په تشدید د زاء د بابه د تفعیل دی. او معنا یي نزول د شي دی نجماً نجماً، سورةً سورة، آیةً آیة. چي دغسي نزول دوی په شک کي اچولي وه او دوی به ویله: (لولانُزِّل علیه القرآن جملةً واحدةً) یعني لکه پر موسی تورات او پر عیسی انجیل علیهما السلام. او دوی به ویله چي نجماً نجماً جوړول کار د شاعرانو دی. نو خدای جل شانه ددوی سره د نجماً نجماً پر طریقه بحث او تحدی ورسره وکړه ترڅو چي ددوی هغه شبهه زائل سي.

**فائدة**: قرآن مبارك هم په تنزیل سره چي ذکر سو موصوف دی، ولي په ۲۳ کاله زمانه د نبوت کي د علیه السلام نجماً نجماً پایه او تکمیل ته رسیدلی دی.

او په انزال سره موصوف دی او معنا یي نزول دی دفعتاً واحدتاً ده ولي چي قرآن کریم د لوح محفوظ په شپه د قدر وبیت العزة ته په یوه وار راوړه سوی دی او دهغه ځای څخه بیا نجماً نجماً بحسب المصالح مخکي ته راغلی دی.

**فائدة**: خدای پاك تصدیر دجمله په (ان) شرطیه سره وکړی چي د شك په ځای کي مستعملیږي او سره دد چي انکار ددوی خو مُحقق وو.

**تنبیه** : په پُر دي وکړه چي قرآن مبارك په سبب د وضوع البرهان خو د محقق انکار ځای نه دی. غایة الامر د فرضاً شك ځای له کبله وي او ازاله د هغه هم په دي ډول وکړی چي رابه سي. وهذا بعینه هوالوجه فی ذکر لفظ الشك دون الانکار مع ان الموجود فیهم هوالانکار.

**فائــدة** : د آنحضرتﷺ په باره کي یي لفظ د (عبدنا) ووایه. (رسولنا، نبیناو امثالها) یي نه ووایه، ولي علماء په یوه خوله وایي چي د نبي په اوصافو وصف د عبودیت تر رسالت بلکه تر ټولو اوصافو بهتر او شریف دی ، ولي چي په عبودیت کي توجه د مخلوقه وه خالق ته ده. بخلاف الرسالة . او اضافت وضمیر ته دپاره د شریف د مضاف دی. او بل عبودیت اظهار د عُجز دی، ولي چي اصل معنا د عبد مربی دی. څکه بایزید بسطامی قدس سره وایي : په خطاب کي د خدای جل سلطانه :

چار چیز آورده ام شاها که در گنج تو نیست

نیستی وحاجت عُجز وگناه آورده ام

**فائدة** : حکمت الهي په نزول کي د قرآن کریم نجماً نجماً لا دفعتاً دادی چي د آنحضرت صلی الله علیه وسلم شان د نورو انبیاء علیهم السلام څخه جلا وو. ولي چي علیه السلام نبي امي وو یعني خط و کتابت یي نه وو زده، نو د نجماً نجماً په نازلیدو کي علیه السلام ته حفظ دقرآن آسانه وو. بخلاف سائر الانبیاء علیهم السلام.

# فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ

نو تاسي راڅك وكړى په يوه سورت د مثله څخه دده.

**سوال** : اتيان په مثل سره دسورت قرآني خو محال دى او امر خو امكان د مامور به غواړي؟

**جواب** : دا امرتعجيز دى يعني دپاره د اظهار د عُجز د كفارو، نو د امر امكان د ماموربه نه غواړي.

**پوه سه!** چي سورت په لغت كي د ښار ديواله ته وايي، نو چونكه ديوال د ښار محيط پر ځو دُوَرو او سرايو باندي دى، نو په دي مناسبت چي سورت يو طائفه د آيات قرآنيه وو چي اول او آخر يي په توقيف د صاحب الشريعة معلوم وي. نو كه سړى يو ځو آيته د سورت بقره سره يو ځاى كړي، هغه ته سورت نه وايي، ولي چي توقيفاً اول او آخر نه لري.

او بعضي مفسرين وايي چي سورت په لغت كي شرف او رتبې ته وايي، نو سورت قرآني هم شرف لري. او قاري ته هم شرف ور په برخه كوي.

**پوه سه!** چي (فاتو بسورة) جواب دى. او مراد د سورت څخه هغه كوچنى سورت دى چي دي آيتْ قُصار وي.

**پوه سه!** چي په نيز د اكثرو مفسرينو رح (من مثله) صفت د سورت دى اى (كائنة من مثله) او كلمه د (من) دپاره د تبعيض دهْ يعني بعض د مثله څخه او يا دپاره د مثليت (اى سورة مماثلة)

او د اخفش ﷫ په نیز کلمه د (مـن) زائده ده ای سُور مماثلةٍ للقرآن.

او ضمیر د (مثله) راجع دی (ومانزلنا) تـه یعني (القرآن العزیز)، نو معنا د آیت داسي ده چي تاسي راتګ وکړی په مثل د سورت قرآني یا د قرآن په بلاغت او په نظم حسن کي یعني کـه چیري دا خبره ستاسي صحت لري چي قرآن کلام البشر دی یعني علیه السلام یې دځانـه جوړوي، نو تاسي خو هم عرب یاست، بلکه بُلغاء هم ځانونـه بولی، تاسي مثل د سورت د قرآن ومیدان ته د معارضة القرآن راوړی.

**سوال** : قرآن پاك لره خو مثل نستـه، ولـي قـرآن کـلام الله او صـفت الله او وحی دی. فکما لامثل له فی ذاته ولا مثل له فی صفاته فکیف یصح (فاءتوا بسورةٍ من مثل القرآن؟

**والجواب** : ان الکلام ورد علی زعمهم لانهم کانوا یقولـون لوشئنا لقُلنا مثل ذالك. کذالك فی التفسیر التیسیر.

او بعضي مفسرین رح وایي چي ضمیر د (منه) راجع دی و (عبدنا) تـه، نو (من) دپاره د ابتداء دی فقط ای بسورة کائنةٍ من مثل عبدنا یعني چي بشر دي وي او اُمي دي وي او خط او کتابت دي یي نـه وي زده او تعلیم دي هم نه وي کړی. قال البیضاوی ووافقه المظهری : چي ضمیر (ومانزلنا) ته راجع کول یعني قرآن ته ډیره ښه وجه ده.ترڅو چي دهغه آیت سره برابر سي چي په بل ځای کي د قرآن راغلی دی. (فاتو بسورة من مثله)، ولـي پـه هغـه آیت کي خو حتماً ضمیر و (مانزلنـا) تـه راجـع دی لعدم ذکر عبدنا هناك.

او بل سبب د حسن داده چي د سره څخه خو کلام په قرآن کي دی يعني (ان كنتم) په (عبدنا) کي خو خبره نه ده. نو بايد نظم نسي سره جلا.

او بله وجه د حُسن داده چي قرآن خو مُعجز في ذاته دی، نه نسبت وه عليه السلام ته لقوله تعالى : (قل لئن اجتمعت الانس والجن على ان ياتو بمثل هذا القرآن لاياتون بمثله) يعني ته کافرانو ته ووايه که چيري سره جمع سي انسانان او پيرانيان پر دي باندي چي دوی دي راتګ په مثل ددي قرآن وکړی، راتګ به ونه کي په مثل د قرآن . دا وه حاصل د بيضاوی . او روح البيان او تفسير مظهري او د نورو تفاسيرو هم. وبالله التوفيق.

وَادْعُوا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۲۳﴾

او دعوت ورکړئ (يعني کهمک وغواړی) دشاهدانو څخه ستاسي، يعني خدايان ستاسي چي تاسي يي عبادت کوی او داهم تاسي دعوی کوی چي دغه زموږ خدايان به زموږ دپاره شاهدي اداء کوي په ورځ د قيامت چي تاسي پر حق دين واست. يعني که قيامت بالفرض وو (والا فهم يُنكرون القيامة حيث قالوا مَن يحيى العظام وهى رميم) او يا حاضران د مجالسو راوغواړی (من دون الله) يعني ماسوی دخدای ﷻ چي تاسي ته شاهدي اداء کړي چي دغه کتاب يا سورت چي تاسي جوړ کړی دی مثل د قرآن دی. او داسي به نه واياست چي خدای شاهد دی چي زموږ جوړ کړی کتاب يا سورت مثل د قرآن دی، ولي دا وينا عادت د عاجز في المناظرة ده. که چيري تاسي صادقان ياست، چي قرآن مبارک کلام البشر دی. جواب د شرط محذوف دی چي ماقبل دلالت پر کوي.

**پــوه ســه!** چي شـهداء جمع د شـاهد ده په معنـا د حاضر او ناصر. او شاهدي ادا کوونکي دا دري سره معناوي دلتـه صحيح دي. او مِن دون الله متعلق دی په (أُدعوا) سره فالمعنی ادعوا متجاوزين الله.

هرڅوك چي وي دپاره د کهمك په معارضه کي د قرآن يا راوغواړئ حاضـران د مجالسو ستاسي يعني ستاسي رئيسان او اشراف ستاسي ددي. ددي معارضة القرآن دپاره، يا راوغواړی هغه کسان چي ستاسي دپاره به يي په مهماتو کي شاهدي اداء کوله. او يا راوغواړی هغه کسان چي ستاسي سره په وخت د عجز کهمك کاوه ترڅو چي په معارضة القرآن کي هم کهمك درسره وکړي. اوکهٔ (من دون الله) متعلق د (شهداء) وو سره سي، نو مراد ځندي ددوی بتان دي.

**فائدة** : ماده د شاهد يعني شين او هاء او دال دپاره د حضور ده لکه په معانی مذکوره په ټولو کي چي حضور سته او ددي کبله شهيدفی سبيل الله ته شهيد وايي چي ملائکه ورته حاضريږي. او يا هغه شی چي د اميد ورته درلودی، هغو ته دی حاضريږي لکه جنت او نعمي دجنت کما جاء فی الحديث الصحيح النبوی ﷺ.

**پوه سه!** چي په دي آيت کي اشاره ودي ته ده چي (عاجز) دی. د عاجزه ځخه کهمك په مهماتو کي ددين او ددنيا نه غواړي، بلکه په حوائجو کي د مُتعال خدای جل سلطانه ځخه مددغواړي الذی لايعجز عن شئ ولايثقله شيئٌ ولابخل فی جنابه بل هو ارحم الراحمين. نو ياالله ياالله جل جلالك وعظمتْ قدرتك وعمّ احسانك. زما عجز او بي علمي ترما تاته ښه معلومه ده. او زما اَعشق او محبت او حرص د تفسير سره د قرآن

الكريم هم تاته معلوم دی. نو یا ارحم الراحمين! زما عمر دومره را اوږد کړي سره د صحت او عافيته او توفيق سره چي زه دا تفسير قرآني پای ته ورسوم. تولـه موانع جسدي و دماغي وغيره د درویش څخه دفع و لري چي زه دغه تفسير په صحت او خوش حالی وپایه او تکمیل ته ورسوم.

د درویش عقيده خو اوس داده چي که دغه تفسير پای ته ورسيدی او پر (والناس) باندي ودريدی، نو که په هغه کړي فرضاً زه ملك الموت په سترگو ووینم چي د قبض الروح دپاره حاضر دی، انشاء الله دومره مهلت او فرصت به غندي ونه غواړم چي زه به یو وار تر خونه سر وباسم او اهل البیت ته به ووایم دخدای په امان. بلکه که دهشت د مرگ دامن گیر نسو داسي به ورته ووایم: كما قال المولوی الرومی رح فی المثنوی

پیشتر آ پیشتر آ جان من + پیك درحضرت سلطان من

اللهم اجب دعائي يامجيب الداعين. دجمعي شريفي ورځ د ذوالقعده ٦م تاريخ دی سنه ۱۴۲۴هـ ق ده سحار ترلمانځه وروسته.

# فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا وَلَن تَفْعَلُوا

او که تاسي په ماضي کي داسي نه دي کړي چي مثل د سورت قرآني یا قرآن مو جوړ کړی وي او تاسي وروسته هم داسي نسی کولای چي مثل دقرآن دي جوړ کړئ.

**پوه سه!** چي جمله د (لن تفعلوا) جمله معترضه ده په مابین کي د شرط چي (فان لم تفعلوا) دی او دجزاء چي (فاتقوا) دی او دا جمله اخبار بالغیب ده او د معجزاتو څخه د قرآن عظیم الشان ده، ولي که دوی مثل د سورت قرآني جوړ کړی وای د تاریخ ورقي به په هغه ډکي وای خصوصاً تواریخ غیر اسلامي، ولي چي مدار د صدق نبوي ﷺ او دحقیقت قرآني هم پر دغو دوو جملو دی. او د مدعیانو د کذب د قرآن او نبوت سترګي هم ودغو دوو جملو ته کړې دي. لکن بحمده تعالی د هجرت نبوي ﷺ ۱۴۲۴ کاله تیر سوله، څوك په ټوله نړۍ مدعی د مثل القرآن نسو پیدا، نو ددي کبله قرآن پاك معجزه باقیه ده الی یوم القیامة.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ

نو چي تاسو پس له غاية الجهد مثل دقرآن جوړ نه کړی او ښکاره سوله چي قرآن قول البشر نه دی بلکه کلام دخالق القوی والقدر دی او کلام معجز دی، نو ایمان پر قرآن او پر حامل القرآن علیه السلام راوړی او په ذریعه د ایمان خپل ځانونه وساتئ د اوره څخه د جهنم په ورځ دقیامت. هغه اور چي د عادي اورو څخه ددنیا چي په لرګو بلیږي جلا دی او ډیر جلا دی. او د بلیدو شیان یې خلګ او انسانان دي یعني کفار او بل ډبري دي.

---

**پوه سه!** چي په اول صدر کي تفسير د (حجارة) په ډبرو د تورو ګوګړو سوی دی و بس . او بعضي مفسران چي مراد مطلق ډبري دي يعني نفسي ډبري په جهنم کي لکه کبريت اسود يعني په بدبويي کي او په بدن پوري د سخت مبتتو او د غايت التهاب په باره کي. او بعضي مفسران رح وايي چي د (حجارة) هغه بتان ددوی مراد دي چي دوی به د ډبرو څخه جوړ کړي وه او عبادت به يي دهغو کاوه په طمع ددي چي دا بتان به زموږ د خلاصون سبب سي په آخرت کي، لكن خدای پاك معامله بالعکس ورښکاره کړه يعني هغه بتان يي سبب د تعذيب ددوی وګرځوله. او دوی ته به دا ثابته سي چي زموږ سبب د دوږخ عبادت ددغو بتانو وګرځيدی او تحسر او غم به يي نور ډير زيات سي.

أُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۴﴾

آراسته کړه سوی دی دغه اور، يعني په اصل وضع کي د کفارو دپاره نو عُصات المومنين چي په بعضي افعالو کي د کفارو سره مشابهت ولري. هغه به هم په جهنم کي وي که څه هم ددوی دپاره نه وو جوړ سوی. وهذا على تقدير ان لايدركوهم الشفاعة العُظمى او رحمة الله تعالى العامة

**فائدة** : (أُعِدَّتْ) چي ماضي صيغه ده، پر دي دلالت کوي چي جهنم اوس هم مخلوق دی او احاديث صحيحه کثيره هم پر دغه دلالت کوي. او معتزله وايي چي نه جنتونه او نه دوږخونه اوس موجود دي. والتفصيل فی کتب العقائد.

**پوه سه!** چي د ابن مسعودﷺ څخه روايت دی چي اتباع د ابليس هر مابنام و ابليس ته خپل راپور د اضلال المسلمين وړاندي کوي. حتی يو کوچنی تابع يي دا ووايي چي ما داکار وکړی چي د مسلمانانو يو هلك مي د ديني مدرسي څخه منع کړی. ابليس ور ولاړسي او خپل بغل ته يي کښينوي دخوشحالی د مافعل سره. نو ددي سببه پوهان ددين وايي چي حق د ولد پر مور او پلار دري۳ شيان دي.

اول : ښه پاك نوم پر ايښوول په وخت د ولادت يعني د (عبد) لفظ وه نوم ته دخدای مضاف کړي لکه عبدالله، عبدالرحمن ، عبدالغفار وغيره. او يا نوم د آنحضرت صلی الله عليه وسلم، لکه محمد . احمد ، محمود وغيره پر کښيږدي او يا د نورو انبياء عليهم السلام نومان پر کښيږدي لکه داود ، سليمان ، ابراهيم وغيره . او غلط نوم لکه عبدالنبی، عبدالرسول، عبدالمحمد ، عبدالغياث، الله محمد وغيره دي نه پر

ایږدي. یا بې معنا نوم دي هم نه پر ایږدي لکه کرنګ ، لونګ، خر، ختک وغیرها.

او دوهم : حق يي دادی چي قرآن او ادب او امور شرعیه لکه لمونځ، روژه وغیره په زده کړي.

او بل حق يي سنتي ده.

**فائدة** : جمله د (اعدت) آه جمله مستانفه ده ددي سوال په جواب کي چي دغه اور دچا دپاره دی او یا حال ده د (نار) څخه په حذف د (قد) ولي ماضي چي حال واقع سي (قد) یا ظاهر یا مضمر غواړي كما في كتب النحو.

**فائدة** : په دي جمله کي اشاره ودي ته ده چي هغه بعضي عصات المومنين چي دوږخ ته داخل کړه سي. ودوی ته همیشه والی په اورو کي لکه د کفارو نسته او داسي سخت عذاب يي هم نه دی لکه د کافرانو، ولي چي مثال د عصاتو المومنين لکه يو بيګانه سړی چي د چا كورته ورسي نو هغه خو د همیشه دپاره په دا کور کي نه وي لکه صاحب الدار چي کافران دي نو په جمله کي د (أعدت للكافرين) ضمناً زیری دی د مومنانو دپاره په عدم الخلود سره. ددي سببه په وروسته کي صراحتاً زیری وه مومنانو ته راغلی.

# وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

او زیرئ وکړه او مبارکباد ووایه اي محمدعلیه السلامه وهغو کسانو ته چي ایمان يي راوړی وي يعني پر ټولو هغه شیانو چي ایمان راوړه پر واجب دي من القرآن، والنبي علیه السلام وغیرهما اوسره د ایمان اعمال صالحه يي هم کړي وي من الفرائض والواجبات.

---

**پوه سه!** چي ددي آیت څخه دا معلومه سوه چي اعمال د ایمانه څخه خارج دي و إلا فلافائدة فی العطف .

**فائدة** : بشارت د خوشحالی وه خبر ته وایي.

**سوال** :نو په هغه آیت کي (وبَشِّرْهُمْ بعذاب أليم) خبر دبشارت سار کمه دی؟

**جواب** : هغه آیت پر طریقه د تحکم راغلی دی. یعني په کفارو د پسخند دپاره.

**فائدة** : امر په بَشِّر که څه هم ظاهراً و علیه السلام ته دی لکن مراد خندي هر هغه سړی دی چي اهل د بشارت وي من العلماء و غیرهم، ولي چي آنحضرت صلی الله علیه وسلم خو ټولو امتیانو ته فرادی دا خبري راساً نه دی کړی .

**پوه سه!** چي لفظ د (صالحات) جمع ده (صالحةُ) ده. تانیث يي په اعتبار د (خصلةُ) دی او چونکه لفظ د صالحات د صفات غالبة الاستعمال په بنو اعمالو کي دی نو جاري مجری الاسماء دی. نو ذکر د موصوف نه ورسره

غواړي. عمل صالح عام دی. هرهغه عمل دی چي شرع شریفي ښه ګڼلی وي. من الفرائض والواجبات والسنن والمستحبات.

**سوال**: جمله د (وبشرالذین) پر کم ځای عطف ده؟

**جواب**: دا ټولي جملي چي په بشارت پوري اړه لري عطف دي پر هغو مجموع جملو چي په تخویف کي تیري سوي یعني عطف القصة على القصة لان العادة الالهية جرت على ان يُشفَّع الترهيب بالترغيب وبالعكس.

**تنبیه**: ددي آیت مبارك څخه دا معلومه سول چي اهل د بشارت هغه کسان دي چي ایمان او عمل صالح یي سره جمع کړی وي، ولي چي ایمان لکه تادای د خوني دی او عمل صالح یي لکه بناء پر تادای. او دامعلومه خبره ده چي تادای بیله بناء د بشارت سبب نه ګرځي لکه په عُرف کي چي څوك پر تادای باندي بناء وکړي، نو خلګ مبارکي ورکوي. لاعلى الاساس فقط فطلب الجنة بمجرد الايمان بدون العمل الصالح حال السُفهاء و مخالف لهذه الآية.

**سوال**: نو په مجرد ایمان سره څوك و جنت ته نسي ورتلای؟

**جواب**: موږ د دخول الجنت وعدمه په باره کي خبره نه ده کړي. موږ په بشارت او عدم بشارت کي خبره وکړه. ولاريب انه تعالى جعل فی هذه الآية اهلُ البشارة الجامعين من الايمان والاعمال الصالحة فغيرهم لايتاهل للبشارة فافهم. یعني د دخول څخه د جنت د عصات المومنين انکار نه لرو په شفاعت وغیرها.

درویش وایي چي سره ددي چي عمل شرط عادي د دخول د جنت دی لکن مع هذا نا امیدي گناه کارانو ده په کار نه ده چي پاك خدای جل سلطانه ارحم الراحمین دی. یعني امکان سته بلکه امید سته چي خدای ﷻ دي په رحمت عامه خپل، خپل بعضي عصات وبخښي.

به بها نمي بخشد ✤ به بهانه مي بخشد

او حضرت سید المرسلین صلی الله علیه وسلم شفیع المذنبین دی شفاعت حیث قال شفاعتي لاهل الکبائر من امتي . لکن مع هذا درجات عالیات په جنت کي په اندازه د اعمال صالحه وو د ژوند دي. نو لکه په دي دنیا کي چي هرڅو مو رزق پراخه وي لکن موږ د (هل من مزید) غوښتونکي یو، نو د جنت د درجاتو.

أَنَّ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ

چي دوی لره جنتونه دي چي بهیږي لاندي ترهغو یعني لاندي تر درختو دهغو جنتي ولي یعني د اوبو، دعسلو، دشیدو او د شرابو.

---

**پوه سه!** چي (ان لهم) اصل یي (بأن لهم) نو حرف جر یي خندي حذف کړی، نو دي ته په اصطلاح کي د نحاتو منصوب بنزع الخافض وایي و تعدی الفعل چي ابشر دی وده ته یعني گویا دی نو په ځای د مفعول د (ابشر) ودریدی. او بعضي مفسرین رح وایي چي (انّ لهم) مجرور محلاً دی. حرف جر ورسره مقدر دی.

**فائدة** : (انهار) جمع د (نهر) ده (وهوالشق فی الارض) چي په پښتو یي تر واله بولي.

**سوال** : واله خو نه بهيږي كمالايخفى، ولي واله خو د ظرف د اوبو نوم دى؟

**جواب** : څوك وايي چي مضاف ورسره محذوف دى (اى مائها) او بعض وايي چي اسناد د (جرى) و والي ته اسناد مجازي دى يعني اسناد د فعل د مظروف چي اوبه دي و ظرف ته يي وكړى چي ودي ته په اصطلاح د علم بيان مجاز فى النسبة وايي. او په حديث شريف كي چي ابن جرير رحمه الله او ابن المبارك رحمه الله او بهيقي رحمه الله روايت كړى دى وايي چي وَلي دجنت خرقُ العادة بيله شقه بهيږي؟ نوبردي تقدير اسناد حقيقي دى.

**فائدة** : جمله د تجرى صفت ده (جنات) ده. او روح البيان والا وايي چي نهر پراخه شق ته وايي يعني تر جدول چي لښتى يي بولي پراخه به وي او تر درياب كمه وي لكه رود نيل د مصر.

درويش وايي چي هغه تجرى الماء چي په پښتو يي وَلي بولي د ولو څخه خارج سوي او دجدول په تعريف كي داخلي سوي، لكن د هري ژبي خپل اصطلاح ده. موږ پښتانه د مصر نهر ته رود وايو. دغه رنګه د هلمند نهر ته رود وايو او تر هغه چي كوچنى نهر وي، هغه ته نهر او واله وايو او تر هغه چي هم كوچنى وي هغه ته لښتى وايو.

نو چي اوبه وچيبني نو جنتيانو ته ژوند ابدي پيداسي چي بيا مري نه او شيدي وچيښي نو په بدنو كي يي صحت كامله پيداسي چي بيا ناجوړي كيږي نه . او چي شراب وچښي نو خوشحالي ابدي ورته پيداسي چي بيا هيڅ غم نه ورته پيښيږي.

**فائـدة** : په روح البيان كي وايي چي پر ساق العرش باندي په غټو الفاظو (بسم الله الرحمٰن الرحيم) نوشته ده. نو د اوبو چينه د (ميم) څخه د

(بسم) راوزي او د شیدو چینه د (هاء) څخه د (الله) د لفظ راوزي. او د شرابو چینه د (میم) څخه د (الرحمن) راوزي. او د عسلو چینه د (میم) څخه د (الرحیم) راوزي. او دا ټولې چینې بهیږي وه کوثر ته د نبي علیه السلام چې هغه اوس په جنت کې دي.

كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوا هٰذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ ۙ

هروخت چې رزق ورکړه سي ودوی ته د جنت څخه د یوې میوې څخه یو رزق. نو دوی وایي: چې دا میوه خو موږ ته دمخه هم په رزق راکړه سوې وه.

**فائدة** : جمله د (کلمارُزقوا) دوهم صفت دی د (جنات) نو منصوب محلاً ده. او یا خبر د مبتداء محذوف ده یعني (هی ای الجنات بحیث کلما رزقوا آه) او یا (هم ای اهل الجنة کلما رُزقوا آه) او یا جمله مستانفه ده یعني جواب د سوال ده چې میوې د جنت مثل د میوو د دنیا دي او که جنس آخر دي. کذا فی البیضاوي والمظهري و روح البیان.

**فائدة** :(کلما) منصوب دی ظرف دی د (قالوا) او (رزقاً) په معنا د (مَرْزوقاً) مفعول به دی د (رزقوا) او (رُزقوا) په معنا د (اطعموا) دی او کلمه د اول (مِن) ابتدائیه ده ای کلما رُزقوا مرزوقاً ناشیاً من الجنة. او من الثانیة دپاره د بیان دی. او دواړه په ځای کې د حال دی.

نو حاصل دمعنا دادی: (کل حینٍ اُطعموا مرزوقاً ناشیاً ومبتدأ من الجنة

**وذالك المرزوق ثمرةٌ)**

**فائدة** : مراد د (ثمرةً) څخه يو فرد د ميوې نه دی مراد يعني يو سيب يا يو انار وغيره، بلکه مراد نوع د ميوې ده يعني انار، سيب، انګور، کيله، ختکۍ و امثالها من الثمرات.

**سوال** : چي دوی څرنګه وايي چي (**هذاالذی رُزقنا من قبل**) او سره ددي چي (مارزقنا) خو دوی خوړلي دي او دا حاضر مرزوق خو موجود دي؟

**جـواب** : چي عبارت د قرآن پاك د قسمه څخه د (زيدٌ اسدٌ) دی يعني مبالغه ده په تشبيه کي او اصل داسي وو: (**هذا مثل الذی آه**) بيضاوي، روح البيان ، مظهري.

**پوه سه!** چي په (من قبل) کي اختلاف دی. اکثر مفسرين رح وايي چي مراد (من قبل فی الدنيا) دی يعني دوی ته چي انګور يا انار مثلاً دپاره د خورك راوړه سي، دوی وايي چي دا خو هغه انګور يا انار دي چي موږ په دنيا کي خوړله. نو حاصل د آيت دادی چي ټولي ميوې د جنت په ظاهر رنګ لکه ميوې د دنيا دي، که څه هم په خوند او مقدار کي تر ميوو د دنيا ډيري بالا دي. حکمت دخدای جل سلطانه په دي کي دادی چي په اول وهلت کي جنتي د هغي ميوې څخه چي په دنيا کي يې نه خوړلي او نه ليدلي وي منع ونه کړي، ولي طبع دداسي شي څخه چه نه يې وي خوړلي نفرت کوي. په ګمان ددي چي دا به مُضر شي وي او طبع انساني وه مالوف شي ته مائله وي. او بل حکمت الهي دادی چي دوی ته دا معلومه سي چي د دنيا انګور مثلاً څونه په خوند کي او مزه کي تر انګورو د جنت څونه کښته دي. او دجنت انګور څونه په خوند کي پر بالا

دي وهکذا انار چي په جنت کي وخوري فضیلت به يي تر انارو د دنيا ورته ښکاره سي. وعلی هذا فقس غیرهما من ثمرات الجنة.

او دغه رنګه دوی خو انار په دنیا کي لیدلي وو او مقدار يي ور معلوم وو چي مثلاً د یوه سړي کفایت یي کاوه او د جنت انار مثلاً دونه لوی دي چي په یوه دانه يي مثلاً د لسو کسانو کفایت کيږي او دغه رنګه نوري میوې.

**سوال** : نو پر تقدیر مذکور خو انګور د جنت جنتیانو په دنیا کي لیدلي وه؟

**جواب** : هو، انګور چي دوی په دنیا کي لیدلي وه هغه ډیر په خوند کي او په مقدار کي تر انګورو د جنت کم دي. فصدق انها لاعين رئت.

**وعلی هذاالقیاس** غیر د انګورو نوري میوي د جنت چي جنتیانو په دینا کي لیدلي او خوړلي وي.

**یوه سه!** چي پر تقدیر د قبلیت فی الدنیا د (کلما) لفظ پر عموم باندي صحیح دی. یعني په اوله میوه کي چي دوی يي په جنت کي خوري هم دا دوی ویلای سي **هذا الذی رُزقنا من قبل یعني فی الدنیا**.

**فائدة مهمة** : درویش وايي چي قبلیت د دنیا پر تقدیر یو سوال او جواب سته چي هیڅ تفسیر د تفاسیرو مروجه وو څخه نه تصریح په کړیده او نه اشاره.

**سوال** : دادی چي د مځکي په هر کونج کي مسلمانان موجود دي او په بعضي وطنو کي بعضي میوي سته یا ډیري یا لږ. او بعضي میوي په هغه خای کي وجود نه لري او نه د هغه خای مسلمانانو خوړلي وي او نه

بي ليدلي. او په بعضي اقطارو کي بيا بل بعضي ميوي وي او بل بعض بيا نه وي. مثلاً په بعضي اوطانو کي انګور، انار، إنځر، سيب وغيره وي چي مسلمانانو د هغـه وطنـو خـوړلي وي او بعضـي ميـوي لکـه کيلـه، مالتيه، نارنج وغيره بيـا نـوي چي دهغـه وطـن مسـلمانانو نـه وي خـوړلي بلکه ليدلي يي لا هم نه وي، ولـي چي په اوسني کلو کي چي وسـائل د رسيدو د ميوو من السيارات والطيـارات وغيرهـا د يـوه وطـن ميـوي وبـل وطن ته رسيږي سل کاله دمخه چي دا وسـائل نـه وه او د يـوه وطـن ميـوي نورو وطنـو تـه نـه رسـيدي، نـو هغـه مسـلمانان د نـړۍ د ټولـو اطرافـو او اکنافو چي سل کاله بلکه پنځه سوه کاله تر اوسنۍ سنه دمخـه مـړه وي او جنت ته په ورځ د قيامت ور سي او خداى ﷻ دى ورولي ځـنګـه بـه دهغـي ميوي چي دوى پـه دنيـا کي نـه وي خوړلي بلکـه ليـدلي يـي هـم نـه وي د احضار په وخت کي دا ويلاى سي چي (هذاالذي رُزقنا في الدنيا)؟

**والجواب عنـه** : چي پـه هر وطن کي مـالوف او غيرمـالوف يعني خـوړل سوي ميوي او ناخوړل سوي ميوي په هر عصر او زمانه کي او په هر وطـن کي وجـود لـري. نـو د هـر وطـن و مـسـلمانانو تـه پـه جنت کي هغـه ددوى مـالوفي ميـوي ور وړه کيـږي او دوى دا ووايـي(هذاالـذي رُزقنـا من قبـل) يعني فـى الـدنيا ترڅـو چي دوى د جنـت د ميـوو سـره اُلفت پيـدا کـړي. وروسته چي نوري ميوي چي دوى نه وي خوړلي په دنيا کي هم دا ويـلاى سي چي هذا الذى رُزقنا من قبلُ يعني فى الدنيا، ولـي تـا دمخـه واوريـده چي مراد په قرآن کريم کي (مثل مارزقنا من قبل) دى نو د مـالوفو ميـوو پـه بـاره کي مثليـت فـى النـوع مـراد دى او د غيرمـالوفو ميـوو پـه بـاره کـي مثليت فى عدم الضرر کي مراد دى. يعني هذا اى الغير المالوف مثل ما

رزقنا من قبل فی الدنیا فی عدم اضرر قیاساً علی المالوف الماکول والله اعلم بالصواب.

او بعضي مفسرينؒ لکه قاضي بيضاوي ﷫ د قبليت څخه قبليت فی الجنت هم تجويز کړی دی. دی وايي چي دجنت ميوي سره متشابه الصورت دي مع تخالف النوع. يعني سيب د جنت په شکل او په صورت کي سره د انارو مثلاً مشابهت لري. وهکذا نوري ميوي د جنتؒ لکه چي حسن البصري ﷫ چي وايي يو جنتي ته چي خادم الجنت يوه ميوه راوړي لکه سيب چي رنګ د انار وي او انار هغه جنتي دمخه خوړلی وي نو جنتي ورته وايي: (هذا الذی رُزقنا من قبل) يعني دا خو هم انار دی، نو ملکه ورته ووايي چي کُلْ فاللون واحدٌ والطعم مختلفٌ يعني وخوره چي رنګ که يي څه هم يو دی. يعني د سيبه سره لکن خوند يي مخالف دی يعني خوند يي د انار دی مثلاً. او په دي تشابه کي حکمت الهي دادی چي عظيم قدرت خپل و جنتيانو ته ښکاره کي او اظهار د تعجب د جنتيانو دی.

**سوال** : چي پر دي تقدير خو (کلما) پر خپل عموم نه پاتيږي، ولي تر ټولو اول ميوه چي جنتيانو ته راوړه سي، نو دوی به څرنګه وايي چي (هذا الذی رُزقنا من قبلُ) يعنی فی الجنة اِلاَّ ان يُحمل عموم (کلّما) علی غير المرة الاولی حملاً علی الاعم الاغلب فی الجنة.

# وَاُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا

**پوه سه!** چي پر اول تقدير يعني چي قبليته في الدنيا مراد سي، ضمير د (به) راجع و (مارزقوا في الدارين) ته راجع دی يعني مارزقوا في الدنيا والآخرة سره متشابه دی په نوعه کي يعني انګور، انار، انځر، سيب وغيره.

او د بيضاوي پر تجويز ضمير راجع دی و (مارزقوا في الجنة) ته او دا جمله معترضه ده د معطوفينو تر مابين.

**فائدة** : ابن عباس رض او مجاهد رحمه الله ددي آيت ترجمه داسي کوي : (متشابه دي په رنګو کي او مختلفي دي په خوندو کي) او حسن بصري رحمه الله او قتاده رحمه الله وايي چي ميوي د جنت يو دبله سره مشابه په ښه والي کي يعني دجنت ميوي ټولي ښي دي، خرابي نسته پکښي لکه د دنيا په ميوو کي يعني چي خرابي پکښي سته. درويش وايي چي دا دواړي ترجمي تائيد د تجويز د بيضاوي رحمه الله کوي کمالايخفى.

**فائدة جديدة** : امام بغوی رحمه الله په خپل تفسير کي د جابربن عبدالله رضی الله عنه څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايله چي اهل جنت يأكلون و يشربون : يعني جنتيان خوړک کوي او څښل کوي. ولايبولون: او بولي نه کوي، چي د څښلو سره په دنيا کي تعلق لري. ولايتغوّطون: او غټي بولي نه کوي چي په دنيا کي د خوړلو څخه پيدا کيږي. ولايمتخطون: او د پزو څخه يي ګرنګک هم نه راوزي. ولايبزُقون: او ناړي هم نه توکي يُلهمون الحمد والتسبيح كما يُلهمون النفس: او دوی ته الهام د حمد ويلو او د

تسبیح ویلو کیږي لکه چي الهام د ساه کښلو چي ورته کیږي یعني لکه په ساه کښلو سره چي سړی په دنیا کي نه ستړی کیږي، جنتیان په حمد ویلو او تسبیح نه ستړي کیږي بخلاف الدنیا. طعامهم جثاءٌ: خوړك د دوی په تیغو سره هضم کیږي. ورشحُهُمْ المسكُ: او دخولي یي د مشکو بوی خي. یعني په خوله سره یي د بولو چاره کیږي. رواه مسلم فی صحیحه بشارةٌ.

قاضي بیضاوي رحمه الله او تفسیر مظهری ددي آیت مبارك یوه بله معنا په زړه پوري ذکر کړي ده بان یکون المعنی هذا یعني د جنت دغه میوې چي په نوع او په خوند کي سره مخالفي دي. ثوابُ الذی رُزقنا من قبلُ فی الدنیا من المعارف والاعمال. ثوابونه دي دهغو عباداتو چي موږ ته یي توفیق دکولو راکړه سوی وو په دنیا کي د معارف الهیه وو او اعمالو حسنه و لسانیه او بدنیه او مالیه و یعني لکه زموږ هغه اعمال متخالف النوع وه کالاعتقادات الحقة والحمد والتسبیح اللسانی والصلوة والزکوة او معنوي خوند یي هم سره مخالف وو. او پر دي تقدیر د تشابه څخه مراد دادی چي د هر عبادت ثواب د هغه عبادت وقد ورد فی الحدیث النبوی صلی الله علیه وسلم إن الجنة طيبة التربة: په تحقیق د جنت خاوري ډېري پاکي دي یعني خوړي د ښری څخه خلاصي مځکي دي. عَذبة الماء: او شیریني اوبه یي دي. وانها قیعان: او مځکه د جنت د درختو څخه یعني د میوه دارو درختو څخه خالي ده. وانَّ غراسها هذه: او درختي د جنت دغه دي: سُبحان الله والحمدلله والله اکبر. یعني د هر حمد او تسبیح او تهلیل

په سبب سره یوه میوه داره درخته په جنت کي پیدا کیږي په قدرت الهي سره.

**فائدة** : نفس دخول د جنت په فضل او جود او کرم دخدای جل سلطانه دی یعني مومنانو ته او درجات د جنت او میوه داري درختي د جنت او حوري وغلمان دجنت اوگلان و ریحان د جنت په اعمالو پوري د مومنانو مربوط دي. که ډیر عبادات وکړی ډیري لوړي درجي او نور مذکوره نعمتونه به ډیر مومي او که يي عبادات لږ وه، ثوابونه به يي لږ وي. د مثال په توگه یو پاچا د مملکت یوځای لويه واله وکاږي او ډیري مځکي چي پخوا به په خړوبه کي وي او تر هغه واله لاندي راولي. او هغه مځکي پر رعایاو خپل په مساوي توگه وویشي او مفتي يي ورکړي او رعایاو ته چي دايي مځکي دا يي اوبه . اوس نو تاسي پوهیږي او آبادول دخپلو مځکو. نو بعضي پوهان او اقویا خلک په دغه مفت ورکړي مځکه کي په خواری او زحمت سره ښه باغ جوړ کړي د انگورو یا د میوو مثلاً او ښه د گلانو باغچي جوړي کړي او د کښت دغنمو وغیره دپاره مځکه ښه ودان کړي. لږ موده وروسته ټولي درختي پر میوو راسي، نو دغه سړي خپل د لاسو په خواری ښي ښي میوي تر لاسه کړي او د کښت پر مځکو غنمي غنمي رشي يي په برخه سي. او يو سړی چي جاهل او ټمبل وي په هغه مځکه خواری نه کاږي او لاسونه پکښي نه زهیروي آخر الامر هغه مځکه خندي بي حاصله چمن سي.

ولهذا قال من قال ولنعم ماقال :

بقدر الكدّ تكتسب المعالي     ومن طلب العلى سهر الليالي

تروم العزّ ثم تنام ليلاً     يغوص البحر من طلب اللآلي

از نصائح پیر خردمند و در راه خداﷻ هوشمند و در معرفت خداوند پایه بلند خواجه عبدالله انصاری قدس سره اینست بگوش هوش بشنو! میگوید:

هر که به ده خصلت شعار خود سازد در دنیا و آخرت کار خود سازد

۱: باحقﷻ بصدق ۲: بانفس بقهر ۳: باخلق بانصاف ٤: بابزرگان بخدمت

٥: باخردان بشفقت ٦: بادرویشان بسخاوت ۷: بادوستان بنصیحت

۸: بادشمنان بحلم ۹: باجاهلان بخاموشی ۱۰: باعالمان بتواضع

در اخیر میگوید:

درخانه اگر کس است یك حرف بس است.

**وَلَهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ**

**او دوی لره یعني جنتیانو لره به جنت کي ماینې یعني ددنیا او حورې د جنت سته چې هغه ښه پاک شده وي دهغو شیانو څه چې د ښځې دپاره عیب وي، خواه عیب حسي وي لکه حیض او نفاس او بولې او منې او ترګګ او خیره دبدن او ولادت. او یاطبعي وي لکه سوء خلق یا میل وغیر ته د خپلو ازواجو.**

---

**پوهـه:** چې ازواج جمع د زوج ده. نر او ښځې دواړو ته ویل کیږي کمافي قوله تعالی (اُسکن انت وزوجك الجنة). او هر هغه شي ته هم وایې چې دخپل جنسه څخه ملګری لري لکه زوج الخف یعني د موزې بل پل.

**فائدة:** (مطهرة) ابلغ دی تر (طاهرة یا متطهرة)، ولې چې د مُطَهَّرَةٌ معنا داده چې یو پاکوونکی دوې پاکې کړې کما یقتضیه صیغة المفعول من باب

التفعیل ولیس المطهّر الا عزوجل. په بل قرائت کي مطهرات په صیغه دجمعي راغلی دی. بیضاوي رحمه الله وایي چي دغه دواړه لغت فصیح دي. داسي ویل کیږي : النساء فعلت وفعلن وهُنّ فاعلةٌ وفاعلاتٌ وفواعلُ.

**سوال** : فائده د خوراکي غذاء دبدن او د لوږي ضرر او تکلیف دفع کول دي. او فائده د ماینو زیږیدل دعیالو او حفظ د نوع انساني ده او دي شیانو ته خو په جنت کي ضرورت نسته لانها دارالخلد والبقاء لادار الفناء.

**جواب** : مطعومات د جنت او منکوحات د جنت او ټوله احوال د جنت د امثالو سره دهغو په دنیا کي صرف شراکت په بعضي صفاتو کي لري، نه په ټولو احوالو کي. مثلاً په دنیا کي د مطعوم فائده خوند او لذت او غذاء د بدن وه. په جنت کي فائده یوازي خوند او صرف او لذت او خوند او قضاء الشهوت ده. وهکذا باقی نعیم الجنة.

قاضي بیضاوي رحمه الله وایي وتُسمی باسمائها علی سبیل الاستعارة والتمثیل ولا تشارکها فی تمام حقیقها هی تستلزم جمیع مایلزمها وتفید عین فائدتها انتهی. خفاجي رحمه الله په شرح کي د بیضاوي وایي کما اشار الیه سیدالبشر صلی الله علیه وسلم بقوله مالاعین رئت ولا اذن سمعت آه.

وَهُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٥﴾

او دوی به په جنت کي همیشه پاته وي. یعني دوی لره فناء سته او نه خورِ دفناء.

**پوه سه!** چي دعکرمه ﷺ څخه روایت دی چي جنتیان ټوله نر اوښځي به د ۳۳ کالو په عمر کي وي او جګ والی یي شپیته ۶۰ ګزه وي یعني پر قامت د ابوالبشر آدم علیه السلام او نر به یي ټوله بي ږیري وي او پر بدن به وریښتان نه وي بي له بانوګانو او ورخو. سترګي به یي لکه په رنجو توري وي. الخ روح البیان مع زیادة.

**پوه سه!** چي خلود او خلد په اصل لغت عربي کي ډیر زمانه درنګ ته وایي. که دوام او همیشه توب ورسره وي او که نه. ددي کبله لوټکیانو د مالدارو چي دوي تبخي یا کټو پر باندي کوي خوالدوایي، ولي دغه مالداران چي د یوځاي څخه بار سي لوټکیان یي ډیره زمانه پر هغه ځای باقي وي. او څکه د انسان زړه ته خُلد وایي. ولي چي زړه په اندازه د عمر د انسان که څه هم د نوح علیه السلام عمر وي پر خپل حال حرکت پاته وي او ربړدي نه.

محقق بیضاوی ﷫ وایي چي که چیري وضع دخلود دپاره د دوام وای، نو قید د (ابداً) وروسته تر خلود فی قوله تعالی (خالدین فیهاابداً) به لغوه وای. لکن درویش داسي نه وایي، بلکه وایي چي قید د (ابداً به تاسیس نه وای، بلکه تاکید به وای. او په آیت شریف کي دلته مراد خندي همیشه توب دی. په دلیل د نورو آیتو او د متواترالمعنی حدیثو. کما هو الظاهر لمتتبع الآیات القرآنیة والاحادیث النبویة. او سره د هغه یوه

گمراه ډله چي جهميه يي بولي دخلود څخه د جنتيانو په جنت کي منکر دي. او دغه رنګه د خلود څخه د کافرانو په دوږخ کي هم منکر دي. او دوی داسي وايي چي وينا (اوهن من بيت العنكبوت) دي. والتفصيل فى الخفاجى شرح البيضاوى

درويش وايي چي دخلود په معنا سره هغه إشكال دفعه سو چي د بعضي كبائر ګناهو سره خالدين راغلى دی. ولي د هغه خلود څخه مكث طويل مراد دی.

پـوه سـه! چي لويه برخه د لذاتو حسيه وو په استقراء سره حصرده د اوسيدو په ځايو كي يعني چي يو سړی اعلى درجه بنګله او كوټی لري او پر خوراكي شيانو يعني يو سړی ورجي، غوښي او نور خوندور ماكولات خوري او پر ماينو يعني چي يو سړی ډيري ښائستي مايني لري، لكن دغه ټوله نعمتونه چي د مرګ بيره د سړي سره ورسره وي او يا د زوال د نعمتو فكر ورسره ملګری وي، عاقل سړي ته د زهرو ډك دي او بي خونده دي، حتى چي مملكت د ټولي دنيا لكه د سليمان عليه السلام هم بي خونده دي. نو خدای جل سلطانه د جنتيانو دمانيو او قصور بيان په دي آيت كي وكی (ان لهم جناتٍ تجرى الآية) او د مطاعمو بيان يي په دي آيت كي وكړی (كلمارُزقوا الآية) او د ښو ښو ماينو بيان په دي آيت كي وكړی: (ولهم فيها ازواج) آه. آخر يي د جنتيانو د زړه څخه د زوال ددغو نعمتو، په سبب دمرګ ددوی په زيري سره د (هم فيها خالدون) وايستله. نو جنتيانو ته خوشحالي پر خوشحالي او سرور پر سرور په برخه كړي. فلله الحمد ارزقنا ونعمنا آمين.

خواجه عبدالله انصاری رحمه الله چي خوش ميفرمايد:

الهی این زندگانی نیست بلکه غذاشت ✣ واین نه عمراست بنیادی بر آب است
اگر نظر عنایت تو نباشد کار خرابست ✣ الهی ما در دنیا معصیت میکرده ایم
اگر دوست تو محمد اندوهگین ✣ می شُد ودشمن تو ابلیس شاد
ودرقیامت عقوبت کني ✣ باز دوست تو اندوهگین شود ودشمن تو شاد
الهی دوشادي بدشمن خود مده ✣ ودو اندوه بدل دوست خود نه
الهی اگر پرسي حجت نداریم ✣ واگر سوزي طاقت نداریم

لله دَره مااحسن دُره.

درویش وایي چي لوی سبب د گمراهی په دنیا کي ثروت او غنا ده.

قال الله عزوجل : إنَّ الانسان لیطغی° ان رآه استغنی) لوی دنیاداران و فقیرانو ته او علماوو ته او اهل الله ته په نظر د حقارت ګوري. او د دنیا په ډیریدو کي نه د ربوا څخه او نه د معاملاتو فاسده وو څخه مخ اړه وي. شراب خوري او زنا هم په ډیري دنیا پوري مربوط دی اِلاَّ مَن عَصِمه الله تعالی. شیطان یي په کولو سره دیو نفلي خیرات غر وګرځوي او ګناه کبائر یي په نظر ډیر بنائیسته وګرځوي او په زړه کي دا وسوسه ورواچوي چي تاخو خیرات وکړی، نو ستا کبائر ګنهونه په سبب دخیرات تاته بخښي . او سره ددې چي دکبائرو ګنهو بخښه په توبه پوري اړه لري.

حاصل داچي ابلیس قسم قسم حیلي لري. په نفلي کارو مسلمانان د فرضي کارو څخه یا د واجبو کارو بلکه د سنتو کارو څخه مشغوله کړي. او مسلمانان باید پوه سي چي نفلي کارونه او عبادات نه د فرضو خای نیولای سي او نه د واجبو خای نیولای سي. بلکه د سنتو اجراء هم نسي ویلای. اول فرض او واجب او بیا سنت او مستحب کارونه وروسته نفلي.

# اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ اَنْ يَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا

په تحقیق خدای ﷻ نه پرېږدي بیان د یو مثال په غوماشه اوپه هغه شي چي تر هغي بالا وي.

---

**پوه سه!** چي په روح البیان کي وایي چي حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله وایي چي څه وخت خدای پاك په قرآن پاك كي دمشركانو دخدایانو په باره كي وويل : (وإن يسلبهم الذباب شيئاً الآية) او د مشركانو د چمو مثال يي په عنكبوت سره ووايه، نو يهودانو وخندل او وي ويل چي عنكبوت او مچ د كلام سره دخدای هيڅ مناسب نه دی. نو دا آيت نازل سو.

نو آيت كه مدني دی، سوال كوونكي هم ذ مديني يهودان وه، لكن پر دي تقدير دا آيت د ماقبله سره هيڅ كار نه لري، ولي چي عنكبوت او ذباب او بعوضه د مخ په آيتو كي نه دي راغلي. نو ځكه فراء نحوي وايي چي په سورت بقره كي داسي شئ نسته چي دا آيت دي جواب سي، بلكه ابتداء كلام دی ددمخه سره ارتباط نه لري.

درویش وایي : كه څه هم دا آيت مستقل بلل او د ماقبله سره بي ارتباطه ګڼل خو روا دي. لكن مفسران ډير دا وايي چي د هر آيت سره مناسب داده چي د ماقبله سره په يو وجه سره ارتباط ولري. نو ځكه مظهري د ابن جرير رحمه الله څخه داسي روايت رانقل كړی دی چي څه وخت چي خدای ﷻ د منافقينو په باره كي دوه مثاله وويل (مثلهم كمثل الذی استوقد ناراً ، او كصيبٍ الآية) نو منافقانو وويل چي دخدای ﷻ د شانه سره مثالونه نه ښايي . نو دا آيت نازل سو.

او د بیضاوي میل ودي ته دی چي څه وخت چي مثالونه په دمخو آيتو کي ذکر سول په دي آيت کي خدای ﷻ حکمت د مثالو ويلو بيان کړی، قطع نظر ددي څخه چي منافقانو سوال کړی يا نه . او هغه چي په بعضي تفاسيرو کي راغلي دي چي څه وخت چي خدای ﷻ د خدايانو د مشرکانو او ددوی د کيدو مثال په ذباب او عنکبوت سره ووايه، نو مشرکانو وويل چي خدای ﷻ څرنګه عنکبوت او ذباب ذکر يعني دخدای دلوی شانه سره ددغو خسيسو شيانو ذکر کول مناسب نه دي. نو دا آيت نازل سو. داسي شان نزول بيانول غلط دي عقلاً او نقلاً.

اما عقلاً دا آيت خو په مدينه منوره کي نازل دی او مناظره د مشرکينو سره خو په مکه مکرمه کي وه.

و امانقلاً ددي شان نزول روايت خو عبدالغنی کړی دی د ابن عباس رض څخه او عبدالغنی ډير ضعيف سړی دی کما قال المظهری.

**فائدة** : پوه سه چي په مثال کي شرط دادی چي موافق به وي د مُمثل له سره يعني دهغه شي سره چي څوك يي مثال وايي په عظمت کي او په صِغر کي او په خِسّت کي اوبه شرف کي او د مُمثل سره يعني د مثال ويونکي سره يي مناسبت نه دی شرط. لکه د کافرانو چي ګمان وو. يعني هغه مثالونه چي ذکر سول دوی به ويله چي داسي مثالونه خو د خدای جل سلطانه سره مناسب نه دي، ولي چي غرض په تمثيل يعني مثال ويلو کي دادی چي معقول شی لکه محسوس وګرځي او همداسبب دی چي امثال په کتب الهيه وو کي ډير دي او په عباراتو کي د بُلغاوو هم بيخي ډير دی او دغه رنګه په عباراتو کي د حکماوو هم بي نهايت ډير دي. نو مثال د عظيم په عظيم سره ويل کيږي او مثال د حقير به په حقير سره که څه هم مثال ويونکی تر هر عظيم اعظم وي لکه خدای جل سلطانه.

امام رازی رحمه الله په خپل تفسیر کي وايي چي خدای پاك په انجیل شریف کي د عداوت د زړه په سپوس سره ویلي دي. د انجیل ترجمه:

(یا ایها الناس لاتکونوا کالمُنخل یخرج منه الدقیق الطیب وکیمسك النخالة کذالك انتم تخرجون الحکمة من افواهکم وتبقون الغل فی صدورکم) یعني اي خلکو تاسي داسي مه کرځئ لکه غلبیل چي صاف وړه باسي او سپوس ساتي. دغه رنګه تاسي ترخوله د حکمت او شریعت خبري باسئ او حقد او حسد مو په خپلو سینو کي خوندي ساتلي دي. او دغه رنګه انجیل د سختو زړو چي په نصیحت سره نه نرم کیږي. په ډبره سره ویل دي. د انجیل ترجمه:

(قلوبکم کالحصاة التی لاتطبخها النار ولاتلینها الماء) یعني سخت زړونه لکه ډبري دي چي په اور نه پخیږي او نه په اوبو لزم کیږي. او دغه رنګه په انجیل شریف کي د بي عقلانو سره بحث کول لکه سړی چي د غالبوزو خای ولټوي او وي کاروي. د انجیل ترجمه:

(لاتثیروا الزنابیر فتلدغکم کذالك لاتتخاطبوا السفهاء فیشتمونکم) یعني تاسي مه کاروئ غالبوزي چي په نیښ به دي ووهي. دغه رنګه د بي عقلانو سره بحث مه کوئ چي بیابه ښکنځل درته وکي او بي آبه به مو کي.

**فائدة**: حیاء چي په پښتو یي شرم هم بولي، د خواصو څخه د انسان ده چي معنا یي داده چي د انسان نفس قبض سي یعني منع سي د یو کاره څخه چي دده شهوت خو یي غواړي چي وکړي. لکن چونکه هغه کار مذموم شرعاوي نو دی منع خندي وکړي په سبب د حیا او شرم دخدای ﷻ او خلکو څخه لکه زنا، لواطت وغیرهما نو څکه حیاناکی سړی فاسق

نسي کیدای. او فاسق حیاناکه نه کیږي.

او خجل چې په پښتو یې شرمندګي بولي. حیرت او دهشت دی چې سړي ته د ډیري حیا وریپښیږي، نوداسي فعل نسي کولای چې په عادت کي خو بد وي که شرعاً هم بد وي کما مر او که شرعاً بد نه وي لکه ګوز یا ټسکی په مجلس کي.

**تفریع** : نو حیا ښه صفت دی او میانه درجه ده په مابین د وقاحت چې سړی پر قبائحو شرعیه و دلاور وي او پاك نه په کوي او دخجل چې روا کار شرعاً هم په بعضي وخت کي نسي کولای. کمامرّ من انفلات الریح عند الناس. کذافی البیضاوی، والخفاجی ناقلاً من الراغب الاصفهانی اللغوی رحمه الله.

**پوه سه!** چي حیا په حقیقي معنا مذکور سره دخدای ﷻ صفت نسي کیدلای لمامرّ انّه من خواص الانسان ولکونه من مقولة الانفعال فهو بمعنی الترك اللازم للمعنی الحقیقی، نو معنا د آیت داده چي خدای جل سلطانه نه پریږدي بیانول د مثال په بعوضه وغیرها سره. کما ورد فی الحدیث ان الله یستحیی من ذی الشیبة المسلم ان یعذبه. نو معنا د حدیث داده چي خدای ﷻ ترك د عذاب د سپین ږیري مسلمان کوي. وهذا ما اخرجه البیهقی فی الزهد عن انس رضی الله تعالی عنه.

**پوښتنه** : په آیت شریف کي خدای پاك لفظ د حیاء استعمال کړی او سره ددي چي حیا خو خاص په ترك القبیح پوري ده او ضرب المثل خو قبیح نه دی.

**جواب** : هو، لکن لفظ د حیاء په مقابل کې د قول د کفارو استعمال سو چې دوی به ویل چې خدای ددغو امثالو څخه حیاء نه لري. او ددوی په دماغو کې همدې خبرې قرار درلودی. نو حیاء ویل په مثال دهغه آیت دی (وجزاء سيئةٍ سيئةٌ بمثلها) او سره ددې چې جزاء د سیئه څو سیئه او بد کار نه دی. لکن مشاکلةً یې د جزاء څخه په سیئه تعبیر وسو فتدبر فی الفرق بینهما.

**ترکیب الآیة** : لفظ د (إنَّ) په اصطلاح د نحاتو د حروف مشبه بالفعل څخه دی چې اسم یې منصوب وي او خبر به یې مرفوع وي، نو لفظ د (الله) منصوب دی، اسم د (إنَّ) او جمله د (لایستحیي) مرفوع محلاً خبر د (إنَّ) ده او (اَنْ یَضرب) مجرور محلاً دی په نیز د امام النحاة خلیل بن احمد رحمه الله په تقدیر د (مِن) او په نیز د سیبویه رحمه الله چې هغه هم امام النحاة دی منصوب محلاً ده یعني پر طریقه د حذف او ایصال.

او لفظ د (ه) مثلاً مفعول دی د یضربُ او کلمه د (ما) ابهامیه بولي یعني یو مثال د مثالو. فائده یې داده چې نکیرې ته ابهام ډیروي او هغه نکیره چې دغه (ما) ورسره وي قید نه قبلوي. او بعضې مفسرین وایي چې کلمه د (ما) زائده ده ونکیرې ته قوت ورکوي. او لفظ د (بعوضةٌ) ماخوذ دی د بعوض څخه چې وزني فعول دی، نو په (بعوضة) کې تاء د وحدت ده، لکن مراد ځنې بیخي کوچنی غوماشه ده. او بعوضه عطف بیان دی د مثلاً او یا مفعول دی (یضرب) دی او (مثلاً) حال دی مقدم او یا لفظ د یضرب په معنا د یجعل دی او مثلاً و بعوضةً یې مفعولان دي کذا فی المظهری.

او لفظ د (مافوقها) عطف دی پر (بعوضة) او د (فوقية) څخه مراد بالاوالی دی په بدن کي تر (بعوضة) لکه عنکبوت، نو معنا د آیت داده چي خدای ﷻ نه پريږدي ضرب مثل په بعوضه سره فضلاً عما هو اکبر منها. او بعض مفسران رح وايي چي مراد فوقيت په حقارت او جثه کي دی لکه وزر د غوماشي.

چنانچه په صحيح حديث کي راغلي دي چي که دنيا قدر د غوماشي د ور درلودای نو کافر ته به شُرب يعني يو غړپ د اوبو نه وای ورکړی.

درويش وايي چي همدا سبب دی چي اوس هم مسلمانان په ټوله نړۍ کي په نسبت د کفارو د ضيق العيش په دام کي دي الاّ من كان على قدم اليهود والنصارى كمالايخفى على المتتبع.

**لطيفه**: امام ابومنصور رحمه الله وايي چي پر قدرت الهي او پر وحدت کردګاري په مخلوق کي د خدای جل سلطانه بعوض او ذُباب دی، ولي سره سره د بيخي کوچني بدن ددوی خدای ﷻ هغه اعضاء او اندامونو ورکړي دي چي کبير الجسم لکه فيل ته چي يې ورکړی دی. يعني خوله او پزه او سترګي او پښي او لاسونه او دخوراك د تيريدو ځای او د فضله د وتو ځای، حتی که د دنيا ټوله حکماء او پوهان سره غونډ سي په دغسي کوچني جسم کي بې تصوير هم نه وکړي. يعني د مذکوره اعضاء او اندامو. نو هغه اعضاء چي په جسم کبير کي لکه فيل خدای ﷻ پيدا کړي په غوماشه او مچ کي هم پيدا کړي دي. بلکه وزرونه د مچ او د غوماشي د پروازار قدرت په فيل کي نسته و الاعجب من ذالك چي مخرۍ سره د ډيره قوته چي خدای ﷻ ورکړی دی لکن په زړه کي دونه جبن او بزدلي خدای ﷻ ور اينبي ده چي د انسانانو څخه بيريږي. او انسانانو ته نژدي لا

نه اوسیږي. او مچ او غوماشي ته خدای ﷻ دونه دلاوري ورکړي ده چې
سره ددي چې انسانان یې په لاسو او نور آلاتو د ځان څخه شړي او دوی نه
ځني کراریږي او نه ځني بیریږي او که چیري مخری دلاوري درلودای لکه
د مچ او غوماشي خلک به یې تولـه هلاک کړي وای. لکن د قدرت الهي
نظام مخري ته په زړه کي بیره د انسانانو پیدا کړه او مچ او غوماشي ته
یې دلاوري ورکړه.

**یوه سه!** چې مچ زموږ پر سترګو او پزه ولاړیږي او کښیني نو ډیر مو
تنګ کړي او پر ډېرو لذیذو خوړو ناست یو او یا په ښو ګلانو کي ناست
یږ هغه په سوړ پوري مچ اوږ کړي. نو عجیبه داده چې موږ هغه کارونه
کوو چې سبب د اور د جهنم ګرځي او په هغه اور کي به لړمان او ماران هم
وي، نو دهغو سره به زموږ عیش او ژوند څرنګه وي؟ اعاذنا الله جل
سلطانه برحمته وکرمه من عذاب النار.

**قصة** : هارون رشید ؒ یوه ورځ دجمعي خطبه ویله چې مچ پر پزه دده
کښینستی. ده وشاړه، مچ بیرته راغلی پر سترګه یې کښینستی ده بیا
په لاس وشاړه. خو هکذا د هارون رشید خطبه مچ ور بې خونده کړه. خیر
چې لمونځ یې وکړی او کورته ولاړی نو یې ابوالحسین د اهل بصري شیخ
یې راوغوښتی چې څه حکمت دی دخدای چې مچ یې پیدا کاوه؟ شیخ
ورته وویل چې یو حکمت الهي دادی چې متکبران ب مچ ذلیل کړي
هاوون ورته وویل (صدقت) او هغه شیخ ته یې لویه جائزه ورکړه یعني
انعام.

**یوه سه!** چې عرب ډیر عجب امثال لري. مثلا د یو حریص سړي په باره
کي وایي چې فلانی ډیر جمع کوونکی دمال دی تر میږي. ددوی دا زعم

دی چې میږدی د اوو ۷ کالو خورکه سره جمع کوي. او وايي چې فلانی سړی دلاور دی تر مچ . ولې چې دمخه تېره سوه چې مچ د مخري پر پزه او سترګو کښېني . او وايي چې فلانی سړی ډیر اوري تر منګوړ. عرب دا وايي چې منګوړ د اوښانو د پښو تړپی اوري د اوه ۷ میله څخه. او بعض وايي چې اوه شپې او ورځې چې د اوښانو او منګوړ تر مابین وي . او دوی وايي چې دفلاني کلان ساله عمر تر مار ډیر دی. دوی ګمان لري چې مار بيله قتله د يو چا نه مري ، هرڅو عمر چې ژوندی وي. او دغه رنګه عرب وايي چې څوك چې ډیر کلان ساله سي چې د فلاني سړي عمر تر منګوړ بالا دی. مبالغةً. ددوی دا ګمان دی چې منګوړ اوه سوه کاله عمر درلودلای سي. درويش وايي چې والله اعلم چې عرب دا خبري دڅه درکه څخه کوي. او دوی د بې ثباته او بې قراره سړي په باره کې وايي چې فلانی سړی بیقراره دی تر پتنګ . یعني پروانه. او شی چې نه پیداکیږي عرب وايي چې فلانی شی نادر دی تر مغزو د هډوکو دغوماشي. وهكذا غير ماذكرنا من الامثال المضروبة لهم .

**پوه سه!** چې ددغو مثالو نقل د بیضاوی او روح البيان څخه دی. حاصل الکلام چې د امثالو ويل په کتب الهيه وو کې حکم او مصالح لري چې عاقلان خلك په پوهيږي.

درويش وايي :

خدایا ای خدایا ای خدایا + ترحم کن ترحم کن گدارا
ز شوم نفس خود غرق گناه است + بغفران یادکن این بینوارا
نجاتی ده زشر دشمن خویش + کرم فرما بحال باگاه را

بندانز این غریب از چشم رحمت ✤ عبدالله هم گوید خدایا
ومیگوید:
اگر بهر موی دو صد هنر باشد ✤ هنر بکار نیاید که بخت بد باشد
اگرز کلك قلمران گهر همی بارد ✤ به هیچ کار نیاید که بخت نگون باشد
ومیگوید:
که هنوز بگو که دنیا بي گمن است ✤ هنوز بکوکه دروازه عمل بازاست
وهنوز بشنو پند واعظ که شنویدن برجا است ✤ وهنوز بخواه که دروازه باز است
وهنوز عذر کن که دروازه غفران واز است. اللهم وفقني لماتحب وترضی

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ
وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا

خدای جل شانه دپاره د تفصیل داسي وايي: هرچه هغه کسان دي چي ایمان يي پر خدای او پر رسول کريم ﷺ او پر قرآنٰ وي، نو هغه يقين کوي چي دغه مثل (قرآني) که په عنکبوت وي که په مچ وي او که په غوماشه وغيره وي، حق او ثابت او پرخای دی د جانب ځخه د رب ددوی. ولي چي تولـه امثال قرآنيه د ممثل له سره برابر دی او هرچه هغه کسان دي يعني مشرکين او يهود وغيرهم چي کافران دي هغه وايي چي څه اراده لري خدای ﷻ په دغه شي سره از روی (مثل) يعني دا مثل دخدای ﷻ دخوا نه دی.

---

ترکيب الآية : کلمه د (فاء) دپاره د تفصيل د حال د سامعانو د امثال قرآنيه وو ده. او (اما) دري فائدي لري يوه فائده تفصيل د اجمال دی. او بله فائده يي متضمن معنا لره د شرط دی. ځکه په جواب کي يي فاء راځي غالباً. او بله فائده يي تاکيد د جملي دی چي په (اما مصدره) وي. او (اما) حرف دی. اسم نه دی. وهو مذهب المحققين. او حرف شرط نه دی و إلاّ لزمها وقوع الفعل بعدها. وباقي التفصيل في البيضاوي وحواشيه.

او (فيعلمون) جواب د (اما) دی. (انه) مفعول د (يعلمون) دی او ضمير راجع دی و ضرب المثل ته . او (من ربهم) حال دی د ضمير ځخه چي په حق مستتر دی. چي راجع و ضرب المثل ته دی (ای کائناً من ربهم). او (ما) استفهامي دی. او (ذا) په معنی د (الذی) دی او (اراد الله) يي صله و

موصول خبر دی. او (مثلاً) منصوب دی. حال دی د (هذا) څخه. ای ممثلاً. هذا ما فی البیضاوی و روح البیان والمظهری وغیرها.

**پوښتنه** : په مقابل کي د قول د مومنانو یعني (فیعلمون) آه باید د کفارو په قول کي داسي ویل سوي وای : (فلایعلمون انه من ربهم).

**جواب** : هو، لکن خدای جل سلطانه مذکوره عبارت یعني (فیقولون) آه راوړی، ولي چي دا قول ددوی دلیل واضح د جهل او عدم علم ددوی دی. نو پر طریقه د کنایي یعني ذکر د ملزوم او مراد خندي لازم ذکر کړی. او په کتابو د علم المعانی وایي چي کنایه ابلغ ده تر صریح. ولي چي کنایه دعوی د شي ده سره د دلیله فافهم . درویش

يُضِلُّ بِهِۦ كَثِيرًا وَيَهْدِى بِهِۦ كَثِيرًا وَمَا يُضِلُّ بِهِۦٓ إِلَّا ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٢٦﴾

گمراه کوي خدای ﷻ په ضرب مثل سره ډیر خلک او یهدي یعني هدایت ورکوي په ضرب مثل سره ډیرو خلکو ته. او نه گمراه کوي په ضرب مثل سره مگر نه فاسقان. یعني د امر الهي څخه منکر کسان.

---

**پوه سه!** چي دا دوي جملي جواب د (ماذا) دي او نسبت د اضلال چي معنا یې خلق د ضلال ده وخدای ﷻ ته په اعتبار ددي دی چي خالق د افعالو د بندگانو خدای ﷻ دی که څه هم په اعتبار د کسب د ضلال او هدایت فعل د بندگانو دی کماهو مذهب اهل السنة والجماعة.

**پوښتنه** : استفهام خو دلته پر خپل حقیقت نه دی، ولي چي جواب ته د

استفهام خو په قول کي د مستفهم ضرورت سته، او خدای پاک ﷻ خو مستفهم نه دی ولي چي (ماذا اراد الله) آه خو حکایت دی د قول د مشرکانو او یهودیانو دی، نو په قرآن کي جواب ته څه ضرورت سته.

**والجـواب** : چي استفهام په قول کي د کفارو استفهام انکاري دی، نو مراد ددوی دادی چي په مثال ویلو کي په محقراتو شیانو هیڅ فائده نسته، نو خدای ﷻ پر دوی رد وکړی په (يُضِلُّ) آه سره نو د جواب څخه مراد جواب معنوي دی یعني رد ددوی د قول. كذا في حواشي البيضاوي

**پوښتنه** : یا به اهل ضلال ډیر وي یا به اهل هدایت ډیر وي، نو دواړه به څرنګه په کثرت سره یاد کړه سوه.

**جواب** : مراد د ډیروالي څخه د دواړو طائفو کثرت نسبت یو و بل ته نه دی چي کثرت اضافي یي بولي، بلکه مراد کثرت د دواړو طائفو دی په خپل ځان کي چي کثرت حقیقي یي بولي. ولاشك ان كلاً من الطائفتين كثير في نفسها.

**پوښتنه** : کلمه د (ماذا) مفرد او اسم دی، نو په جواب کي هم باید اسم راغلی وای ، ای اضلال كثير و هداية كثيرٍ؟

**جـواب** : قاضي بیضاوي رحمه الله تفسیر د (يُضِلُّ) او (يهدی) په مصدرين مذکورینو سره کړی دی. او مظهري یي هم متابعت کړی دی.

**پوښتنه** :تفسیر د فعل مضارع په مصدر سره څرنګه روا دی؟

**جواب** : چي (أن) مصدري ورسره مقدر دی او یا بیله حرف مصدري هم مضارع په معنا د مصدر راغلي بتجريد الفعل عن النسبة والزمان كما في

قول الشاعر: تسمع بالمیعدی خیرٌ من ان تراه. ای سمعك

**پوښتنه**: د مصدر څخه په فعل سره تعبیر کول په کلام کي د بلیغ نکته غواړي، نو دلته څه نکته ده؟

**جواب**: نحات وایي چي مضارع پر استمرار تجددي دلالت کوي، نو په تعبیر د مضارع کي دا فائده او نکته ده چي دغه اضلال او هدایت په ضرب الامثال د قرآن مبارك به جاري وي مستمراً.

**پوه سه!** چي فسق په لغت کي خروج ته وایي. چنانچه ویل کیږي (فَسَقَتِ الرطبة اذا خرجت عن قِشرها). او فسق په اصطلاح کي د شرع شریفي کولو ته د ګناه کبیري وایي. او فسق لره دري۳ درجي دي.

اعلی درجه یي کفر دی. بمایجب الایمان به، ولي چي کفر علی تفاوت درجاته اعظم د کبائرو دی. وهوالمراد بالفسق په ډیرو آیتو کي.

او دوهم درجه یي انهماك الکبائر دی یعني په کبیره ګنهو کي ډوب والی. یعني چي کبیره ګنهونه په بي پرواهي سره کوي.

دریمه درجه یي کول د کبیره ګناه دی او یا همیشه کول دي د صغیره ګناه، سره د بدبللو په زړه کي وهذا اقرب الی التوبة. کذا فی القرطبی والبیضاوی والمظهری والتفسیر الکبیر وغیرها من التفاسیر.

درویش وایي چي مقابل د فاسق عادل دی. نو د فاسق اول مقابل نفس مومن دی او د فاسق ثانی مقابل هغه مومن دی چي په بي پروایي سره کبیره ګنهونه کوي. او د فاسق ثالث مقابل عادل هغه مومن دی چي پر ګنهو تائب وي.

الَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ

فاسقان هغه کسان دي چي ماتوي او پريږدي او مخالفت کوي د وعدي ځخه دخداى ﷻ يعني چي خداى ﷻ ددوى ځخه اخستي وه دُ ايمان او ترک العصيان، پس له ټينګولو ځخه د وعدي يعني په قبول سره ددوى

**فائـدة** : ميثـاق مصدر ميمي دى په معنا د توثيق دى. او ضمير د (ه) راجع دى و عهد ته.

**فائدة** : (الذين) صفت دى د فاسقين. نو که مراد د فاسقينو ځخه کافران وي نو دا صفت موضحه دى يعني بيان ددوى د فسق دى او دپاره د ذم ددوى دى مثل اعوذبالله من الشيطان الرجيم. او که مراد د فاسقينو ځخه معنا عام وي يعني چي کافرانو او ګناه کارانو د مسلمانانو ته هم شامل وي. نو (الذين) صفت مقيده دى. يعني مسلمانان په باسي.

**فائدة** : د (نقض) معنا (فسخ) او خلاصول د مرکب شي و اجزاوو ته د هغه وايي. او په لغت کي ډير استعمال يې په خلاصولو د تارو د رسى دى.

**پوښتنه** : عهد خو مرکب ذوالاجزاء نه دى، نو ځنګه استعمال د نقض په عهد کي روا دى؟

**جواب** : عرب و وعدي ته مجازاً (حبل) وايي. نو ماتولو ته د وعدي بې نقض ويل مبني دى پر مجازي استعمال د (حبل) په وعده کي.

**پوه سه!** چي عهود الهيه دري ۳ دي. يو ۱ عهد دى چي خداى ﷻ د ټولو بندګانو ځخه. کـه کافران دي کـه مسلمانان دي اخيستى دى. په

ورکړه د عقل یعني چې خدای ﷻ ټولو بندګانو ته عقل ورکړی، نو ګویا په دغه عقل ورکولو یې ددوی څخه وعده واخیسته چې په دغه عقل سره به تاسي فکر په دلائل کې د توحید د خدای ﷻ او د تصدیق د رسولانو علیهم السلام کوی، ولې چې دغه دوي مسئلي عقل په کښې کافي دی. کماقیل:

ګر انبیا هم نامدي نې شرع بودي درجهان

واجب شدی برمردمان ایمان بخالق مقتدر

او بیا رب جل وعلا توثیق ددغه حُجت وکړی په را استولو د معجزاتو پر انبیاء علیهم السلام او په انزال الکتب سره.

**پوه سه!** چې ناقضین ددي عهد هغه کافران دي چې یا صانع عالَم نه مني لکه دهریان حیث یقولون **مایهلکونا الاالدهر**. او یا دخدای ﷻ سره شریك فی الذات یعني په وجوب الوجود کي وایي لکه ثنویه چې دوی وایي چې عالَم لره دوه صانعان: یو خالق الخیرات دی چې دوی وایي چې د هغه نوم یزدان دی او بل خالق المضرات دی چې هغه دهرمن یا شیطان وایي.

او یا دخدای ﷻ سره شریك فی العبادات وایي لکه بُت پرستان یعني مشرکان. **وهذا العهد الماخوذ بالعقل هوالمراد فی قوله تعالی: (واشهدهم علی انفسم).**

۲: او بل عهد دی چې ماخوذ دی د امتو څخه په واسطه د ارسال الرسل. هغه عهد دادی: که تاسي ته داسي رسول راغلی چې دهغه په معجزاتو سره تائید سوی وو. تاسي به یي تصدیق کوی او متابعت به یي کوی او حال به یي دپاره د اغراضو فاسده وو نه پټوی او حکم به دهغه منی. کما

فی قوله تعالی : (وإذ أخذالله میثاق الذین اُوتوالکتاب) آه او ددي عهد ماتوونکي یهود او نصاری او منافقین وي حیث کتموا حال النبی ﷺ لاغراض فاسدۃٍ یعني حب المال والجاه والجلال.

۳: او بل عهد دی چي د علماو څخه د هر دین اخیستـه سوی دی چي دوی به حق بیانوي او نه به یي پټوي. کماقال الله (وإذ اخذالله میثاق الذین اوتوالکتاب الآیة) او ناقضین ددي عهد علماء د اهل کتابو دي.

**پوه سه!** چي بعضي ملایان د اخیري زماني دپاره د نقودو تر لاسه کولو دپاره اویا د جاه وجلال د حفظ دپاره د حق په بیانولو کي پاته راغلي دي.

**فائدة** : نقض العهد ډیر لویه ګناه ده. د مالك بن دینار رحمه الله چي برجسته ولی الله وو روایت کوي چي دده د اکاخوی ډیر ظالم وو. نو یو وخت ناجوړی سو. نو دخدای ﷻ سره یي وعده وکړه او پر خان یي نذر کړه که زه ددي ناجوړی څخه خدای ﷻ جوړ کړم، نو زه به ددي ظالم حکومت څخه لاس پر سر کښیږدم. هغه چي خدای ﷻ جوړ کړی او څو ورځي وروسته بیرته په هغه ظالم حکومت کي شامل سو. څه زمانه بعد بیا ناجوړی سو. بیایي پرخان نذر او دخدای ﷻ سره یي عهد وکړی که ددي ناجوړی څخه خدا ﷻ جوړ کړم بیا به زه په دي ظالم حکومت کي برخه وانه خلم. خو خدای ﷻ جوړ کړی . څو ورځي وروسته بیرته په هغه ظالم حکومت کي خپل پخوانی چوکی ته ورغلی. او په دي پلا یي په ظلم کي تر اول وار او تر دوهم وار ډیر شدت تـه اوړه ورکړه. اخیر الامر پـه داسي سختي ناجوړی مبتلاء سو چي و علاج ته یي د وخت طبیبان عاجزه پاته سول. او د ناعلاج زیری یي ورکړی.

نو مالك بن دينار رحمه الله يي په دريمي سختي ناجوړی د اكا دخوی خبر سو نو د پوښتني دپاره د هغه كور ته ورغلی. نو چي د اكاخوی يي په ډيره مهلكه ناجوړي كي وليدی، نو يي داسي ورته وويله: يابُنَيَّ! كه ته يوه كبيره ګناه لري دهغي څخه توبه وكاږه او دخدای ﷻ سره عهد او پيمان وكړه او پر ځان يي نذر كړه چي زه به بيا دا ګناه نه كوم. شايد چي ته به ددي ناجوړی څخه خلاص سي.

نو مريض ورته وويل چي زه دخدای ﷻ سره عهد او وعده كوم كه زه ددغي ناجوړی څخه خدای ﷻ جوړ كړم، زه به بيا په دي ظالم حكومت كي برخه نه اخلم او جدي استعفاء به وركړم.

نو مالك بن دينار رحمه الله چي دمريض اكا دخوی دپاره اراده د شفاعت وكړه په دربار كي د رب العزت. هاتفي غيبي آواز يي واوريدی. (يامالك انا قد جرّبناه مراراً فوجدناه كذوباً فلاينفعه نذره فمات من المرض المذكور كذا في روضة العلماء) قال المولوی المعنوی رحمه الله في المثنوی:

نقض ميثاق وشكست توبها موجب لعنت شود در انتها

**پوښتنه** : په حديث شريف كي راغلي دي چي يو بنده مسلمان چي ګناه وكړي او بيا توبه وكاږي خدای ﷻ ګناه وربخښي. او كه بيا هغه ګناه ته عود وكړي او بيا توبه وكاږي خدای ﷻ يي ګناه بيا ورمعافوي، حتی چي په ورځ كي اويا واره عود وكړي او توبه پر كاږي خدای ﷻ يي قبلوي، نو د مالك بن دينار رحمه الله د اكا د خوی توبه ولي پر دريم وار رد سوله؟

**جواب** :مراد په حديث شريف كي توبه د صدق او اخلاص ده او د مالك بن دينار د اكا دخوی توبه د نفاق سره ملګري وه. نو ځكه رد سوله فلامنافات بينهما. يعني توبه يي صرف د ناجوړه د دفع دپاره وه لكه

دخدای ﷻ سره چي چم کوي کما قال الله فی حق المنافقين فی العهد النبوی (يخادعون الله ورسوله) الآية

وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ اللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ

او دوی يعني فاسقين قطع کوي هغه شی چي امر کړی دی خدای ﷻ په هغه شي چي دا جوت کړه قطعه يي مه کوه.

---

**پوه سه!** چي جمله د (يقطعون) آه عطف ده پر جمله د (ينقضون) يعني صله بعد الصله د الذين ده. او (ان يوصل) بدل دی د ضمير مجرور څخه د (به) والمعنی چي خدای ﷻ امر کړی دی ودوی ته چي تاسي ايمان د ټولو انبياء عليهم السلام د ايمان سره جمع کړي. يعني پر ټولو نبيانو عليهم السلام ايمان راوړی او داسي ووايا ست (لانُفَرِّقُ بين احد من رسله) لکه موږ مسلمانان چي وايو او سره د امر الهي دوی يعني فاسقان د اهل کتابو وايي (نؤمن ببعض الانبياء ونکفر ببعضٍ مثلاً) اهل التورات يعني يهود وايي چي موږ عيسی عليه السلام په نبوت نه منو او نه انجيل کتاب الله بولو او دغه رنګه محمد عليه السلام نه نبي بولو او نه قرآن کتاب الله کڼو. وهکذا النصاری.

# وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ ۚ

او دوی فساد کوي په مځکه کې په سبب د ګنهو او د کفر په علیه السلام او قرآن سره. او دغه رنګه یهود د مديني منوري چې به د مسلمانانو پر کښت ورغله هغه ته به يې اور واچاوه "ويهلكون مواشيهم".

**پوه سه!** چې هره ګناه کبیره سبب د فساد في الارض ده حتی که د مسلمانانو ډیر خلک په کبائرو اخته سوه. خدای ﷻ یا قطع د بارانو پر کوي او یا یې دبله سره په قتل او قتال اخته کوي او یا دښمن یعني کافران پر مسلطه کوي چې ددوی وینې به تویوي. او کورونه به یې ور خرابوي الی غیر ذالك.

# أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٢٧﴾

او همدغه کسان دي خطاوتلي او په تاوان کې، ولې فساد یې رانیوی او صلاح او ایمان پر علیه السلام او پر قرآن سره یې پریښوی. او بل جنت او ثوابونه د آخرت یې په دوږخ او عقوبت بدل کړه. او صلاح یې په فساد بدله کړه. تر دې لوی خسران به نو څیري وي؟

**پوه سه!** چې هر مومن او کافر په جنت کې ځای لري. یعني که کافران تول مسلمانان سي، نو به په جنت کې ځای وای. نو کافران چې دوږخ ته ولاړل نو ځایونه په میراث مسلمانانو ته پاتیږي. وبالعكس في النار. وذالك للكفار خُسرانٌ مبين وللمؤمنين بشارة عظيمة اللهم اجعلنا من اهل البشارة لامن اهل الخسران.

**فائدة** : څه وخت چي خدای جل وعلاشانه په تیرؤ څو آیتو کي حالات د کفارو بیان کړه او ددوی خبیثي خبري یې هم بیان کړي، نو اوس پر طریقه د التفات د غیبت و خطاب ته یې دوی مخاطب کړه او په استفهام انکاري یې دوی ته خطاب وکړی په (**کیف تکفرون الآیة**) سره.

**پوه سه!** چي انکار د وقوع څخه د کفر نه ده، ولي چي کفر خو ددوی څخه واقع دی، بلکه په معنا د انکار دی پر فعل واقع چی کفر دی. یعني حالات آتیه خو سبب د کفر نه دی، نو باید ددوی څخه کفر نه وای واقع سوی، نو استفهام د استبعاد د کفر ددوی هم دی او دپاره د تعجیب د عقول سلیمه وو ددوی و کفر ته هم دی.

حاصل دا چي خدای جل سلطانه کفارو ته وایي چي په اول الامر تاسي عناصر اربعه واست او بیاغذا د مور او پلار په بدن کي وګرځیداست او بیا د غذا څخه اخلاط اربعه جوړ سو. یعني وینه او ژړ او بلغم او سودا جوړه سوه. او دهغو اخلاطو څخه نطفی په پلار او مور کي پیدا سوي. او هغه نطفی پس له استقراره په رحم کي د مور وروسته علقه وګرځیدي. او د علقي وروسته مضغة جوړه سوه، او وروسته تر هغه په قدرت الهي ټوله اعضاء د بدن پر خپلو خپلو ځایو مرتب سوه او اجساد بلا روح پیدا سوه. او وروسته بیا روح په جسدو کي پُو سوه یعني پیدا سوه. نو پس له جمادیت احیا وګرځیدلاست او بیا وروسته تر انقضاء د اجل الحیوة بیرته روح درڅخه ولاړی او اموات وګرځیداست. او بیا په (**یوم نُفخ فی الصور**) کي بیرت مو روحان وه بدنو ته راځي او ژوندي کیږئ. نو تاسي ووایاست چي کم حال ددغو حالات مذکوره وو څخه سبب د کفر او شرک ستاسي وګرځیدی؟

كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَكُنتُمْ أَمْوَاتًا
فَأَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ (۲۸)

ترجمه: پرڅه کیفیت تاسي کفر او انکار د وحدانیته څخه د خدایﷻ کوئ او تاسي واست ابتداءًا مړه. یعني بي روح شیان کما مر اوخدایﷻ تاسي ته ژوند درکړی په رحم کي دمور یعني متصل په امواتاً سره، ولي چي په مابین کي د موت سابق او د روح پوه کلو فاصل نسته لهذا عطف بالفاء. او وروسته تر انقضاء الآجال بي بیرته مړه کړاست. چونکه د حیات اول او د موت ثاني تر مابین زمانه د عمر فاصل ده نو څکه بي عطف په (ثم) د تراخي وکړی. او بیا وروسته ژوند درکوي په آخرت کي او دا هم متراخي دی. او بیا خدایﷻ ته دپاره د جزاء راجع کړه کیږئ

---

**فائدة** : مفسران رح د (ثم یحییکم) څخه ژوند د قبر اخلي، دپاره د سوال د (مَن ربك ومن نبيك ومادينك) نو دوی په دي سره دفع دهغه سوال کوي چي بعضي منکران د عذاب القبر وایي چي خدایﷻ په دي آیت کي یو حیوة الدنیا ذکر کړی او بل حیوة الآخرة او په مابین کي بل حیوة یعني د قبر نه کړی ذکر، نو معلومه سوه چي حیوة فی القبر دپاره د سوال د نکیر او مُنکر نسته.

حاصل د جواب دادی چه د حیوة ثاني څخه مراد حیوة د قبر دی. دوی دلیل دا وایي چي که مراد حیوة في الآخرة وای نو عطف په (ثم الیه ترجعون) سره نه صحیح کیدی، ولي چي تر حیوة اخروي وروسته بلا فصل زمان رجوع وخدایﷻ ته د حساب دپاره کیږي.

**پوښتنه** :د موت دوهم او د حیوة القبر تر مابین خو فاصل نسته، نو څرنګه (ثم یحییکم) عطف په (ثم) صحیح کیږي.

**جواب** : د دوهم موت او د حیوة القبر تر مابین زمانه فاصل سته وهو زمان الغسل والتکفین والتجهیز والدفن وهذا القدر من الفصل یکفی للعطف بثم لان التراخی مقولٌ بالتشکیك کمالایخفی. او بعضي مفسرین رح مراد د حیوة ثاني څخه حیوة اخروي بولي.

**پوښتنه** : نو عطف د (ثم الیه ترجعون) په (ثم) د تراخي سره څرنګه صحیح کیږي؟ ولي چي دا وړاندي تیره سوه چي تر حیوة ثاني وروسته دستي رجوع وخدای ﷻ ته کیږي.

**جواب** : دغه مفسران رح د رجوع څخه و خدای ﷻ ته رجوع وثواب او عقاب ته اخلي. نو د رجوع الی الله په دي معنا او د حیوة ثانی تر مابین طویل ورځ د حساب فاصل ده. چي ډیر لوی وخت دی کما ثبت فی الآحادیث النبویة ﷺ .

**پوښتنه** : حیوة القبر خو ددي آیت څخه ددغو مفسرانورح پر تقدیر نسو ثابت ؟

**جواب** : پر دي تقدیر خو حیوة القبر په آیت مذکوره کي نه سو ذکر وعدم الذکر لایدل علی العدم فی الواقع او عذاب القبر خو په احادیث صحیحه چي تقریباً متواتر المعنی دي په صحاح سته وو کي ثابت دی.

**پوښتنه** : سوق د آیت مذکوره یعني (کیف تکفرون الآیة) خود دوو شیانو

دپاره دی. یو اظهار د قدرت عظیم الهیه دی او بل بیان د نعیم ربانیه وو دی، نو موت ثاني که د قدرت الهي لوی دلیل دی لکن نعمت نو څرنګه دی؟

**جواب** : نعمت والی په دي دی چي موت وسیله ده و نعمي خلیده وو ته د آخرت . یعني جنتونه ومافیها مما لاعین رئت ولا أُذُنٌ سمعت ولاخطر علی قلب بشرٍ کما ورد فی الحدیث عن خیر البشر صلی الله علیه وسلم.

**پوښتنه** : دکفارو دپاره خو موت ثانی وسیله د وقوع ددوی په سقر کي ده. فکیف یکون نعمة لهم؟

**جواب** : داخو په سبب د سوء اختیار ددوی کفر لره پر ایمان وفی المثنوی

بس رجال از نقل عالم شادمان ئهر بقایش شادمان این کودکان

او په شروحو کي د مثنوی داسي هم راغلي دي چي حضرت مولانا روم رحمه الله چي په وخت کي د زکندن خدای جل سلطانه عزرائیل په ده ولیدی. نو ده مبارك داسي ورته وویل:

پیش تر آیش تر جان من پیك در حضور سلطان من

**پوښتنه** : مشرکانو ته که څه هم موت اول خو معلوم وو او دارنګه حیوة اول هم ور معلوم ووا و موت ثاني هم ورمعلوم وو لکن د حیوة ثانی څخه که قبر وي او که آخرت وي خو دوی منکر وه او د رجوع څخه وخدای ﷻ ته هم منکر وه نو حیوة ثانی څرنګه خدای ﷻ ودوی ته ذکر کړی

**جواب** : بیضاوی رحمه الله وایي چي چونکه دوی قادر وه پر علم د حیوة ثانی او پر علم د رجوع وخدای ﷻ ته په سبب د هغو دلائلو چي خدای ﷻ ودوی

تـه درولـي وه پر قـدرت خپـل پر دغـو دوو کـارو بانـدي هم پـه انفُس کي ددوی او هم په آفاقو کي کـه دوی د عقل سلیم څخه کـار اخیستی وای نو دغـه قـدرت پر علم مذکـور یي پرخـای د علـم ددوی ودراوه. نـو دوی لـه عـالمان بالامرین یي وبلل. خصوصاً چي په آیت مذکوره کي هم دلیـل سته پر علمینو مذکورینو بانـدي یعنـي احیـائهم اولاً ولـي چي خـدای ﷻ قـادر پراحیاء اوله دی. لکه دوی چي هم مني، نـو هغـه خـدای ﷻ قـادر پر احیاء ثاني هـم دی لأنَّ بدء الخلق لیس باهون علیه من اعادته (ولئن سألتهم من خلقهم قالوا الله العزیز الحکیم)

**پوه سه!** چي تفسیر مظهري ددي آیت په تفسیر یو تصوفي تفسیر کړی دی چي د فهم څخه یي علمـاء اکثـره عـاجزه پاتـه دي. طالبـان او عـوام خـو پریږده. نو درویش دهغه تر بیـان عـدم بیـان خیـر وبالـه نو ځکه یي صَرف نظر کړی لأنه ورد فی الخبر (کلّموا الناس علی قَدَرِ عقولهم حتی لایکون فتنةً لهم) فافهم

# هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا

خدای ﷻ هغه څوک دی چي ستاسي دپاره يي پيدا کړي دي هغه شيان چي په مځکه کي دي ټوله.

---

**پوه سه!** چي (لام) د (لکم) دپاره د نفعي دی. او دا بل نعمت دی دخدای ﷻ دټوله مخلوق دپاره. او مراد د نفعي څخه عامه ده. که دنیاوي نفع وي لکه خورك، اغوستل، سپريدل، چنبل او نور ورته شيان که دا نفع بالذات وي او که بالواسطة وي.

او که اخروي او معنوي نفع وي يعني په دين کي چي دليل به يي وګرځوی پر خالقيت او وحدانيت او قادريت وغير ذالك من صفاته. **قال السعدی الشيرازی** رحمه الله :

برگ درختان سبز در نظر هوشیار هر ورقش دفتریست معرفت کردگار

**پوښتنه** : په وخت د نزول ددي آيت خو ټوله مافي الارض نه وه پيدا کړي خدای ﷻ مثلاً طياره، موټر، توپ او ډير نعم ارضيه او اسلحه. نو صيغه د (خَلَقَ) يعني ماضي صيغيه څرنګه ده؟

**جواب** : روح البيان وايي أی قدّر خلقها يعني تقدير ازلي خو خدای ﷻ کړی وو لوکان خلق بعضها فی المستقبل. په تفسير تيسير کي وايي چي يو د جاهلانو په نامه صوفيانو چي اباحيه يي بولي. چي ددوی مذهب دادی چي سړي ته چي معرفت دخدای او محبت دخدای ﷻ ورته حاصل سي نو دهغه څخه ټوله تکاليف شرعيه ساقطيږي يعني نه ده ته حرمت د شي سته که زنا کوي او که شراب خوري او نور ورته محرمات. او نه دی

مـامور دی په عبـاداتو سـره لکـه لمونځ او روژه وغیرهمـا. دوی وایي اذا تحققت المعرفـة وتاکـدت المحبـة سـقطت الحرمـة وزالـت الخدمـة لأن الحبیب لایکلف حبیبه ما یتبعه ولایمنعه عما یُریده ویشتهیه. او دوی دغه آیت خپل دلیل برلي. دوی وایي (لام) د نفع دی او مراد د نفعي څخه نفع علی العموم والاطلاق ...

درویش وایي چي دا مذهب کفر دی او قائلان یي کافران په اجماع او اتفاق د امت محمدیه اوپه اجماع د ټولو مذاهبو اربعه وو. او په اتفاق د ټولو کتابو د عقائدو دینیه وو او په اتفاق د ټولو مفسـرانو د قرآن عظیم الشان او په اجماع د ټولو صوفیه وو کرامو که اهل سلوك دي او که اهل جذبه دي. دلیل یي دادی چي عارف کبیر او محب اعظم محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم تر آخر پوري د حیات د اوامرِ الهیـه او منهیاتو شرعیه وو بي غمه نه وو. او بل دلیـل یي دادي چي د قرآن عظیم الشان اوامر او نواهی ټوله پر دي مذهب بي فائدي دي.

**فائدة** : بعضي جاهلان کسان چي د فوائدو څخه د خدای ﷻ د مخلوقاتو ناخبره وي وایي چي د فلاني شي څه فائده او فلانی شی خو ضرر محض دی وهکذا. نو دغه جاهلان باید پوه سي. چي خدای جل وعلاشانه د مخلوقاتو تر حیواناتو نباتاتو او نورو مخلوقاتو ټولي فائدي یو خدای ﷻ ته معلومي دي. د حکماوو طبیبانو او د ریاضی والاوو او د اوسنی زماني سائنس دانانو معلومات د هغو فوائدو پای ته نه دي رسیدلي.

دمثال په توګه څه موده وړاندي یعنی پنځه سوه کاله دمخه په اوسپني کي مثلاً پوازي د تبر د چړي د ساتول وغیره فائدي لیدلي وي او د توپ، ټینك، طیاري، موټران او کلاشنکوفو مثلاً او د نورو آلاتو جدیده وو چي

د اوسپنو په ذریعـه لاس ته راغلي دي نوي ورمعلومي. اما قـادر متعال جلت قدرته چي اوسپنه پیدا کوله د ټولي فوائد په اوسپنه کي خدای ته معلومي وي وهکـذا نباتـات زهریـه او حیوانـات مضـره لکـه لـړم، مـار، غونډك وغیره د پخوانی زمـاني خلګو بیله ضرره هیڅ فائده نه پکښي لیدله. لکن وروستني حکماوو او طبیبانو په هغو کي فائده ناکي خواص هم پیدا کړي چي ادویه سُمیه په نامه یادیږي چي په اوسنی زمانـه کي یي هیڅ دواخانه او کلینك والا بیله نسخي د ډاکټر وچاته نسي ورکولای. نو خدای عظمت حکمتُـه چي دغـه زهریري شیان پیـدا کولـه وخدای ﷻ تـه ددغو فوائد معلومات حاصل وو. وهکذا او به د پخوا خلګو په عقیدهپـه اوبو چیښلو او د نباتـاتو او د کښتـو د اوبولو مـثلاً ماسوی بلـه فائده نـه پکښي لیدله یعني د برق بجلی فائده یي نه پکښي لیدله، مګر د اوبـو پـه اول خلقت کي خدای ﷻ په اوبـو کي مـذکوره فائـده ایښـي وه. وعلـی هـذا فقس المخلوقـات الارضیة او مـوږ دا هـم نسـو ویـلای چـي د مخلوقـاتو ارضیه وو فوائدي به د زماني پوهانو پای ته رسولي وي. (ولایعلم جنود ربك الاهو)

**حکایت** : د یو ولـی الله زاهد عابد نقل راغلی دی چي دی یوه شپه د تهجد پر لمانځه ولاړ وو او څراغ ورتـه لګیدی چي یوه خزدکه چي تور رنګ یي دی او اوږدي پښي یي دي او ډیر بدبویه هم ده چي پیدا سوه چي پر څراغ به راغله او د شیخ زاهد د سجدي پر ځای بـه ودریده. زاهد به د سجدي په وخت کي په لاس پوري وهله ، چي دی به رکعت ته ولاړ سو خزدکه به بیرته کرار کرار دده د سجدي ځای ته بیرته راغله. حاصل داچي د شیخ نفـس یي ډیـر ور تـنګ کـړی او ناڅاپـه یي دا ترخولـه ووتلـه چي

خدای ﷻ ددغي خزدکي خو نه ښه رنګه دی او نه یي ښه بوی دی، نو ددي په خلق ستا څه حکمت وو؟ خیر څو ورځي بعد د شیخ زاهد پر لاس یوه کوچنی دانه پیدا سوه او ډیر درد یي کاوه او کرار کرار غټیدله او درد یي په زیاتیدو کي وو. آخر الامر ودي اندازي ته ورسیدی چي د ډیره درده به یي دشپي خوب نسوای کولای. او هرڅه چي د طبیبانو څخه یي علاج وکړی فائده یي نه کوله. درد یي زیاتیدی او پارسوب یي ډیریدی. مریدان او شاګردان یي شپه او ورځ ورته ناست وه. او طبیبانو د جوړیدو امید ور قطع کړی. حاصل دا چي د طبیبانو یي امید وختی نو شافي حقیقي وخواته یي توجه سوه او د رب العزت په دربار کي یي عریضه د شفاء خپله پیش کړه.

خو پخوا زمانه کي به بعضي په نامه طبیبان به پر آسانو سپاره او خورجین به یي پر آس پوري تړلی وو او بعضي دواګاني به ورڅخه وي او په کوڅو به یي نعري وهلي چي که څوك مریض لري زما سره دهر مرض دوا سته. او خلګو به دغه طبیبان تګان بلل. یعني صرف خلك خطاباسي، نه طبیبان دي نه شي. دغسي طبیب د شیخ زاهد مریض په کوڅه کي هم نعره د مریض او د دوا وکړه. شیخ مریض وشاګردانو ته وویل چي تاسي ورسئ او دغه طبیب ماته راولئ ګوندي یوه دواء راکړي. شاګردانو ورته وویل چي استاذه دا خو دکوڅو تګان دي تاته خو موږ لوی طبیبان راوستله او هغه په علاج کي ناکامه سوه. نو دا تګ طبیب به ستا څه علاج وکړي، خو په مقتضی د (الغریق یتعلق بلك حشیش) شیخ اصرار وکړی چي حتماً دغه طبیب راولئ، بعضي شاګردان ورغله طبیب یي راوستی.

طبیب چي راغلی او دشیخ دانه او د لاس پاړسوب یي ولیدی. د شیخ شاګردانو ته یي وویله چي تاسي ژر ژر د دیوالو په بیخو کي وګورئ یو څو داني هغه خزدکي راپیدا کړی چي داسي رنګ یي وي او داسي یي پښي وي او بدبویه هم وي. شاګردانو وخندله چي خزدکي نو څه کوي؟ طبیب چي د خزدکو خبره وکړه د شیخ مریض هغه خپله خبر چي دشپې بي کړي وه ور په یاد سوه یعني په لمانځه کي هغي خزدکي دی په عذاب کړی وو او د خدای ﷻ څخه یي طلب د حکمت وکړی. نو پوه سو چي دا امتحان الهي وو. زما د سوال په جواب کي پر شاګردانو یي ږغ وکړی چي ژر دغه خزدکي پیدا کړی چي طبیب پر دوا برابر سو. حاصل دا چي شاګردانو د یوي خوا او دبلي خوا د دیوالو په بیخو کي څو داني خزدکي ور پیدا کړي. طبیب هغه خزدکي مړي کړي او سره چختاني یي کړي. دشیخ پر دانه یي وتړلي. او ورته کښیناستی. لږ ګړی بعد داني خوله وکړي او نونو او بدبویه اوبه تر داني را ایله سوي. درد کرار کرار ارامیدی. او دانه کرار کرار پاړسوب یي کښته کیدی او شیخ جوړ سو. او دخدای جل شانه حکمت په خلق دهغي خزدکي په تجربه ورته معلوم شو.

**پوه سه!** چي په تفسیر کواسي کي وایي چي ددي آیت څخه دا مسئله هم معلومیږي چي اصل په اشیاوو کي اباحت دی انتهی وقد ایّده صاحب روح البیان، لکن بنه عبارت هغه دی چي بیضاوی رحمه الله ویل دی. هغه و ایي چي اصل په اشیاء نافعه وو کي اباحت دی. دلیل ده بنه والي یي دادی چي په عبارت د بیضاوی قارورات او سموم خارج سوله.

**پوه سه!** چي ددي مسئلي مختلف فیها معنا داده چي په یوه شي کي چي دلیل د حرمت او کراهت نه وي هغه شی مباح دی.

**فائدة** : (جميعاً) حال د موصول ثاني څخه دی.

**فائدة** : هغه ګمراه ډله د اباحيه وو دا هم وايي چي دهرچا شی يعني مال او ماينه وغيرذالك و هرچا ته روا ده او دا آيت يي دليل ګرځولی دی. يعني (خلق لكم مافي الارض جميعا) نو (لكم) ددوی په خوله لام دپاره د نفعي دی او (كم) خطاب وټولو انسانانو ته دی. نو هرشی په مخکه کي وهرچاته روا دی چي نفع په واخلي. ودي ډلي ته اشتراكيه هم وايي معنا دا چي ټوله خلک په ټولو شيانو کي سره برابر دي. کم شی که مځکه وي او که مال، په يوه سړي پوري تخصيص نه لري لکه دا چي د روسانو قانون هم دی.

قاضي بيضاوي دا دليل ددوی په داسي عبارت ور رد کړی دی چي دا آيت يدل على اَنَّ الكل للكلِّ لا ان كل واحدٍ لكل واحدٍ. يعني دا آيت صرف پر دي دلالت کوي چي ټوله اشياء نافعه د ټولو انسانانو دي. پر دي خو دلالت نه کوي چي هرشی د اشياء نافعه وو څخه وهر سړي ته روا دی. نو دا آيت ددي سره منافي نه دی چي بعضي اشياء نافعه دي په بعضي انسانانو پوري خاص وي. يعني بعضي انسانانو ته دي په بعضي اشياء نافعه وو سره نفع ورته روا وي او بل انسان ته دي نفع پر هغه شي روا نه وي، په سبب د اسبابو عارضه وو. لکه چي يو چا مځکه مثلاً رانيولي وي او يا چا ور هبه کړي وي. او يا يوچا يوه ښځه په نکاح غوښتي وي. د امثال ذالك.

قال الله عزّوجل:

ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ

وروسته بیا یې قصد وکړی خدای ﷻ و آسمان ته یعني و خلق ته د آسمان، نو برابر یې کړه او ۷ آسمانونه، یعني پیدا یې کړه مستوي بیله سُستی یعني محکمه او بیله چاکو.

درویش وایي چي په خلق د مځکي و د آسمانو چي کم یو دمخه دي او کم یو وروسته دي قدیماً وحدیثاً اختلاف په مفسرینو کي موجود دی.

**فائدة** : ابن عباس رض او ډیر مفسرین رح د سلفو رح معنا د (استوی الی السماء) داسي کوي (ارتفع) خدای پورته سو و آسمان ته. نو پر دي تقدیر دا آیت د متشابهاتو څخه دی، ولي چي پورته کیدل خو صفت د اجسامو دي. خدای ﷻ جسم نه دی عند اهل السنة والجماعة. نو د قبیلي څخه د (الرحمن علی العرش استوی) دی

او ابن کیسان رحمه الله او فراء رحمه الله او ډیر نحات یې تفسیر داسي کوي ای اَقبلَ وقصدَ الی خلق السماء. پر دي تقدیر آیت پر خپل ظاهر باندي او د تشابه څخه خالي دی. قاضي بیضاوی رحمه الله وایي چي کلمه د (ثم) په دي آیت کي دپاره د تراخي د زماني نه ده. یعني چي خلق د آسمانو دي په زمانه کي وروسته وي تر خلق د مځکي. بلکه دپاره د تراخي د رتبي ده یعني خلق د آسمانو پر خلق دمځکي فضیلت لري، ولي چي آسمانونه اجسام علویه دي او معدن د نیراتو دي. او د تغیر او سستي څخه خالي دي. او په قدرت د خدای جل سلطانه موثر دي په سفلیاتو کي، نو هغه قول سره دخدای ﷻ منافات نه لري چي وایي (والارض بعدذالك دحاها).

ولي چې ددې آيت څه څو تقدم د دحوی دمځکي تر خلق د آسمان ظاهراً فهميږي. او امام بغوی رحمه الله په تفسير کي ددې قول دخدای ﷻ (والارض بعد ذالك دحاها) داسې وايي چي رئيس المفسرين عبدالله بن عباس رض وايي چي اولاً خدای ﷻ مځکه سره د خپلو اقواتو پيدا کړه يعني لکه يو مجمل شی وروسته تر هغه يې اوه ۷ آسمانونه پيدا کړه او بيا وروسته تر هغه مځکه سره وغوړول يعني پراخه يې کړه لکه يو مجمل شی چي وروسته مُفصل کړي او سره ټول شي چي اوار يې کړي. قال المظهری وهو المستفاد من اقوال السلف رح والله اعلم بحقيقة الحال.

**فائدة** : د (دحوي) معنا پر مذهب د سلفورح داده چي خدای ﷻ په مځکه کي غرونه پيدا کړه او رودونه يې پکښي اوبيوله او دريابونه يې پکښي پيدا کړه. او قسم قسم درختي يې پکښي شني کړي، نو په هغه آيت کي (والأرض بعدذالك دحاها° اخرج منها ماءها ومرعاها)آه قوله تعالی (اخرج منها) آه بدل يا عطف بيان دی د (دحاها) اود (دحاها) مراد يې بيان کړی. حاصل داچي ذات د مځکي تر آسمانو دمخه پيدا دی. او دحوه د مځکي بالمعنی الذی ذکرناه آنفاً تر خلق د آسمانو وروسته ده.

**فائدة** : بعضي مفسرين رح تفسير د (ارض) په متعارفه مځکه سره کوي نو مراد د (سماء) څخه آسمانونه دي يعني (سَماء) اسم جنس دی. ټول آسمانونه څني مراد دي. او بعضي مفسرين رح دمځکي څخه جهت د سفل اخلي نو د (سماء) څخه مراد جهت د (علو) دی.

**فائـــدة** : ضميرد (هُن) راجع دی و (سماء) ته چي د (سماء) څخه اجرام علويه مرادسي، ولي (سماء) څوك وايي لفظي جمع د (سمائةٌ) ده.

او زجاج رحمه الله وايي چي لفظ د (سماء) مفرد دی او معنا يي جمع ده يعني يا اسم جنس دی چي اطلاق يي پر کثير او قليل روا دی او يا اسم جمع ده لکه قوم او رهط.

او که چيري د (سماء) څخه جهت العلو مرادسي نو ضمير د (هُن) مبهم دی او سبع سموات يي تفسير دی لکه (ربَّه رجلاً).

**فائدة** : قوله سبع سموات، بدل دی د ضمير څخه د (هُن) چي سماء ته راجع دی کمافی الاحتمال الاول . اويا تفسير دی د (هُن) که ضمير مبهم سي کما فی الاحتمال الثاني.

قاضي بيضاوي رحمه الله سوال کړی دی چي اهل ارصاد يعني الرياضيين خو نه ۹ فلك وايي او په قرآن کي سبع سموات راغلی دی؟ او جواب يي داسي ورکړی دی چي په دلائلو کي د اهل رياضی وو شکوك او شبهات سته. آه يعني د رياضينو دليل دادی چي موږ په خپلو رصدو کي د علوياتو نه ۹ حرکته ليدلي دي. نو د هر حرکت دپاره محرك ضروري دی. لأنها متخالفة قدراً و جهةً، نو محرکات يعني افلاك هم نه ۹ دي . په دي کي شبهه داده چي محقق طوسی وايي چي د نو۹ حرکاتو دپاره اته ۸ فلك هم کفايت کوي او دده شاګرد قطب الدين الشيرازی وايي چي د نو۹ حرکاتو ضبط په اوه ۷ فلکه سره هم کيدای سي. او بعض رياضيين وايي چي ضبط د نو۹ حرکتو په دوه آسمانه سره هم کيدای سي. والتفصيل بما له وعليه په تصريح او په حواشي وو کي د تصريح دی. او په شرح الچغيني کي هم بعض تفصيل موجود دی. وروسته قاضي بيضاوي ويلي دي: که د اهل ارصادو خبره صحيح هم سي نو په قرآن کي خو نفی د زائد عن السبع نه دي راغلي. وقد شاع ان التصريح باسم العدد لاينفی الزائد.

او وروسته يي ويلي دي چي که عرش او کرسی د سبع سموات سره ضم سي، بیا خو اختلاف نسته.

درویش وایي چي دا ضم د عرش او کرسی و آسمانو ته خلاف د شریعت غراء دی او د احادیثو مبارکه وو دی کما تقرر فی محله.

**شکایت** : بعضي حاسدان شاید ووایي چي تا قول د اکتفاء بالثمانیة او اکتفاء بالسبع والاثنین د تصریح او شرح چغمیني څخه نقل کړی. دا خو د کتابو سره د تفاسیرو مناسب نه وو .

درویش وایي چي ته تفسیر مظهري وګوره چي په ورقو تفصیل د اقوالو د راضیینو یي د کتابو څخه د ریاضي نقل کړي دي. زما لره نقل عیب بولي د هغه تفسیرْ ډیر نقل عیب نه بولي. که حاسد ووایي چي ستا تفسیر خو پښتو دی. پښتانه د ریاضي په خبرو څه پوهیږي؟ او تفسیر مظهري خو عربي دی نو علماء خو په ریاضي پوهیږي.

**جواب** : د تفسیر مظهري په منقوله خبرو هم امامان بلکه ډیر علماء هم نه پوهیږي، چي پوره ریاضي دانه نه وي. وعلی تقدیر التسلیم زما تفسیر که په پښتو دی لکن صرف د عوامو دپاره خو نه دی، نو علماء خو زما په منقوله خبرو هم پوهیږي وقدمرْ ذالك الجواب قبل ایضاً.

وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٩﴾

اوخدای پاک په هرشي ښه خبر دی.

**پوهه سه!** چي داجمله په اتفاق د بیضاوي او مظهري اوْ روح البیان لکه دلیل دی پر خلق د آسمانو او مځکي پر دغه نظام اکمل او اصلح. یعني چونکه خدای جل سلطانه د هر شي په ماهیت او حقیقت خبر دی، نو ځکه یي پر داسي نظام عجیب او طرز غریب یي دا نظام سماوي او ارضي قائم کړي. ولي چي د یو فاعل فعل او د یو صانع مصنوع چي مشتمل وي پر حِکَم بدیعه وو او پر منافع کثیره وو چي هرچاته اظهر من الشمس دی. او دچا د عیب ویلو پکښي امکان نه وي او د منافعو څخه یي انکار نه وي، نو هغه صنع عجیب او فعل غریب دلالت کوي پر علم عظیم د فاعل او صانع کمالایخفی علی اولی النُّهی

**پوښتنه** : ابدان د انسانانو چي په خاوره کي سره متفرق سي او په نورو خاورو سره ګډ سي، بلکه کاهي هغه خاوري د بدن انساني خښتي خني جوړي او په دیوال کي کار سي. او یا یو سړی وي چي ماهی وخوري او دهغه غذاء او جزء وګرځي اویا یي درندګان وخوري او دهغو جزء وګرځي، نو دغه انسانان به څرنګه بعینه معاد سي په آخرت کي؟

ددي سوال جواب په دغه آیت کي خدای جل سلطانه ورکړی چي زه په هرشي خبر یم او د هر انسان اجزاء راته معلوم دي. نو جمع کول یي ماته ګران کار نه دی. لکه اول خلق ددغو انسانانو چي دکتم څخه د عدم و عرصی ته وجود ما وکړی. لأن اول الخلق لیس بأهول من الاعادة بل العادة فی صنع البشر ان العادة تکون اهون علیهم من الصنع ابتداءًا.

**فائدة** : مراد د حشره څخه د انسانانو، که کافران وي او که مسلمانان وي، دا نه دي چي هغونه لکه په دنيا کي چي دوی وه پر هغه قدر و قامت او پر هغونه سرو او لاسو او غوښو به حشر کيږي. ولي په حديث صحيح کي راغلي دي چي ټوله جنتيان پر قد د آدم عليه السلام به وي يعني شپيته گزه او دا هم په صحيح حديث کي راغلي دي چي يو غاښ د کافر په جهنم کي لکه جبل اُحُد به وي. او پُنډوالی د پوست د کافر به کذا وکذا گزه وي.

نو بناء على هذا علماء کرام رح وايي چي اصل مُعاد اجزاء اصليه د انسان دي. يعني هغه اجزاء چي د نطفي څخه د پلار پيدا کيږي. لکن (کَم او کيف) به يي ددنيايي اعضاوو سره ډير مخالف وي. کما هو آنفاً من الأحاديث الصحيحة النبوية ﷺ.

**پوه سه!** چي احوال د آخرت د ژوند د عقل د قياس څخه خارج دي. صرف ايمان بما قال الله عزوجل ورسوله ﷺ غواړي.

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً

او ته ورپیاد کړه خلکو ته هغه وخت چې مور وویل و ملکو ته چې زه په ځمکه کې یو خلیفه پیدا کوم.

---

**پوه سه!** چې خدای جل سلطانه و نوعي ته د بشر په تیرو آیتو کې اول نعمت د ایجاد او احیاء ددوی ذکر کی او دهم نعمت یې د خلق د مافی الارض من النعم واللذات او د طاعاتو او عباداتو ذکر کړي.

اوس په دې آیت کې دریم نعمت د ټوله عالم بشري ذکر کوي، ولې چې خلق د ابوالبشر آدم علیه السلام او عزت او اکرام او تفضیل دده پر ټوله عالم ملکوت باندې ، حتی چې ملائکه یې امر کړې په سجده وده ته او ده ته یې اعزاز د خلیفه خپل ور په برخه کړی، دا نعمت دې ویټوله اولاد ته د آدم علیه السلام.

**پوه سه!** چې (إذ) ظرف زمان دی. مبني پر سکون منصوب محلاً مفعول ده (اذکر) مقدر دی.

**پوښتنه** : مقصود خو دلته ذکر دهغو واقعاتو دی چې په دې وخت کې واقع سوي وې یعنې خلق آدم الی آخرالحوادث، نو امر د ذکر کولو د وخت وخلګو ته ولې وسو؟

**جواب** : چونکه وخت مذکور مشتمل پر دغو حوادثو او واقعاتو وو، نو ذکر د وخت ذکر د ټولو حوادثو چې په دې وخت کې وي دي.

**فائدة** : لفظ د (ملائکة) جمع د (ملاك) ده لکه (شمائل) چې جمع د (شمله) ده .او (ملاك) د (مالك) څخه مقلوب دی. یعنې په تقدیم د لام پر همزه. او

مصدر د (مألك، الوكت) دی، چي معنا يي (رسالة) دی، ولي چي ملكي خو رسولان دخدای ﷻ دي. و انبياوو ته بالذات او امتو ته بالواسطه.

**فائدة** : كلمه د (تاء) په ملائكه كي دپاره د ټينګولو د تانيث د جمع، په تاويل د جماعت ده.

**فائدة** : ملكي په نيز د عمومي مسلمانانو اجسام لطيف دي چي قادر پر تشكل دي پر اشكالو مختلفه وو حسب الإرادة په قدرت دخدای ﷻ، ولي چي انبياء عليهم السلام ملكي په صُورو او اجسامو مختلفه وو كي ليدلي دي. او حكماء وايي چي ملكي جواهري مجرده دي د مادي او جسميت څخه . وهذا خلاف الآيات القرآنية والأحاديث النبوية ﷺ

او نصارى وايي چي ملكي هغه پاك نفوس د انسانانو دي اودا مذهب په مذكوره آيت سره مردود دی، ولي نفوس فاضله د انسانانو خو پس له خلق څخه د آدم عليه السلام عالم وجود ته راغلله. نو خدای ﷻ څرنګه مشوره ددوی سره وكړه د آدم عليه السلام په خلافت كي

**فائدة** : ملائكه يو كثير العدد غاية الكثرة مخلوق د خدای ﷻ دي چي (لايعلم جنود ربك الأ هو) او پر مختلفو كارو باندي مُسلطي دي، پر بارانو، پر بادو، پر جنتو، پر دوږخو، پر حفظ دعملو د انسانانو او كتابت دهغو اعمالو وغير ذالك من الامور .

او په مابين دخدای جل سلطانه او د انبياء عليهم السلام وسائط هم دوی دي. او يو قسم د ملكو چي عليون يي بولي هغه مستغرق په معرفت او ذكر كي دخدای دي جل شانه كماقال الله تعالى : (يُسبحون الليل والنَّهار لايفتُرون) او د ملكو په حال كي پاك خدای دا هم ويلي دي:

(لايعصون الله ما أمرهم ويفعلون مايؤمرون).

**پوښتنه** : دغه کومې ملکې وې چې خدای ﷻ ددوی ته دا خبره وکړه؟

**جواب** : بعضي مفسرین ﷭ وايي چې دا مقول لهم ټولې ملکې وې، ولې لفظ د ملائکه وو مطلق دی. او مخصص يې نسته. او مناسب د اظهار سره د شرف د ابوالبشرعليه السلام او د نسل انساني سره همدغه عموم دی. نو پر دې تقدير لام تعريف دپاره د استغراق حقيقي دی.

او بعضي مفسران وايي چې مراد ملائكة الأرض په قرينه ددې چې كلام په خلافت کې دمځکې دی. نو لام تعريف دپاره د عهد دی.

او بعضي حضرات رح وايي چې مقول لهم ابليس او هغه ملکې دي چې د ابليس پـه مشـرتوب يې جنيـات د مځکـې د رياسـت او حکومـت څخـه وشړل.

په تفسیر بغوي کې وايي چې خدای ﷻ آسمانونه او مځکه پیدا کړه او ورسره يې ملائکه او جنيات پيدا کړه. او ملکو تـه يـې سـکونت پـه آسمانو کې ورکړی. او جنياتو ته يې حکمراني د مځکې وسپارله.

نو جنیاتو ډیره زمانه حکمراني د مځکې وچلوله. اخيرالامر ددوی په مابين کې حسداو حب الجاه او بغی پيدا سوه. نـو پـه خپـل مـابين کـې يې قتل و قتال جاري سو، نو خدای ﷻ يو لښکر د ملکو چې د جن په نامه يادېدلې، چې دغه ملکي خازناني د جنتنو وي. نو دوی تـه يـې ځکـه د جنت څخه نوم مشتق کړی. او دجن پـه نامـه سوي، يعني دهغه جنيـاتو د ذات نه وي چې په مځکه کې يې فساد وکړی. او رئيس ددوی د عزازيل په نامه ملکه وه. او دی يعني عزازيل ددوی مرشد وو او لارخود يـې وو. هغه ډله ملکې دخپل مرشد په مشرتوب يې مځکې تـه را واستولې او د

پیریانو سره یي غټه محاربه وکړه او جنیات یي و لویو لویو غرو وخواته او د دریابو د جزیرو وخواته وشړل. نو عزازیل ته مشرتوب د ځمکي او د سماء الدنیا او د خزینة الجنة حاصل سو. نو عزازیل به ګاهی عبادت دخدای ﷻ په ځمکه کي کاوه او ګاهی په اول آسمان کي او ګاهی په جنت کي. آخر ده ته تکبر اوخودبیني په نفس کي پیداسوه. او دا یي خیال سو چي اکرم د ټوله مخلوق دخدای زه یم. نو خدای ﷻ ده او دده په جنګ کي ملګرو ملکو ته و ویل (إني جاعل في الأرض الآية) انتهى قول البغوی بتوضیح.

درویش وایي چي د بغوي د تفسیر څخه دا معلومه سوه چي ابلیس د ذات د ملکو وو، نو ځکه استثناء په متصله د ملکو څخه (سجدُوا إلاّ ابليس) کي صحیح سوه او دهغه آیت تاویل هم ښکاره سو چي د ابلیس په باره کي وایي: (کان من الجنِّ ففسق عن امر ربه) ولي چي مراد د جن څخه هغه جن نه دی چي د ځمکي حکمراني یي اول په غاړه کي وه. بلکه مراد هغه ملکي دي چي دجن په نامه یادیدلي. کمامَرَّ من البغوی آنفاً.

**پوښتنه**: څه حکمت وو دخدای جلت حکمته چي د ملکو سره یي دا موضوع د خلافة الأرض و مشوري ته مطرح کړه او سره ددي چي خدای ﷻ ومشوري ته خو کوم ضرورت نه درلودی لأنه تعالى عالم الغيب والشهادة دی؟

**جواب**: اولین حکمت داوو چي د آدم ابوالبشر علیه السلام د خلافة الارض وملکو ته ښکاره کړي، یعني په سوال او جواب کي د ملکو او د خدای ﷻ تر مابین کماسیأتي.

او دوهم حکمت دادی چې د علم فضیلت یې پر عبادت ثابت سي کما ستعلم فی (وعَلَّم الأسماء کلها الآیة) کې.

او دریم حکمت تعلیم د مشورې دی ټولو انسانانو ته په مُهم کارو کې د نورو اهل الرای سره. نو ځکه خدای جل سلطانه و علیه السلام ته وایې: (وشاورهم فی الأمر فاذاعزمت فتوکل علی الله) او په حدیث کې راغلې دي چې علیه السلام به ډیرې مشورې د اصحابو کرامو﷽ سره کولې.

**فائدة** : (جاعِلٌ) مشتق د (جَعَلَ) ځخه دی چې دوه مفعوله غواړې. یعنې (جَعَلَ) په معنا د (صیرَّ) دی، نو (خلیفةً) یې مفعول اول دی او (فی الارض) یې مفعول ثاني دی یعني کائنا فی الأرض. او شرط د عمل یې موجود دی. یعني اسم فاعل په معنا د استقبال دی. او معتمد پر مسندالیه دی چه په (إنِّيْ) کې (یاء) د متکلم ده. او دا هم روا ده چې د (جَعَلَ) معنا دې (خَلَقَ) وي چې یو مفعول یې شرط دی چې هغه (خلیفة) دی او (فی الارض) حال دی د (خلیفةً) ځخه یعني خالقٌ خلیفةً کائناً فی الارض.

**فائدة** : خلیفه هغه چاته وایې چې قائم مقام د بل چا وي. او کلمه د (تاء) یې دپاره د مبالغې ده أی خلیفةً عظیماً جلیل القدر. نو ځکه جمع یې (خلفاء) راځي لکه (عظیم او عظماء) ولې (فعیل) مذکر پر (فُعلاً) باندې جمع کیږې. او بعضې علماء یې و تانیث لفظي ته ګوري، نو جمع یې (خلائف) بولي لکه (صحیفه او صحائف)

**پوه سه!** چې مراد د خلیفه ځخه آدم علیه السلام دی. او خلیفه یې په دې ویلی چې دی خلف د جن وو په مځکه کې. او یا خلیفه اول په انبیاوو کې آدم علیه السلام وو ثم وثم الی ان انتهی الخلافة الی سیدنا محمد ﷺ.

**پوښتنه** : خدای ﷻ څه ضرورت لري و خليفه ته او سره ددي چي خليفه خو هغه څوك دروي چي يا دی مړ كيږي، نو خپل قائم مقام ودروي. وهو تعالى مُنَزَّهٌ عنه لانه حي لايموت. اويا خليفه هغه څوك دروي چي دی به خوا ته غائبيږي نو بدل خپل ودروي وهو ايضاً محالٌ على الله تعالى لأنه حاضرٌ فی كل وقتٍ. او يا خليفه هغه څوك دروي چي دی عاجزه او ضعيف سي د اجراء څخه د كارو نو خپل كارونه و خليفه ته وسپاري والله تعالى قوي قديرٌ على مايشاء فی كل وقتٍ فما الحكمة فی الإستخلاف؟

**جواب** : خليفه درول په دغو امور مذكوره وو كي حصر نه دی. بلكه سبب د استخلاف الهي دادی چي مُستخلف عليه عاجز وي د قبول د فيض د رب جل شانه بالذات يعني بې له واسطې، ولي چي رب جل شانه په نهايت تنزه اوتقدس كي دی. او مستفيض په تدنس دی او علائقو دنيه وو كي دی غالباً او په قبول كي د فيض مناسبت په مابين د مفيض او مستفيض شرط دی. نو بايد په مابين كي د خدای جل شانه او د انسانانو يو ذی جهتين انسان وي چي په سبب د روح مقدس دخدای ﷻ سره مناسبت ولري ترڅو چي په هغه جهت دخدای ﷻ څخه استفاده او استفاضه وكړای سي. او په سبب د بشريته د نورو كسانانو سره شركت ولري، ترڅو چي په هغه جهت دی افاده ونورو ته وكړي او نور دده څخه استفاده وكړي. وتلك الذوات المقدسة عن الادناس البشرية هم الأنبياء عليهم الصلوة والسلام على تفاوت درجاتهم. او همداسبب دی چي خدای ﷻ و انسانانو ته ملكه په نبوت نه ده را استولي لأن عدم التجانس سببٌ لعدم الاستفادة وقال الله تعالى: (ولوجعلناه ملكاً لجعلناه رجلاً) يعني كه موږ ګرځولي وای

رسول و بشر ته ملکه نو هغه به په صورت کي د بشر وای.

**فائدة** : قال العلماء الاقدمين رح : اعقل الرجال لايستغنى عنْ مُشاورة اولى الألباب. ډیر عاقل د خلکو، نه دي مستغني د مشوري چې د خاوندانو دعقل. وافرهِ الدّواب لايستغنى عن السوط. او ډیره ښه دابه یعني آس او اوښ وغیرهما مستغنی نه دي د غمچنی څخه. و اورع النساء لایستغنی عن الزوج. یعني ډیره پرهیزګاره ښځه مستغني نه ده د میړه څخه. قال المولو المعنوی رحمه الله فی المثنوی:

مشورت ادراك وهشاوي دهد عقلها مر عقل را ياري دهد

گفت پیغمبر بکن ای رای زن مشورت که المستشار موتمن

**فائدة** : حکمت الهي مقتضی ددي دی چي د یوشي خیر چي غالب پر شر وي هغه خدای ﷻ پیدا کوي. لأنهم قالوا انَّ ترك الخير الكثير لاجل الشر القليل شرٌّ كثيرٌ . لکه وروسته د سوال جواب د ملکو په باره د خلق د آدم علیه السلام به دا خبره واضح سي. مثلا دیو سړي په یو اندام کي ساري دانه وي، نو هغه اندام که قطع کړي د ډاکټرانو په مشوره، نو دا قطع العضوه شر لږ دی، ولي نور بدن به يي سالم پاته سي. چي خیر کثیر دی. او که هغه عضوه نه کي قطع، نو هغه دانه به يي ټوله بدن ته سرایت وکړي او سړی به ختي مړ سي وهو شرٌّ كثيرٌ كذا فی روح البيان.

**فائدة جليلة متعلقة بحرف القاف فی الآيات السابقة وفيما يأتی من القرآن العزيز** : درویش وایي چي اولیاء الله الکرام رح چي پر خزانو د قرآن کریم دوی ته خدای جل سلطانه علم ورکړي دی. وایي چي په قرآن کریم کي پنځه آیته دي چي په هر یوه کي لس قافه موجود دي دپاره د دفع د شر

دده دښمنانو، کـه ظـاهري وي او کـه بـاطني. او دپـاره د غلبـي پـر هغـو روزانه يو وار وينا يي ډيره موثره ده. او انشاء الله تعالى ويونكى به يي پر ټولو دښمنانو غالب وي. او ددوى د شر څخه به په امان وي.

يو قائل وايي: جميع العلم فى القرآن لكن ÷ تقاصرت عنه افهام الرجال. او هغه مبارك آيتونه دادي:

بسم الله الرحمن الرحيم

(۱): اَلَمْ تَرَ الى الملإِ من بني اسرائيل من بعد موسى اذ قالوا لنبيٍّ لهم ابعث لنا مِلِكاً نُقاتِلْ فى سبيل الله قال هل عسيتم ان كتب عليكم القتال ان لاتقاتلو قالوا مالنا ان لانقاتل فى سبيل الله وقد اُخْرِجنا من ديارنا و ابنائنا فلما كُتب عليهم القتال تولوا الا قليل منهم والله عليم بالظالمين°

(۲): لقد سمع الله قول الذين قالوا ان الله فقير ونحن اغنياء سنكتب ماقالوا وقتلهم الانبياء بغير حقٍ ونقول ذوقوا عذاب الحريق°

(۳): الم تر الى الذين قِيْل لهم كُفُّوا ايديكم و اقيموالصلوة وآتو الزكوة فلما كُتب عليهم القتال اذا فريق منهم يخشون الناس كخشية الله او اشد خشيةً وقالوا ربنا لِمَ كتبت علينا القتال لولا اَخَّرتنا الى اجلٍ قريبٍ قل متاع الدنيا قليلٌ والآخرة لمن اتقى ولاتُظلمون فتيلا °

(٤): واتل عليهم نباء ابنى آدم بالحق اذ قَرَّبا قُرباناً فتُقُبِل من احدهما ولم يُتقبل من الآخر قال لاقتلنَّك قال انما يتقبل الله من المتقين°

(٥): قل من رب السموات والارض قُلِ الله قُل افاتخذتم من دونه اولياء لايملكون لأنفسهم نفعاً ولاضرا قل هل يستوى الاعمى والبصير أم هل

تستوى الظلمات والنور أم جعلوا لله شركاء خلقوا كخلقه فتشابه الخلق عليهم قل الله خالق كل شيئ وهوالواحد القهار°
الله احفظني و اولادي من شرِّ الاعداء والظلمة ومن شرِّ الشياطين والأجنة وانصرني على اعدائي وصلى الله تعالى على سيدنا محمدٍ وعلى آله وصحبه اجمعين°

قَالُوٓا أَتَجۡعَلُ فِيهَا مَن يُفۡسِدُ فِيهَا وَيَسۡفِكُ ٱلدِّمَآءَ وَنَحۡنُ نُسَبِّحُ بِحَمۡدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَۖ قَالَ إِنِّيٓ أَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُونَ ﴿٣٠﴾

ملکو وویل: ایا ته ګرځوي یعني خلیفه دمځکي هغه څوک یعني آدم و اولاده چي هغه به فساد کوي په مځکه کي یعني عصیان او وبه یوي وینې یعني قتل او قتال به کوي او حال دادی چي موږ تسبیح وایو سنا سره د حمده یعني سبحان الله وبحمدک او تقدیس کوو تالره یعني دټولو عیبو څخه تا پاک بولو. یعني موږ ته خلافت د مځکي څه حکمت دی چي نه یې راکوي؟ خدای ورته وویل چي زه خبریم په هغه شیانو چي تاسي نه یاست په خبري. یعني هغه حکمتونه چي په خلق کي د آدم او په خلافت کي دده سته چي تاسي ملکي په هغو حکمو نه یاست خبري.

---

**پوه سه!** چي غرض د ملکو په قول کي همزه دپاره د انکار نه ده، ولي چي د استفهام انکاري معنا څو اعتراض دی پر خدای ﷻ. ولي چي اعتراض پر خدای ﷻ کفر دی. او نه یې غرض طعن او غیبت کول دي د

بني آدمو، ولي چي غيبت خو گناه کبيره ده. او د ملکو په شان کي خدای ﷻ وايي: (عباد مکرمون لايسبقونه بالقول وهم بامره يعملون)

**فائدة** : حشويه وايي چي ملکي د کفر او گناه کبيره څخه معصومي نه دي او په دي آيت دوی دليل وايي چي په دي آيت کي دوی يو اعتراض پر خدای ﷻ وکړی او بل يي د بني آدم غيبت وکړی. موږ وايو چي دا استفهام صرف داسي دی لکه د يو متعلم په زړه کي يو اشکال ور وگرځي او معلم څخه سوال وکړي. نو استفهام ددوی د نفس (جعل) څخه د خليفه فی الارض هم نه دی، ولي چي هغه خدای ﷻ خو دوی ته وويل: (إني جاعل في الأرض خليفةً) نو دوی خو پوه سوي. خدای ﷻ خو هرومرو د مځکي د عمارت او اصلاح دپاره يو خليفه پيدا کوي. بلکه استفهام دلته دپاره دتعجب دی يعني ملکي ودي ته په تعجب کي پاته سوي چي خدای جلت قدرته چي هيڅ کار خو يي بي حکمته نه دی، نو اوس څه حکمت باهره دی چي دپاره د اصلاح او تعمير د مځکي اهل عصيان او فساد پيدا کوي. او اهل طاعت ته دا استخلاف نه سپاري. او دا قول ددوی (ونحن نسبح بحمدك ونقدس لك) آه مدح او تعريف دخپل ځان نه دی او نه خپل تفضيل پر آدميانو ثابتول دي. بلکه دا منشاء دخپل اشکال ظاهرول دي. او دهغه پټ حکمت الهي چي په دغه استخلاف کي سته بيانول غواړي چي دا ټوله مفاسد د بني آدم لغوه وگرځول او استخلاف ددوی بي مختاره کړی

**پوښتنه** : ملکي په دي څه خبري وې چي د خليفه الارض د اولاده څخه به فساد فی الارض او قتل او قتال صادريږي لان الغيب لايعلمه الا الله؟

**جواب**: تر ټولو اسلم دخدشاتو څخه خالي هغه جواب دی. تفسیر مظهري فقط همداغه یو جواب راوړی دی. او قاضي بیضاوي هم هغه جواب اول راوړی دی. او خفاجي رحمه الله وایي چي اسلم د وجوه دی. هغه جواب دادی چي: دوی ته دا حال د ذُرِّیة الآدم په اخبار دخدای ﷻ معلوم سو کما رُوی عن السدي رحمه الله چي څه وخت چي خدای وملکو ته وویل: (إني جاعل فی الأرض خلیفةً) ملکو وخدای ته وویل چي څه به پیدا کیږئ ددغه خلیفه څخه؟ خدای ﷻ ورته وویل چي ددي خلیفه به ذریه او اولاد وي چي هغه فساد فی الارض او یو دبله سره وژني، نو ځکه ملکو وویل (اتجعل فیها) الآیة.

او بیضاوي بل جواب دا ویلی دی چي ملکو قیاس د انسانانو پر جنیاتو وکړی چي دمخه تر انسانانو یي حکمراني د ځمکي په لاس کي وه وفیه چي قیاس خو یو علت مشترکه غواړي. نو دجنیاتو او انسانانو تر مابین ملکو څه علت مشترکه لیدلی وو؟

او بل جواب د بیضاوي دادی چي: دملکو په عقولو کي دا راسخه وه چي عصمت یوازي او یوازي ددوی خاصه ده نو ځکه یي پرانسانانو د معصیت او د فساد فی الارض بالقتل والقتال فتوی صادره کړه، لکن دا جواب د انانیت څخه خالي نه دی. او د ملائکه وو چي خدای پاك (عباد مکرمون) بللي دي مناسب نه دي.

او بیضاوي بل جواب دا راوړی دی چي فساد او قتل و قتال دوی یعني ملکو په لوح محفوظ کي لیدلی وو، ولي چي په لوح محفوظ کي تول هغه شیان نوشته وه چي ترقیامت پوري پیښیږي. پر دي جواب دا سوال واردیږي چ ټولي ملکي خو د لوح محفوظ د مطالعي اجازه نه لري

بلکه متکفل په مطالعه د لوح محفوظ یوازي اسرافیل علیه السلام دی نو عمومي ملکي څرنګه په خبري سوي؟ او هغه ځاچي په جواب کي ویل دي چي اسرافیل علیه السلام دي بیا نورو ملکو ته کشف الحال د لوح محفوظ کړی وي. پر هغه دا سوال واردیږي چي اسرافیل علیه السلام بیله اجازي د رب جل جلاله څرنګه د لوح محفوظ خبري ونشر ته سپارلای سي. او که په اجازه دخدای ﷻ وي یرجع هذا الجواب الی الجواب الاول المقبول کما مر.

او روح البیان وایي چي طعن ویونکي پر ذریه د آدم ملائکة الأرض والجن والشیاطین الذین غلبت علیهم الظلمة.

درویش وایي چي جن خو قبل المشوره د مخکي څخه وشړل سول. او بل دا چي خدای جل سلطانه خو وویل: (و إذ قلنا للملائکة) آه او داسي یي نه دي ویل چي (اذ قلنا للملائکة والجن والشیاطین) فکیف یجوز توجیه الآیة بالجواب المذکور؟. او وروسته یي ویلي دي:

والإعتراض علی فعل الحکیم والنزاع فی ضیعه معفو عنه آه.

درویش وایي چي دا جواب بعید دی، ولي چي خدای ﷻ د مطلقو ملکو په شان کي وایي (بل عباد مکرمون) کما مرّ. و لله در البیضاوی رحمه الله والمظهری رحمه الله. او اهل تحقیق خو نفس ملائکه معصوم بولي کما فی کتب العقائد. والله اعلم بحقیقة الحال.

او شاید بعضي علماء به قصه دهاروت و ماروت دلیل د عدم عصمت د ملکو وګرخوي یعني هاروت وماروت خو هم ملکي وي. او د زهره په نامه د یوې ښځي سره یي زنا وکړه او دمخه یي شراب هم وچښل او د زهري میړه یي ور مړ کړی. او بُت ته یي سجده هم وکړه کما سیأتي

في قصتهما ان شاءالله تعالی.
جواب یې دادی چې هغه قصه په عنوان مذکور سره اصل حکایت یې مروي د یهودو څخه دی او په هیڅ حدیث صحیح کې دا قصه په عنوان مذکور نسته کما سیأتی تحقیقها و اصل واقعة هاروت وماروت ان شاء الله تعالی.

**فائدة** : محقق بیضاوي رحمه الله وايي چې (سَفك او سَبك او اَسفح، اوشَن) توله د تویدو اقسام دي. نو (سَفك) بهیدو ته د اوښکو او د وینو وايي. او (سَبك) سره زر یا سپین زر وغیره چې ویلي کې او وبهیږي او (سَفح) د لوړې خوا څخه تویېدو ته وايي. او (شَن) تویېدو ته د خولې دخوا د ژي وغیره ته وایي .

**فائدة** : جمله د (ونحن نسبح الآية) حال ده او بیان دی د منشاء د پُښتنې ددوی بقولهم اتجعل فيها آه. نو معنا یې داده چې ته ﷻ د مځکې د اصلاح او تعمیر دپاره عصات خلیفه کرځوي او موږ معصوم بندګان ستا موجود یو. نو څه حکمت دی په عدم استخلاف کې زموږ؟ او څه مرجح موجود دی د عصاتو په خوا کې چې ته اي ربه! ددوی و استخلاف ته ترجیح ورکوي پر موږ لکن دا خبره د ملکو صرف پوښتنه غرض ده، نه فخر او تکبر او عُجب په عباداتو سره خپل. مثال ددې داسې دی لکه یو سړی چې د دښمنانو سره احسان کوي او یو خپل یې ډیر مسکین وي او دهغه سره احسان نه کوي او دا مسکین ورته ووايي: اتحسن الى اعدائك وانا الصديق المحتاج.

**فائدة** : تسبيح او تقديس په معنا كي سره نژدې دي يعني لري كنړل د خداى جل سلطانه دي د بدو څخه په اعتبار د صفاتو او افعالو او اقوالو او دا لري كنړل په خوله سره هم كوي مثلاً (سبوحٌ قدوسٌ) او چي عقيده يي هم داغسې وي . واما التبعيد بالفعل فلايتصوّر فيه تعالى كما لايخفى لأنه تعالى ليس بمفعول .

**فائـدة** :كلمه د (بحمدك) حال د ضمير د (نسبح) ده أى نسبح متلبسين بحمدك يعني نقول سبحان الله وبحمده وجاء فى الحديث الصحيح فى آخر البخاري قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : كلمتان خفيفتان على اللسان ثقيلتان فى الميزان حبيبان الى الرحمن سُبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم. يعني دوي كلمي سپكي دي پر ژبه او درني دي په ترازو كي يعني په ورځ د قيامت د نيكى په پله كي . او محبوبي دي وخداى ﷻ ته. هغه دوي كلمي (سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم) دي.

**فائـدة** : پوه سه! چي صيغه د مضارع دپاره د استمرار ده او تقديم د مسند اليه پر مسند فعلي يعني تقديم د (نحن) پر (نسبح) دپاره د اختصاص او حصر ده. يعني هميشه ستا تسبيح ويل په موږ كي حصر ده. نو مآل يي معصوميت ته كيږي. ولهذا فسره البيضاوي رحمه الله بقوله تعالى ونحن معصومون.

# وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا

## او خدای ﷻ وښووله و آدم علیه السلام ته نومان د ټولو شیانو

روح البیان د وهب بن منبه رحمه الله څخه روایت کړی دی چې څه وخت چې خدای ﷻ اراده وکړه و خلق ته د آدم علیه السلام یعني د خلافت الارض دپاره. نو مځکې ته یې الهام وکړی. یعني په مځکه کې یې دا فهم پیدا کړی. او ورته وې ویل چې زه د تا څخه یو مخلوق پیدا کوم یعني آدم وذریته. نو بعضي د هغه مخلوق به چې زما اطاعت کوي، نو زه به یې جنت ته داخلوم. یعني په ورځ د قیامت او بعضي به زما عصیان کوي، نو زه به یې په اور د دوږخ سوځم. نو مځکې ورته وویله چې زما څخه مخلوق پیدا کوې د اور دپاره؟ خدای ﷻ ورته وویل نعم. نو مځکه په ژړا سوه هغه د ژړا اوښکې دي چې چیني څني جوړې سوې الی یوم القیامة. نو جبرئیل علیه السلام ته خدای ﷻ امر وکړی چې ته ورسه د مځکې دټوله مخه څخه خاوره راټوله کړه. یعني د توري مځکې څخه او د سپینې مځکې څخه او د سرې مځکې څخه او د خوږې مځکې څخه او تروې مځکې څخه او د ترخې مځکې څخه او د نرمې مځکې څخه او د کلکې مځکې څخه او د غرنۍ مځکې څخه. نو جبرئیل چې اراده د خاورو راټولولو یې وکړه، نو مځکې ورته وویل چې ستا دې په هغه خدای ﷻ قسم وي چې ته یې را استولی یې چې زما څخه هیڅ خاوره مه وړه. او مځکې ورته وویل: که څه هم په نزدیکت کې د باچا منافع خو ډیرې دي لکن لوی خطر هم ورسره سته. سعدي رحمه الله:

بدریا در منافع بیشمار است ❊ اگر خواهی سلامت در کنار است

نو جبرئیل علیه السلام بیرته واپس ناکامه راغلی او خدای ﷻ ته یې خپل د ناکامی دا بیان کړی چې مځکې ماته ستا په نامه قسم راکړی چې زما څخه خاوره مه وړه، نو ما ستا د نامه د قسم پر ماتولو مې اقدام نسوای کولای. او بیا یې میکائیل علیه السلام ور واستاوه خو مځکې وهغه ته هم د جبرئیل د قسم قسم ورکړی. نو میکائیل هم ناکامه بیرته راغلی. او خدای ﷻ ته یې د جبرئیل پر رقم عُذر بیان کړی او بیا خدای ﷻ اسرافیل علیه السلام ور واستاوه. هغه په ورته قسم ورکولو ناکام راغلی او عُذر سابق یې خدای ﷻ ته بیان کړی او په آخر کې عزرائیل ملك الموت ورواستاوه. نو مځکې هغه قسم په نامه دخدای ﷻ عزرائیل ته پیش کړی. عزرائیل مځکې ته وویل چې زه په نامه دخدای ﷻ قسم اخلم چې زه به د امر څخه دخدای ﷻ مخالفت نه وکړم یعنې زه چې خدای ﷻ ستا څخه په خاورو تولولو سره امر کړی یم نو امر فوق الادب دی. نو زه هرومرو ستا څخه خاوره تولوم. او دخدای ﷻ امر به پر ځای کوم. نو دټولې مځکې د سره څخه یې خاوره ټوله کړه. خلک وایي چې خدای ﷻ خبر دی چې زما خاوره به یې د کمه ځای څخه اخستې وي. دا خبره غلطه نه ده بلکه یوه زره خاوره د ټولو انسانانو په دغه خاوره کې موجوده ده. او هغه سړی به هم په هغه مځکه کې دفن کیږي.

درویش وایي چې خدای ﷻ عالم دی په صحت د قول د وهب بن منبه رحمه الله او بیضاوي رحمه الله د قبضې نسبت وخدای ﷻ ته کړی. وقال لما رُوی عنه الحدیث. او خفاجي رحمه الله وایي چې سیوطي رحمه الله وایي چې دا حدیث احمد رحمه الله او ترمذي روایت کړی دی. و ابن جریر رحمه الله صحیح ګڼلی دی. والله اعلم بالصواب

درویش وایي چي نسبت و قبضي دخدای ﷻ ته داسي دی لکه نسب د وجه او ید وغیرهما وخدای ﷻ ته. نو یا مذکور حدیث د متشابهاتو څخه وي او یا به مأول په امر دخدای ﷻ و عزرائیل ته په قبض سره. **الاختلاف في محل خلقة آدم علیه السلام.**

بعضي علماء وایي چي خلق د آدم په اول آسمان کي سوی دی. او بعض وایي چي په یو باغ کي د باغو د مځکي سوی دی. لکن اکثر مفسران رح پر دي رای دي چي خلق د آدم علیه السلام په جنت عدن کي انجام پذیر سو. او هم دهغه جنت څخه مځکي ته راغلی دی. کذا في کشف الکنوز.

روح البیان وایي: په حدیث قدسي کي داسي راغلي دي: (**خَمَّرتُ طینة آدم بیدی اربعین صباحاً یعني اربعین یوماً**).

درویش وایي چي دا حدیث هم یا د متشابهاتو څخه دی او یا معنا داده چي ملائکه مي امر کړي په تخمیر د ختو د آدم علیه السلام. نو بیا څلویښت کاله دا ختي مصور بصورت آدم بلاروح پاته وي، حتی چي دا ختي وچي سوي او شرینګی به یي کاوه لکه کودري. بیا مي ۳۹ کاله باران د غم پر و اوراوه او یو کال د خوشحالی باران. نو ددي سببه غمونه د بني آدم ډیر دي تر خوشحالی، لکن عاقبة د غمو د مسلمانانو و خوشحالی ته کیږي. یعني الی نعیم الجنة. سعدي رحمه الله

درین دنیا کسي بیغم نباشد ✣ اگر باشد بنی آدم نباشد

درویش وایي چي په غمو کي د دنیا مسلمان او کافر سره برابر دي بلکه د مسلمان غم او بیره تر کافر زیاته ده. لکن د مسلمان غم انتهاء لري یعني چي آخرت ته رد بي. په سبب د دخول د جنت او د کافر غمونه

نور پسي ډیریږي یعني په آخرت کي چي حشر سي یعني په دخول د جهنم
په روح البیان کي وایي چي ملکي به د آدم علیه السلام پر دي مُصور جسم بي روح باندي چي تیریدلي، دا حسن صورت دده به ډیر ښه خوند ورکاوه، ولي چي دوی تر اوسه دغسي صورت نه وو لیدلی، لکن درویش وایي چي روح البیان د آدم قد پنځه سوه ګزه بیان کړی دی او دا قد په هیڅ صحیح حدیث کي نه دی راغلی، بلکه په احادیثو صحیحه وو کي او په تفاسیرو معتبره وو کي قد د آدم علیه السلام شپیته ۶۰ ګزه یعني ذراع بیان سوی دی. چنانچه په صحیح حدیث کي راغلي دي چي هر جنتي به پر قد د آدم ۶۰ ګزه وي. والله اعلم بالصواب.
روح البیان دا خبره هم کړي ده چي یوه ورځ ابلیس سره د ټو ملکو پر کالبود د آدم علیه السلام تیریدی، نو چي د آدم علیه السلام صورت یي ولیدی نو ملکوتي وویل: لأمرٍ ماخلقتْ یعني دا صورت د یو امر عظیم دپاره پیدا کړه سوی دی. او بیا یي په ګوته وټکاوه او وي ویل چي دا جوف دی یعني مابین یي خالي دی. دا به چندان ثبات ونه لري. وروسته روح البیان یو ښائیسته لفظ استعمال کړی دی وایي چي شیطان یي په خوله ورننوتی او تر دبره یي ووتی او وملکرو ملکوته یي وویل چي دغه صاحب الصورت ته که خدای ﷻ پر موږ تفضیل ورکی نو تاسي به څه کوی؟ ملکو وویل چي نُطیع ربنا. موږ دخدای ﷻ امر منو. شیطان په خپل نفس کي وویل چي که یي پر ما تفضیل ورکړی، زه خو دخدای ﷻ دغه فیصله نه منم. او زه به کوشش په هلاک کي دهغه وکړم. سعدي رحمه الله
عاقبت ګرګ زاده ګرګ شود ✣ ګرچه با آدمي بزرګ شود
نو ابلیس په خوله کي ناړي سره جمع کړي او پر جسد آدمي باندي یي تو کړي. هغه ناړي د ابلیس د جسد آدمي د نو پر برابر ومښتي. نو خدای

ﷺ جبرئیل ته وویل چي د ابلیس دناورو خای ښه جوړ (زور) کړه، نو بعضي خاوري د جسد هم ورسره جلاسوي. هغه خاوره او د ابلیس ناره خدای ﷻ ماده د سپي د خلق وګرځوله. نو ځکه په سپي کي دري ۳ خویه سته. یو د بني آدم سره اُلفت په سبب ددي چي د آدم د خاورو څخه پیدا دی. او بل تپوله شپه بیداري. دا په اثر او سبب د مس د جبرئیل دی او بل یو وخت پر انسان حمله کول. دا تاثیر د نارو د ابلیس دی.

**پوه سه!** چي (عَلَّمَ) ماضي د تفعیل دباب څخه ده چي معنا یې ښوونه ده وجاته چي غالباً پر تعلیم د معلم و متعلم ته مرتبیږي. یعني کلمه نه دا ولذالك یُقال علّمته فلم یتعلم. یعني ما ښوونه و متعلم ته وکړه او ده زده نه کړی.

**فائدة** : په وضع کي د الفاظو یعني چي واضع یې څوك دی اختلاف دی. مذهب د شیخ اشعري رحمه الله دادی چي دټولو الفاظو واضع خدای ﷻ دی ابتداءً . او دا هم رواده چي د بعضي الفاظو وضع دي حادث وي د بشر دخوا لکه چي یو سړی خپل د خوی نوم زید یا عمرو وغیره کښیږدي. او یا د آلاتو جدیده وو نومان دي بل څوك وضع کړي. لکه کلاشنکوف، توپ، توپنګچه، موټر، بائیسکل، موټرکاټ وغیرها په پښتو کي او دغه رنګه په نورو ژبو کي.

درویش وایي چي دلیل د مذهب د اشعري رحمه الله همدغه آیت دی، ولی چي ابوالبشر آدم علیه السلام خو اول انسان دی نو دغه اسماء چي خدای ﷻ وده ته وښووله د بشر د خوابی وضع څرنګه ممکنه وي کما لایخفی. او معتزله وایي چي واضع د ټولو الفاظو په هره ژبه چي وي د ژبي خلګ دي، چي دي مذهب ته مذهب د اصطلاح وایي. او دا آیت د

دوی د مذهب د رد دپاره کافي دی.

او دریم مذهب دادی چي دهغو الفاظو واضع چي په تعلیم د امور دینیه و دهر نبي چي وي ضرورت ورته وي د هغو واضع خدای ﷻ دی. او د نورو الفاظو واضع اهل اصطلاح دي د هري ژبي چي وي.

**مهمه پوښتنه** : تعلیم دچا وبل ته خو دا غواړي چي معلم او متعلم په یوه مشترکه ژبه سره پوهیږي مثلاً یو د پښتو مُلا چي عربي و یو پښتانه طالب تــه ورښیي، نــو خــو پښتــو ددوی دوو تــر مــابین شــریکه ژبــه ده. نــو پوښتنه داده چي په هره ژبه چي خدای ﷻ تعلیم الاسماء و آدم علیه السلام ته کاوه، نو شریکه ژبه خو بله غواړي. هغه شریکه خو بــه هم خدای ﷻ و آدم علیه الســلام ته ښولي وه ، نو هغه ژبه چي خدای ﷻ و آدم علیه السلام ته ښوله نو خو بیا بله مشترکه ژبه غواړي. وهکذا که پسي رواني وي خو تسلسل یي بولي او که بیرتــه پر اولــه ژبــه راوګرځي دور یي بولي. وهما محالان باتفاق اهل الملة والحکمة.

**جــواب** : حضراتو مفســرینو رحمهم الله وایي چي تعلیم الهي حصر په یوازي الفاظو کي نه دی. بلك خدای ﷻ بــه د آدم علیــه الســلام پــه زړه کي علم ضروري بلا مدخل سبب مــن الاسباب پــه اسماء دټولــو سمیاتو پیدا کړی باحضار المسمیات والقاء العلم الضروری باسمائها وخواصها. اویا پــه طریقه د الهــام چي القاء فی الــروع یي بــولي وده تــه علــم د اسماء د مسمیاتو ښولي وي. ومن علم قدرة الله لایشکل علیه هذا التعلیم فافهم.

**پـــوه ســـه!** چي د اسم څخه دلتــه معنــای نحوي نــه ده مراد وهــو اللفظ الموضوع لمعنــی مفرد لانــه اصطلاح متجــددٌ لایعرفه العــرب الــذی نــزل

بلسانهم القرآن. فالمراد من الاسماء آه مايدل على ماهيات الاشياء من الفاظها وصفاتها وخواصها. قاله الفاضل الشيرواني ﷫ في حاشية البيضاوى.

**فائدة**: لفظ د آدم عجمي دی لکه آذر د (أُدمة) څخه دی بضم الهمزة وهى السمرة ، اى گندم گون شدن. لأن لونه كان كذالك.

او یا د (أَدمةُ) څخه مشتق دی بفتح الهمزة بمعنى الأُسوة اى المقتداء لانه عليه السلام كان المُقتدى الاول فى بنى آدم عليه السلام.

او یا مشتق د (اديم الارض) څخه دی لما مرًّ انه عليه السلام خُلق من جميع تراب وجه الارض.

په روح البيان کي وايي چي آدم عليه السلام ته په ابتداء الامر کي اوه لکه ۷۰۰۰۰۰ ژبي خدای ور ښوولي وه او چي د درختي څخه یې خورك وكی یعني هغه درخته چي دی خدای خني منع کړی وو تولـه ژبي خدای پاك خني واخيستله يعني خني هيري يي كړه يوازي عربي يي ور پرېښووله. او چي بيا دی ومځکي ته خليفه او نبي مقرر سو توله ژبي يي بيرته ورکړي، نو په هغو ژبو سره اولاد دده خبري کوي الى يوم القيامة.

درويش وايي چي عدد د اوه لکه ۷۰۰۰۰۰ ژبو بيله توقيفه د شارع نسي کيدای والله اعلم.

روح البيان وايي چي آدم عليه السلام ته زر کسه خدای ﷻ ورو ښوله او ورته وي ويله چي اولاد ته دي وصيت وکړه چي که دنيا غواړي په دغو کسبو سره يي غواړي او دنيا په دين او شرع سره مطلبوي لکه بعضي ملايان د عصر حاضر.

واعظان کین جلوه در محراب منبر میکنند ✤ چون بخلوت میروند آن دیگر میکنند

درویش وایي چي صاحب د روح البیان په تفسیر کي ددي آیت (وعلم آدم الأسماء الآیة) ډیر په زړه پوري بیان موافق د مذهب سره د جمهور مفسرینورح او د مسلك سره د معظم د محدثینورح داسي کړی دی.

(أی اَلْهَمَهُ فوقع فی قلبه) خدای ﷻ الهام وکړی و آدم ته یعني د آسماء د شیانو تو هغه نومان دده په زړه کي واقع سوه. او بیا پر ژبه دده یي جاري کړه. هغه نومان چي په زړه کي دده وه، یعني ټوله مُسمیات یي و آدم ته حاضر کړه او د هر شي نوم یي په هره ژبه ور وښوی الهاماً. مثلاً آس یي حاضر کړی او دی یي خبر کړی الهاماً چي دا فرس بولي په عربي او اسپ یي بولي په فارسي او آس یي بولي په پښتو او ګوړا یي بولي په اردو. و هکذا سائر لغات الفرس فی السنة اولاده وهکذا هذ بعیر وهذا فلان و فلان.

او آدم یي خبر کړی د هر مسمی په احوالو او په منافع دینیه وو او دنیویه وو. او دغه یي ده ته نومان د ټولي اولادي دده تر یوم القیامت، ور وښودله. وهکذا اسماء الملائکة واحوالهم. وهکذا اسماء الحیوانات ومنافعها الدنیویة وهکذا اسماء الجمادات والفوائد المتعلقة بها وهکذا اسماء المدن والقری و اسماء المصنوعات البشریة الی یوم القیامة وهکذا اسماء المصنوعات له تعالی والمطعومات والمشروبات فی الدنیا والجنة حتی القصعة والقُصیعة انتهی محاصله.

او قاضي بیضاوي رحمه الله په ډیره ښه توګه و تفصیل مذکور ته اشاره کړي. اوقاضي ثناء الله په تفسیر مظهری کي په تفسیر کي د آیت مذکوره اول داسي ویلي دي: قال اهل التفسیر المراد اسماء الخلائق. قال البغوی رحمه الله قال ابن عباس رض ومجاهد رحمه الله و قتادة رحمه الله (علمه اسم کل شیئ

حتى القصعة والقصيعة) وقيل اسماء ماكان ومايكون الى يوم القيامة. وقال الربيع بن انس رح اسماء الملائكة و اسماء ذريته، الى ان قال: قال اهل التأويل : علم آدم جميع اللغات ثم تكلم كل واحد من اولاده . دا ټوله اقوال چي د صحابه رض او تابعينو رح او علماءُ راسخينو رح څخه منقول وه څرنګه ده رد کړه؟ او ده دليل دا ويلي دی: که مدار د فضل د آدم پر ملکو دا زده کړه دټولو اسماء وای، نو بايد چي آدم عليه السلام دي پر سيد البشر صلى الله عليه وسلم هم افضل وای، ولي چي دعليه السلام دا مذکوره ټوله اسماء او فوائد د مسمياتو ددغه اسماء نه وي زده.

درويش وايي چي فضيلت د آنحضرت سيد البشر صلى الله عليه وسلم خو پر ټولو انبياء عليهم السلام په سبب د کثرت د کمالاتو علميه وو اوعمليه و وو او د معجزاتو عاليه او حضور قلبي او معراج وغيرها سره دی.

او دآدم دا تفضيل پر خير البشرﷺ خو تفضيل جزئي دی. او د تفضيل جزئي څخه خو انکار نه دی روا. مثلاً موسى عليه السلام عصا او يد بيضاء درلودی او من و سلوی يي پر قوم باندي نازليده او د ډبري څخه اوبه دده په وهلو راوتلي، نو په دي سبب بايد موسى عليه السلام افضل تر خير البشر سي، ولي چي عليه السلام ته دا امور نه دي ورکړه سوي. وهکذا عيسى عليه السلام ته احياء الموتى، ابراء الاكمه والابرص ورکړه سوي وه او عليه السلام ته نه وه ورکړه سوي، نو به موږ وايو چي عيسى عليه السلام تر سيدالبشر افضل دی. وهکذا سائر الانبياء على نبينا و عليهم الصلوة والسلام.

درويش وايي: تر دي ټولو علاوه، په بخاري وغيره کي راغلي دي چي انصارو د مديني به هر کال د خرما د درختو پيوند به يي کاوه چي (تابير) يي بولي نو عليه السلام ودوی ته وويل چي بي ځايه تکليف ولي تاسي کوی. خالق د ميوو خو خدای ﷻ دی جلت قدرته، نو کشکي دا تکليف مو نه کولای. نو صحابه ﷺ تابير پريښوی او د خُرما درختو په هغه کال ميوه بيخي وعدم ته نژدي سوه. خلګو يعني صحابه کرامو دا شکايت و عليه السلام ته پيش کړی. نو عليه السلام ورته وويل: أنتم اعلم بامور دنياکم وانا اعلم بامور دينکم. نو موږ به صحابه رض تر عليه السلام افضل بولو کما يقتضيه قول القاضي رحمه الله. او بل دا چي نوع انساني په اتفاق د اهل عقل او نقل تر ټولو انواعو د حيواناتو افضله ده او سره ددي چي اوښ پنځوس منه بار په شا وړای سي، او دري کسه هم په شا وړای سي او زيد و عمر مثلاً دا کار نسي کولای، نو بايد موږ اوښ افضل تر انسان وبولو وهکذا البقر والحمار وغيرها من الحيوانات لکل منها خواص لا توجد في الانسان.

آخر قاضي رحمه الله ويلي دي چي عندي معنا د آيت داده: (وعَلَّم آدم الاسماء الالهية کلها) او بيا ده پر خپله دا توجيه سوال کړی دی. چي اسماء دخدای جل سلطانه خو غير متناهی دي، ولي چي خدای پاك چي قديم او ازلي ابدي ذات دی او دهر فعله څخه وده ته يو اسم پيدا کيږي. وقال عزّ من قائل: (کل يوم هو في شأن) نو څرنګه به علم البشر الممکن چي دهغه علم خومتناهی دی پر ټولو اسماء الهيه و غيرمتناهيه وو به احاطه وکړي. او بيا يي جواب داسي ورکړی دی: ان الله علم آدم الاسماء کلها علماً اجمالياً انتهى.

درويش وايي چي داسي علم اجمالي خو هرچاته حاصل دی کما جاء في الحديث الصحيح الذی رواه ابن حبان والطبرانی والحاکم و احمد عن ابن مسعودؓ قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اسئلك بكل اسمٍ سميتَ به نفسك او انزلته فی کتابك او علّمته احداً من خلقك او استأثرت به فی علم الغيب عندك. نو ددي حديث مبارك په اوريدو خو موږ هم دغه دعاء کولای سو. نو په دي علم اجمالي کي د آدم علیه السلام څه تفضيل دی پر ملکو بلکه پر افرادو د امت محمديﷺ.

درويش وايي چي بيرته قاضي رحمه الله پر خپل ځان په سبب ددغي توجيه داسي سوال کړی دی. فإنقيل لم يقل بماقلتَ احدٌ من المفسرين فهو قوْل القرآن بالرای وذالك غير جائز.

روی البغوی رحمه الله بطرقٍ عن ابن عباسٍ ؓ قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من قال فی القرآن برايه فليتبوء مقعده من النار. انتهى. او بيا يي ددي سوال جواب په يوه توجيه کړی دی چي والله اعلم چي څرنګه به وي.

درويش وايي چي دپاره د رد ددا قول د مظهري رحمه الله دغه کافي ده چي ده پخپله اعتراف کړی دی. چي دده تفسير د اجماع څخه د تولو مفسرينو من الصحابة ؓ والتابعين رح وتبعهم والأئمة المحققين رح مخالف دي، فلا نأخذ به والله اعلم بالصواب.

**پوښتنه** : خدایﷻ خو تفضيل د آدم علیه السلام پر ملکو په دي سره وکړی چي آدم علیه السلام ته اسماء المُسميات معلوم وه او ملکو ته نه وه معلوم، نو پوښتنه داده چي آدم علیه السلام ته خو خدایﷻ ورښوله،

نو که یې وملکو ته ور ښودلي وای او پر آدم ع یې عـرض کړی وای نو خو
آدم علیـه السـلام به هم عاجزه وای؟

**جواب**: په ملکو کي استعداد د هغو شیانو د ښوني الهاماً نه وو. حاصل
داچي آدم ع ته خدای ﷻ اجزاء مختلفه ورکړي وه لکه زړه، دماغ، اینډاو
قوي جسمانیه ظاهره لکه حواس خمسه او د بدن نور اجزاء او قوي باطنه
لکه خیال، وهم او نوري قواوي چي د هغو تفصیل په (تشریح الابدان) کي
د علم طب موجود دی. نو چونکه دغه قوی مختلفه او اجزاء متباینه په
آدم ع کي موجود وه او په ملکو کي نه وه، نو ځکه آدم علیه السلام ددغه
زده کړي د اسماء المسمیات المختلفه او د خواصو متنوعـه او د اصول د
علوم او د قوانینو د صناعاتو مستعدوو او خدای ﷻ الهاماً یا په علم
ضروري دی پـه خبر کړی. او پـه ملکو کـي چونکـه دغـه اجـزاء مختلفه
وغیرها نـه وه، نو ځکه ځای د الهام ددغو شیانو او د خواصو دهغو په
ملکو کي نه وو. هذا حاصل ما اجاب به القاضی البیضاوی رحمه الله.

درویش وایي چي حاصـل ددې جواب دادی چي خدای جل سلطانه
دمخه تر خلق د آدم علیه السلام وملکو ته وویل: (إني جاعل فی الأرض
خلیفة) یعني د مځکي د عمران دپاره آدم علیه السلام او دده اولاد پیدا
کوم. نو په عمران کي د مځکي خو اکسابو مختلفه وو تـه لکه نجاري،
بنائي، کښت کري، خیاطي، یوې غوبل، آسان ځغلول او په غویو غوبل
او یوې کول. او مثلاً پر بائیسکل سپرېدل او موټر او موټر ګاټ چلول
وامثال ذالك کثیرة. او په ملکو کي ددې شیانو استعداد نه وو او په آدم
علیـه السـلام کي او پـه اولاد کـي دده اسـتعداد موجـود وو. نو ځکه آدم
علیه السلام ددغو شیانو و امثالها پـه زده کړه د خلافة الارض وعمارتها

دپاره تر ملکو اولی او افضل او الیق دخدای ﷻ دخوا انتخاب سو او ملکو ته خدای ﷻ دا وښودله چي تاسي د خلافت د مځکي او د آبادی دمځکي دپاره کافي نه یاست. او هغه ددوی و پوښتني ته یې **(اتجعل فیها من یفسد فیها)** الآیة قناعت بخښه جواب ورکړی.

# ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ

**او بیا یعني وروسته تر تعلیم د آدم پیش کړه هغه پر ملکو یعني دپاره د امتحان**

---

**پوه سه!** چي تړوله مفسرین رح وایي چي ضمیر راجع دی و مسمیاتو ته.

**پوښتنــــه** : مُسمیات خو دمخه نه دي ذکر سوي، نو اضمار قبل ذکر المرجع نه لازمیږي؟

**جــواب** : دپاره د راجع کولو دضمیر ذکر د مرجع ضمناً هم کافي دی. وههنا کذلك اذالمراد فیما سبق اسماء المسمیات، نو مضاف الیه حذف سو او پر ځای یي الف او لام راغلي کما فی قوله تعالی **(واشتعل الرأس شیباً)** أی رأسی.

**پوښتنه** : لفظ د (هم) مذکر دی او مسمیات خو ټوله مذکر نه دي؟

**جواب** : هو. لکن په ضمیر کي تغلیب یې ذکور ته ورکړی. وقدمرَّ.

درویش وایي تغلیب یو پراخه باب دی په عربي ژبه کي. لکه (قَمَرَیْن او اَبَوَیْن) وغیر ذالك او د تغلیب اسباب نحاتو مختلف ښوولي دي.

مثلاً په قمرینو کي قمر مذکر او شمس مونث سماعي دی نو یې تفضیل ورکړی او قمرین ووېل سوله او شمسین نه وېل کیږي.

وهکذا فی الابوین او امویین نه وېل کیږي. او په عمرینو کي که څه هم ابوبکر ﷺ تر عمر ﷺ افضل دی لکن لفظ د عمر اخف دی. الی غیر ذالک من الاسباب المذکورة فی النحو للتغلیب.

## فَقَالَ أَنْبِئُونِي

نو خدای ﷻ ملکو ته ووېل چې تاسي خبر راکړئ ماته

---

**پوښتنه** : خدای ﷻ ته خو معلومه وه چې ملکو ته ددي شیانو اسماء نه دي معلوم، نو دا امر په مالایُطاق سره نه دی؟

**جواب** : امرتکلیفي په مالایُطاق سره نه دی روا او دلته خو امر تعجیزي دی یعني دپاره د اظهار د عُجز د ملکو او د اظهار د عدم لیاقت ددوی خلافت لره.

**تنبیه:** اخبار وچاته مقتضی د عدم علم د هغه چا پر مضمون د خبر نه دی حتی یلزم مایتوهم تدبر.

## بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ

المشار الیه هغه مسمیات دي بناء پر تقدیر د مفسرینو او یا بناء پر هغه دی چي وېل کیږي چي مشار الیه آدم علیه السلام دی او آله دی. او اضافته د ادناملابسته دی ای الاسماء التی علت هؤلاء الخ . المظهری

## اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ

یعني په هغه ګمان کي ستاسي چي موږ حقداره د خلافت یو په سبب چي زموږ د نه عصیان څخه. او یا چي د بني آدم دلاسه به فساد او قتل و قتال کیږي. نو حق د خلق نه لري فضلاً عن الخلافة .

**پوښتنه** : دغه دوي خبري خو دوی صراحتاً نه وي کړی؟

**جواب** : هو کي تصریح یي هم نه ده په کړي لکن ددوی د خبرو معلومیدله. اوله خبره ددي قول ددوی سره لازمه (ونحن نُسبح) آه او دوهمه خبره ددي قول څخه معلومیدله (اتجعل فیها من یُفسد) آه.

**پوښتــنــه** : د منطقو او د معاني وو په کتابو کي وایي چي تصدیق او تکذیب په جملو خبریه وو پوري خاص دی او وه انشاءاتو ته د صدق او کذب او تصدیق و تکذیب نسبت نه کیږي، نو ملکو خو په طور د استفهام چي د انشاءاتو د قسم څخه دی وي ویل: (اتجعل فیها)آه.

**جواب** :نسبت د صدق او کذب آه خو انشاءاتو ته نه کیږي، مګر که د کومي انشاء سره اخبار لازم وو په اعتبار د لازم نسبت د صدق او کذب آه ورته کیږي. او دلته اخبار د ملکو د استفهام سره لازم وو کمامرّ آنفاً. کما

في قوله تعالى:( إذا جاءك المنافقون قالوا نشهد إنك لرسول الله والله يشهد انك لرسوله والله يشهد إن المنـافقين لكـاذبون) نو منافقـانو خو صرف نشـهد آه وويلـه او شـهادت خـو د قسـمه د انشـاء دی کمـا فـی المطول وغيره او سره دهغه خدای ﷻ نسبت د کـذب ودوی تـه وکـړی. نو مفسرين رح وايي چي دا نسبت د کذب و دوی تـه پـه اعتبـار د لازم د شهادت ده. ولـي چي شاهدي خـو هغـه بـولي چي د صـميم قلـب څخـه وي او ددوی شاهدي خو د صميم قلب څخه نه وه. نو گويا دوی وروسته تر (نشـهد) آه دا هـم وويـل:( إن شهادتنا عـن صـميم القلـب) څخـه ده او دا خبـره ددوی درواغ وه. بيضاوي.

درويش وايي که ددې خبري يعني چي نشاء ته نسب د صدق او کذب په اعتبار د لازم روا دی، نو مطول يا مختصر يا بل کتـاب د معـانی وو مطالعه کړه.

قَالُوا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿۳۲﴾

ملکو ووېل: پاکي ده تا لره يعني د هر عيب او نقصان څخه او د اعتراضه پر تا باندي. هيڅ علم نسته مونږ لره يعني خصوصاً عِلم پر اسماء د مسمياتو چي پر مونږ عرض سوه مګر پر هغه شي چي مونږ ته يې راوښيي او تعليم يې راته وکړي. په تحقيق سره ته په ډيرو خبرو په ټولو کائناتو سره خبر يې. او حکيم يې، يعني هر کار چي ته يې کوې په هغه کي حکمت لري، يعني لکه په خصوص د خلق د بشر او خلافت ددوی په مځکه کي.

---

حاصل د کلام د ملکو اقرار دی په خپل عجز او قصور سره او په عين حال کي دوی اشاره وده ته هم وکړه چي زمونږ پوښتنه په (اتجعل فيها) آه محض او صرف پوښتنه ستا د حکمت جليله وه په خلق کي د عالم البشر او اعتراض نه وو. دليل د نفي د اعتراض دادی چي څوک چي علم نه لري پر هيڅ شي نو هغه به پر احوالو د آدم او د خلافت دده څه علم ولري؟ يو څوک چي علم نه لري، هغه به اعتراض څرنګه وکړي. بل غاية الأمر أن يسأل عن الحكمة المخفية في ذالك الخلق وتلك الخلافة العظيمة. او مونږ ته معلوم سو هغه شی چي زمونږ څخه پټ وو يعني فضيلت د انسان چي په اعتبار د علم دی پر کارو د خلافت الارض. او ملکو لوی مراعات الادب وکړی دخدای جل سلطانه په دربار کي چي سلب کلي د علم يې د خانه څخه وکړی بيله تعليم الهي، اګرچه خبره په خصوص کي د خلق آدم وه، نو سلب کلي ته د علم څه ضرورت وو؟

**فائدة:** (سُبحانك) يوه كلمه ده چي تر توبي دمخه و دربارته د خدای ﷻ وړاندي كيږي. كما قال موسى عليه السلام سبحانك تُبتُ اليك. وقال يونس عليه السلام سُبحانك اني كنت من الظالمين.

**نصيحت:** عالم ته ښكار ده چي لويي او كبر دي نه كوي، چي په هغه شي نه پوهيږي او دی ووايي چي زه نه په پوهيږم. او كه په يو شي پوهيدی هغه دي د چا څخه نه پټوي يعني چي اهل يي وي. علماء حقاني وايي چي (لاأدري نصف العلم) دی.

**فائــدة:** د يو عـالم څخه چي هغه پر منبر ناست وو چا د يوي مسئلي پوښتنه وكړه. هغه عالم ورته وويل: (لاأدری). سـائل ورتـه وويـل چي منبر د جهالو ځای نه دی. عـالم ورته وويـل چي زه چي دوي ځيني د منبر تر تاسي لوړ ناست يم دا مي دعلم اندازه ده، او كه په قدر د جهل او ناپوهی تر تاسي لوړ سم، نو زه به پر آسمان يم او تاسي پر مځكه.

او دغه رنګه د قاضي ابو يوسف ؒ چي پر منبر د جمعي د ورځي ناسـت وو، يـو جاهـل پوښتنـه د يـو مسئلي څخي وكړه چي لويـه مجمع د جمعـي د لمانځـه دپـاره حاضـره وه. امـام ابـو يوسـف ؒ ورتـه وويـل: (لاأدری) هغه سړي په ډير بي حيائي ورته وويل چي د بيت المال څخه د مياشتي دونه تنخاه اخلي او بيا وايي (لا أدری)

قاضي ابويوسف ؒ د انصاف څخه كار واخيستی او كبر يي نه وكړی د سائل د خبري څخه او داسي يي ورته وويل چي دا تنخاه چي تا يي ذكر وكړی، دا خو زما د علم په اندازه ده. او كه زما د جهـل پر اندازه څوك تنخاه راكړي، نو د بيت المال ټوله شتمني به زما په تنخاه كي ولاړه سي.

درویش وایي چي حقاني علماء دغسي وي. او که زموږ د زماني یو مُلا ته چي پر منبر د وعظ دي ناست واې او لویه مجمع دي هم واې، داسي خبره څوك وکړي والله اعلم چي څه ناشُدي به یې ویلای.

درویش وایي چي د (سُبحان) تحقیق که څه هم په شروحو کې د (سلم المنطق) موجود دی، لکن چونکه قرآني لفظ دی نو حواله د تفصیل یې پر کتابو د منطقو نا زیبا ده. لهذا د قاضي بیضاوي رحمه الله تحقیق ددې لفظ قرآني ډیر په زړه پوري دی.

هغه وایي (سُبحان) مصدر دی لکه (غُفران) او قریب نه ده چي (سُبحان) دي مستعمل سي مگر نه مضاف او منصوب په فعل محذوف سره. نو اصل یې داسي وو (سَبّحانك سُبحاناً) انتهی بزیادة.

درویش وایي چي قاضي بیضاوي رحمه الله او دده په متابعت قاضي ثناءالله رحمه الله په تفسیر مظهری کې او نور کثیر مفسرین رح وایي چي ملکو چي خپل جواب مُصدر کړی په (سُبحانك) سره چي مفتاح التوبة دی کمامرّ، ددې سببه چي ددوی د حال سره مناسب چي (عباد مکرمون) دی په وخت کې ددې چي خدای ﷻ ددوی ته وویل: (إني جاعل في الأرض خلیفة) داوه چي دا پوښتنه که څه هم اعتراض نه وو، نه یې وای کړې (اتجعل فیها) آه بلکه مراعات د ادب یې کړي وای او انتظار یې کړی وای چي حکیم خدای ﷻ چي ددوی په وجدان خبر دی بیله سواله ددوی د حکمت جلیله پر خلق د آدم او په خلیفه گرځولو په مخکه کې بیان به وکړي، نو ځکه دوی (سُبحانك) ووایه.

قَالَ يَآدَمُ اَنْبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ

خدای ﷻ ووېل اې آدم خبري كه ملكي په نومانو سره ددغو مسمیاتو يعني چې دوی ته حاضر دي.

**پوه سه!** چې قرائت د (انبئهم) دري دي. يو په همزه سره كما رئيت او دوهم په (ياء) سره هكذا(انبيهِم). دريم په حذف د (ياء) هكذا(انبهِم).

فَلَمَّآ اَنْبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۙ وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۳۳﴾

نو څه وخت چې آدم خبري كړي ملكي په نومانو سره دهغو مسمیاتو يعني سره د خواصو دهغو، نو خدای جل سلطانه ملكو ته ووېل چې ما تاسي ته نه وه ویلي چې زه خبر يم په پټو شیانو سره د آسمانو او د مځكي او زه خبر يم په هغه شي چې تاسي ښكاره كړی. اوپه هغه شي چې تاسي پټ ساتی.

**پوه سه!** چې (الم اقل لكم) آه اشاره ده وهغه قول ته دخدای ﷻ (انی اعلم مالا تعلمون) لكن په هغه آيت كي مجملاً خدای ﷻ دوی ته بیان كړی وو او په دي آيت كي يي مفصلاً بیان ورته وكړی. نو دا مفصل به پر هغه مجمل دلیل سي ،ولي چې خدای ﷻ پر هغو شیانو چې د ملكو څخه پټ وه يعني دوی ته نه وه معلوم په آسمانو او مځكه كي او په هغو شیانو چې دوی ته ښكاره فیها ، نو دا خبره دخدای ﷻ ثابته سوه چې (اعلم مالاتعلمون) نو په دي آيت كي خدای پاك ﷻ اشاره ودې ته وكړه چې ملكو ته په وخت كي

مشوري دخدای ﷻ داسي نه وای ویلي. (اتجعل فیها من یفسدفیها) آه بلکه انتظار د اظهار د حکمت الهي په خلق کي د آدم و بیان الهي ته کړی وای، ولي چي خدای ﷻ ته هغه وسوسه قلبي ددوی معلومه وه. نو خامخا دهغي وسوسي بیان په حکمت الهي سره ملکوتا کاوه. لکن چونکه دوی مراعات الادب وماهو لازم علیهم نه وکړی او په اول وار کي دمشوري هغه خبره وکړه (اتجعل فیها) آه نو خدای ﷻ دوی د تقصیر او عجز په غشي وویشتله او داسي یې ورته وویله (انبئوني) آه حتی دوی مجبوره سوي د عجز وجواب ته بقولهم(سبحانك لاعلم لنا الآیة). او وروسته ارحم الراحمین ودوی ته حکمت خپل په خلق د آدم او په خلافت الارض کي دده وملکو ته ښکاره کړی بقوله تعالی(یاادم انبئهم باسماء هؤلاء) آه. دا وو بیان د حال د آدم علیه السلام او د ملکو. والله علیم حکیم

**فائـــدة:** چي حســن البصـری ﷺ او قتــاده ﷺ وایـي چي مــراد د (ماتُبدون) څخه هغه قول د ملکو دی. (اتجعل فیها من یُفسدفیها) آه او د (ماتکتمون) څخه مراد هغه ددوی د زړو پټه خبره ده چي موږ حقداره د خلافت یو. او تر موږ اکرم مخلوق به خدای ﷻ نه کړي پیدا.

او بعض مفسرین وایي چي د (ماتُبدون) څخه د ملکو اطاعت مراد دی. او د (ماتکتمون) څخه د ابلیس معصیت مراد دی.

**پوښتنه** : کاتم خو پر دي تفسیر یوازي ابلیس وو، نو په صیغه د جمع یې څرنگه راوړی. یعني (ماکنتم تکتمون)؟

**جواب** : دا پر عادت د عربو بنا دی چي په یو قوم کي چي یو سړی جنایت

وکړي دوی ټوله قوم ته وايي: (أنتم فعلتم كذا)

**فائدة:** ددې آيت څخه دا معلومه سوه چي انسان من حيث هو مع قطع النظر عن الافراد مشرفه دی تر ملکو من حيث هم مطلقاً مع قطع النظر عن الافراد.

او بل دعلم فضيلت پر عبادت هم معلوم سو. اوبل دا هم معلومه سوه چي شرط اول دخلافت علم دی. او بل دا هم معلومه سوه چي د تعليم نسبت په فعل سره خدای ﷻ ته صحيح دی حيث قال: (وعلّم آدم الأسماء كلها) که څه هم د اسم فاعل ددغه باب نسبت يعني (مُعَلِّم) و خدای ﷻ ته نه دی روا. ولي چي معلم په عُرف کي هغه چاته وايي چي پر تعليم مزدوري غواړي. هم ددې سببه د مکاتبو ښوونکو ته معلمين وايي او و ښوونکو ته د طالبانو مدرسين وايي. يعني په قديمه اصطلاح کي، ورنه په اوسني زمانه کي بعض ښوونکي د طالبانو د مکاتبو تر ښوونکو ډير حريص دي په أجرت د تعليم، که څه هم دا أجرت متاخرينو روا بللی دی او دا هم معلومه سوه چي د حکمت مفهوم زائد دی تر علم. وإلا لتكرر في قوله (إنك أنت العليم الحكيم) بيضاوی مع زيادة.

**فائـــدة:** ددې آيت څخه دا هم معلومه سوه چي علم د ملکو زيادت قبلوي، ولي چي پر اسماء المسميات علم ودوی ته نه وو حاصل، د آدم ع په ذريعه دوی ته حاصل سو. او دا هم معلومه سوه چي خدای تر پيداکولو د مخلوق د هغه مخلوق په ټولو احوالو خبر دی.

**پوه سه!** چي علم په اعتبار د ذات خو اشرف دی تر عمل، لکن لابُدَّ للعلم من العمل ولي علم لکه درخته ده او عمل يي ميوه ده او خلکګ د

درختي د میوي څخه فائده اخلي. وقدجاء فی حدیث رواه ابوذر﷛ چي رسول اکرم ﷺ وویل چي یو وار حضور و مجلس ته د علم یعني علم الدین افضل دی تر زر رکعته لمونځ یعني نفلي. او تر پوښتنې د زرو مریضانو او تر حضور د زرو جنازو. نو چا پوښتنه څني وکړه چي تر تلاوت د قرآن هم افضل دی؟ نو علیه السلام ورته وویل (هل ینفع القرآن إلا بالعلم، و ورد فی الحدیث من اراد ان ینظر الی عتقاء الله من النار فلینظر الی المتعلمین فوالذی نفس محمد ﷺ بیده ما من متعلم یختلف ای یذهب و یجیئ الی باب العالم إلا یکتب الله له بکل قدم عبادة سنةٍ ویبنی له بکل قدمٍ مدینةٌ فی الجنة ویمشی علی الارض والارض تستغفرله ویمسی ویُصبح مغفوراً له.

درویش وايي چي دا لوی ثوابونه د هغه مُتعلم دپاره دي چي په طلب د علوم شرعیه لکه علم التفسیر او علم الاحادیث النبویه ﷺ او علم الفقه. و أصول العلوم الثلثة ومبادیها وباب ته عالم ددغو علمو ځي. نه طالب د حکمت طبعی او منطق او ریاضی وغیرها کمالایخفی.

وفی الحدیث الصحیح النظر الی وجه الوالد عبادة ای بالنظر علی وجه الشفقة والتعظیم لاوجه الغضب والاهانة. والنظر الی الکعبة المکرمة عبادة ای علی وجه الاحتساب. والنظر فی المصحف عبادة ای ولولم یکن قارئاً. والنظر إلی وجه العالم عبادةٌ. لعل المراد به العالم الصالح العامل لا العالم الفاسق المتکبر الذی یشتری بعلمه ثمیناً قلیلاً ویماری به السفهاء ویُجادل به العلماء ویُفاخر بعلمه علی العلماء و یعق اساتذته و یُعظُم اهل الدنیا. قال ﷺ من زار عالماً فکانما زارنی ومن صافح عالماً فکانما صافحنی الی آخر

الحدیث.

واعظان کین جلوه درمحراب ومنبرمیکنند ✤ چون بخلوت میروند آن کار دیگر میکنند

**پوه سه!** چي په احادیثو مبارکه وکي په شان د عالم غیرعامل بعلمه ډیر سخت وعید راغلی دی. نو هغه عالم د احادیثو مذکوره و څخه وتلی دی. په حدیث مبارك کي راغلي دي چي علیه السلام وایي چي د یو شرموښه چي په بې شپانه رمې کښ سي دونه نه بیریږم لکه د یو عالم سوء څخه چي زما په اُمت کي پیدا سي.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا لِاٰدَمَ

او په یاد که وخلکو ته هغه وخت چي موږ وویل ملکو ته چي سجده وکړئ و آدم ته.

---

**پوه سه!** چي سجده په اصل لغت کي تذلل او عاجزي ته وایي او په شرع شریفه کي ایښوول د تندي دي پر مځکه باندي په قصد د عبادت.

**فائدة:** که مراد په آیت شریفه کي د سجدې څخه معنای شرعي وي، نو مسجودله په حقیقت کي خدای جل جلاله دی او آدم علیه السلام یې صرف قبله د سجدې ده. دپاره د تعظیم د شان دده او دپاره د اقرار د ملکو په هغه شي سره چي دوی اولاً انکار ځني کاوه یعني فضیلت د آدم. او دلیل ددي چي مراد سجده شرعي ده هغه حدیث دی چي روایت یې امام احمد رحمه الله او مسلم رحمه الله کړی دی د ابوهریره رضی الله عنه څخه چي څه وخت بني آدم سجده وکړي یعني چي آیت د سجدې ووایي، شیطان ګوښه سي او وژاړي او ووایي چي اې افسوس مالره، بني آدم په سجده سره امر سو او سجده یې وکړه، نو ده لره جنت دی. او زه په سجده سره امر سوم، ما

سجده ونه کړه، نو مالره دوږخ دی. نو پر دي تقدیر لام د (لآدم) په معنا د الی دی. یعني الی جهة آدم لکه په دې قول کي د حسان ﷺ په مدح کي د سیدنا ابوبکرصدیق ﷺ: (ألیس اولُ من صلّی لِقِبْلتکم واعرف الناس بالقرآن والسُّنن ای قبلتکم) او بعض مفسران رح وایي چي آدم خدای ﷺ سبب د سجدې د ملکو وګرځاوه، یعني دپاره د توبې د ملکو چي اول وار ددوی څخه داسي یوه خبره سوي وه چي ظاهراً یي صورت د اعتراض وو. نو پر دې تقدیر لام د (لآدم) دپاره د سببیت دی نحو (أقِمِ الصلوة لدلوك الشمس) او که چیري مراد د سجدې څخه معنای لغوي وي، یعني صرف تواضع او تذلل و آدم ته دپاره د اعزاز او تعظیم د آدم چي هغه صرف انحناء ده لکه په وخت کي د تعظیم د یوچا بل سړي ته سر ورته کښته کړي. لکه سُجده د ورونړو د یوسف علیه السلام وده ته کماورد فی القرآن وسیأتی انشاءالله تعالی بیانه. نو بیا هیڅ اشکال په سُجده کي د ملکو و آدم ته نسته، ولي چي حرام خو سجده شرعي وغیر ته دخدای ﷺ ده. او سجده لغوی خو په پیشو امتو کي زموږ د سلام په ځای کي وه، دپاره د تحیه. او موږ یې اوس مکروه وبولو، ولي چي دهغي په ځای کي موږ ته السلام علیکم تحیه یو دبله وګرځوله.

امام بغوی ﷺ وایي چي دا قول اصح دی. ولي چي توجیه د سجدې ته حاجت نسته.

**پوښتنه** : ملکي او شیطان ولي په تعظیم د آدم سره مامور سوي؟

**جواب** : دپاره دحق د تعلیم الاسماء چي آدم ودوی ته وکړی.

**تفریع**: چونکه طالبان دعلومو په خپل قوت عقلیه د کتـابو په مغز نه پوهیدله او استـاذانو دوی پوه کړه، نو ددې پـه مقتضی باید شاګردان د استاذانو تعظیم او احترام وکړي. او هغه شاګردان چي د استـاذانو احترام ظاهراً و باطناً ولـري، هغـه لکـه ملکي دي او هغـه بعـض شـاګردان چي د استاذانو احترام نه لري بلکه داسي خبیث النفس شاګران هم سته چي د استاذانو احترام خو څه کوي په مقابل او پر ضد د استـاذانو ولاړ وي. هغه شاګردان لکه ابلیس دي او بیله ویلو د استـاذانو، د استـاذانو دخوا عاق دي.

**فائدة**: دعقوق د استاذانو ذکر او تفصیل او په زړه پوري بیان په حواله د کتـابو د تفاسیرو او د فقه د کنز الدقائق په پښتـو شرح کي او پـه دوهم جلد کي فقیر کړی دی. او مُستقل فصل مي ورته وضع کړی دی.

از خداخواهیم توفیق ادب ✣ بي ادب محروم ماند از فضل رب

**پوه سه!** چي ملا عصام الدین په حاشیه کي د بیضـاوی وایـي: ففیه بیان حق المعلم علی المتعلم حتی لوکانت السجدة الشرعیة جائزةً للمخلوق لاستحقها المعلم علی المتعلم انتهی.

**فائدة**: سجده کول و آدم ته په هره معنا چي وي څلرم نعمت دخدای جل سلطانه وتولي ذریې ته د آدم علیه السلام دی فعلیهم ان یُفکروا فی هذه النعمة ویؤمنوا بسیدالبشر صلی الله علیه وسلم ففیه شناعة علی المشرکین و الیهود والنصاری وغیرهم حیث لم یشکروا تلك النعمة ولم یؤمنوا بمحمد صلی الله علیه وسلم

# فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبۡلِيسَ أَبَىٰ وَٱسۡتَكۡبَرَ

يعني وروسته تر امر الهي په سجده سره و آدم ته سجده وکړه ملکو يعني ټولو په اتفاق سره لکه چي په بل ځای د قرآن مبارک چي رابه سي (فسجدالملائكة كلهم أجمعون) والقرآن يفسر بعضه بعضاً کما هوالمقرر فی التفاسير والاصول والفقه، مګر نه ابليس. او هغه منع وکړه دسجدې کولو څخه د آدم. او د امر الهي مخالفت يې وکړی او ځان يې لوی وباله تر آدم عليه السلام. يعني نو به څرنګه دی آدم ته سجده کوي، که سجده په معنا د نفس تعظيم د آدم وي. او که سجده و خدای ﷻ ته او آدم يې قبله او وسيله وي کمامرّ من المعنيين للسجدة.

---

**پوه سه!** چي **تکبر** دادی چي يو څوک ځان تر بل مشرف او بالا وبولي. او **استکبار** طلب دی د لويي په تکلف سره، ولي په شافيه کي وايي چي باب د تفعل اکثر دپاره د تکلف راځي په مجرد کي دهغه باب چي کبر دی فيما نحن فيه. او سين دپاره د طلب دی.

**پوه سه!** چي قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چي ددې آيت څخه يعني (وإذقلنا للملائكة)آه دا معلومه سوه چي آدم عليه السلام افضل دی تر دغو ملکو چي امر د سجدې ورته وسو، که څه هم تفضيل دده په يوه وجه سره دی. يعني من حيث العلم. ولي چي ملکي خو په عبادت قديمه کي تر آدم افضل دی. او دا هم معلومه سوه چي ابليس د جنسه څخه د ملکو وو، ولي که دی د ملکو څخه نه وای، نو امر د سجدې د ملکو وده ته نه شامليدی، نو دده سجده نه کول (ابا) او استکبار او معصيت به نه وای او دی به مستحق د لعنت او د ذم او عقاب به نه وای.

او په بل آیت کي خدای جل سلطانه وابلیس ته وایي چې تا ولي سجده آدم ته و نه کړه (إذ أمرتك) به څرنګه صحیح سي، ولي چي ابلیس خو جواب لري چي امر د سجدې خو تا ملکو ته کړی وو، زه خو ملکه نه یم او بله خبره داده چي استثناء د ابلیس به څرنګه صحیح سي، یعني في قوله تعالی (فسجدوا إلا إبلیس) ولي اصل په استثناء کي خو استثناء متصل ده. او په استثناء متصل کي خو دخول دمستثنی به په مستثنی منه کي شرط دي نحو جائني القوم إلا زید کما تقرر فی النحو.

**پوښتنه** : په بل آیت کي دقرآن مبارك خو داسي راغلي دي: (كان من الجن) الآیة؟

**جواب** : دهغه آیت معنا دا کیدای سي چي ابلیس د جن څخه په جهت د فعل د معصیت او استکبار دی که څه هم د ملکو څخه وو په ذات کي.

**پوښتنه** : د ملکو په باره کي خدای ﷻ داسي وایي: (بل عباد مکرمون لایعصون الله)الآیة، نو پر مذکور جواب خو ابلیس سره ددي چي د ملکه و څخه وو او معصیت او انکار د امرالهي دسجدې یې وکړی؟

**جواب** : عصمت د ملکو په اعتبار د اغلب او اکثر دی. وثانیاً چي د ابن عباس رض څخه روایت دی چي د ملکو څخه یو قسم ملکي دي چي هغه توالد او تناسل لري چي وه هغه ملکو ته جن وایي. او عصمت دهغو خاصه نه ده. او ابلیس د هغه قسمه څخه وو. او بعض مفسرین رح وایي چي ابلیس ملکه نه وه، لکن چونکه دی جني و اُحُد یعني یو تن وو او ملکي ډیري وې او دی په زرو ملکو کي پټ وو، نو ملکو ته یې تغلیب ورکړی پر ده، نوګویادی هم ملکه و، نو استثناء متصل یې صحیح سو.

**پوه سه!** چي دا قول یعني چي ابلیس ملکه نه وو قول د حسنؒ او قتادهؒ دی، لکن اول مذهب دی د علیؓ او ابن عباس رض، نو هغه قول راجح دی. **ولهذا ذهب اکثرالمفسرین رح الیه.**

درویش وايي چي بعضي مفسرین وايي چي مامور بالسجود لآدم جن هم وه یعني لکه ملکي، لکن په دي آیت کي **(واذقلنا للملائکة)** آه دجن ذکر یې ونه کړی، ددي سببه چي ملکي خو تر جن افضلي او اشرفي دي، نو اکابر چي ملکي وي مامور بالسجود سوې، نو اصاغر په طریق اولی مامور بالسجود دي. نو پر دي تقدیر ضمیر د **(فسجدوا)** راجع وملکو او جن دواړو ته دی. نو استثناء د ابلیس په استثناء متصل سره صحیح سوه. نو گویا داسي وویل سول: **(فسجدا المأمورون باالسجود الاّ ابلیس)** آه

درویش وايي چي دا توجیه که څه هم منقوله نه ده، لکن معقوله ده فافهم

**فائدة:** قاضي بیضاويؒ وايي چي ملائکه ټولي معصوم د گناه نه دي، که څه هم غالب په دوی کي عصمت دي لکه انسانان چي معصومین نه پکښي سته، لکه انبیاء علیهم السلام، که څه هم غالب په دوی کي عدم عصمت دي آه.

درویش وايي چي دا جواب د مشهورو څخه مخالف دی. کمالایخفی والله اعلم بالصواب.

**پوه سه!** چي بعضي مفسرین رح وايي چي په مابین کي د ملکي او د جن عموم او خصوص من وجه دی، نو جن هغه ته وايي چي استعداد د خیر او شر دواړه پکښي وي، نو که داسي وو چي بیله خیر یې بل کار نه

کاوه، نو هغه ته ملکه وايي. او که يې بيله شره بل کار نه کاوه هغه ته شيطان وايي.

درويش وايي چي دا حاصل د بيضاوي ددي عبارت (ولعل ضرباً من الملائكة لايُخالف الشياطين بالذات وانما يخالفهم بالعوارض والصفات كالبررة والضقة من الإنس والجن يشملهما وكان ابليس من هذا الصنف كما قاله ابن عباس رض فلذالك صح عليه التغيير من حاله والهبوط عن محله. كما قال عزّ وعلا: «إلاّ إبليس كان من الجن ففسق عن امر ربه» إلى أن قال وهذا اشبه بالصواب اوفق للجمع بين النصوص يعنى لايحتاج الى القول بالتغليب والاستثناء المنقطع والاكتفاء كمامرّ من قبل والعلم عندالله)

درويش وايي چي د فواندو څخه ددي قصي د شيطان دا ښکاره سوه چي استکبار ډيره مهلکه گناه ده او گاهي سړی وکفر تـه رسوي لکه ابليس. سعدي

تکبر عزازیل را خوار کرد ✣ بزندان لعنت گرفتار کرد.

هذا ماعندی والله اعلم بالغيب.

# وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۴﴾

او وو شیطان یعني ابلیس د کافرانو څخه

**پـوه سـه!** چي دلتـه يـو سـوال او جـواب طلب وارد يږي چي (كـان) لفظ ماضي دی او ابليس خو دمخه تر امتناع څخه د سجدې و آدم تـه كـافر نـه وو. بلكه ملكو به په عزازيل ورته ويله يعني معزز بنده دخدای ﷻ ؟

**والجواب عنه بوجوه :** بعض مفسرين رح وايي چي (كان) په آيت كي په معنا د (صار) دی يعني وګرځيدی اوس شيطان د كافرانو څخه. وجه د كفر يې داده چي ده انكار او استقباح د امر الهي وكړه. دی امر سو په سجده وه آدم ته نه ددې سببه لكه چي بعض مفسرين رح چي وايي چي امر د سجدې دپاره د وجوب وو، ابليس دهغه ترك وكړی، ولي چي په ترك د واجب بيله انكاره خو څوك نه په كافر كيږي كما فی تارك الصلوة وغيرها من عُصاتُ المؤمنين. او پر وجه د انكار او استقباح د امر اباحت هم سړی كافر كيږي. قال الله تعالى: (وإذا حللتم فاصطادوا) يعني چي تاسي د احرام څخه د حج يا د عمرې خلاص سی بيا نو ښكار كوئ. دا خو امر اباحت دی او سره ددې چي منكر يې كافر دی. او مستقبح يې هم كافر دی. فماقال البيضاوی رحمه الله فی فوائد الآية إنه يعلم منه انّ الامر للوجوب ليس شيئ فتأمل.

اوبعض مفسران وايي چي ماضي پر خپل حال پاتـه ده والمعنا كان فی علم الله من الكافرين. نو ددې جواب حاصل دادی چي كافرْ فی الحقيقة هغه څوك دی چي خاتمه يې پر ايمان نه وي، كه څه هم په وخت موجود كي مومن وي. دا دوه جوابونه بيضاوي او روح البيان او تفسير مظهري

په اتفاق ویلي دي. تذلیلٌ للجواب الثانی مذهب د اهل السنت دادی چي سعید یعني مومن ګاهي شقي یعني کافر کیدای سي. او شقي یعني کافر ګاهي سعید یعني مومن کیدای سي. نو مسلمان که کافر سي والعیاذبالله نو دی مسلمان وو تر وخت د کفر په کفر سره د تولو اعمال حسنه من الصلوة والزکوة والصوم والحج وغیرها. تولو باطل سوه. که څه هم دی بیرته اسلام ته رجوع وکړي. او کافر که ایمان راوړي، نودی تر وخته د اسلام کافر وو او دی په اسلام راوړو سره مسلمان سو او د کفر په وخت کي چي یي ګناوي کړي وي هغه وده ته عفوه سوه. نو مسلمان ته ښايي چي په خپلو حسنه عملو سره دي نه مغروره کیږي، ولي چي خاتمه مستوره ده.

او بعض مفسران رح وايي چي (کان) پرخپل اصل معنی باقي دی. او معنا د آیت داده: وکان ابلیس من القوم الکافرین الذین کانوا فی الأرض قبل خلق آدم یعنی الجن، نو دا آیت داسي دی لکه هغه آیت (کان من الجن) الآیة.

او بعض علماء رح وايي چي ابلیس په وخت کي د إشتغال بالعبادة منافق کافر وو. وفی الحدیث النبوی ﷺ راغلي دي چي د علیه السلام څخه چا پوښتنه وکړه چي خیر د خلګو څوک دی؟ علیه السلام ورته وویل چي هغه سړی دی چي عمر یې دراز وي او عمل یې ښه وي او بیا هغه سړي پوښتنه څني وکړه چي فأیُّ الناس شرٌّ؟ علیه السلام ورته وویل چي هغه سړی دی چي عمر یې دراز وي او عمل یي بد وي. او د شره څخه یي بیره وي او د خیر امید نه ورته کیږي.

وفي روح البيان : رابعه عدوي رحمه الله وسفيان ثوري رحمه الله ته وویل چي ته په شمير ورځي يې، نو چي يوه ورځ تيره سي نو ګويا ستا بعض اجزاء کم سوه. او قريب ده چي په مرور د ايام د عمر دي ټوله اجزاء ستا د مينځه ولاړ سي. نو بايد ته په عمل کي د آخرت چي ستا ورته مخ دی کوشش وکړې. او دا مه وايه چي درهم او دينار ولاړی او يا مال راغلی، بلکه هميشه بايد ووايې چي زما د عمر يوه شپه او ورځ کمه سوه او ما څه عمل پکښي وکړی؟ فمرور الايام والليالي ينقضي العمر العزيز آخر الامر.

درويش وايي چي داوو نصيحت د يوې صالحه ښځي و عالم محدث مشهور ته رحمهما الله تعالى.

ديو عالم زاهد عابد رحمه الله په وخت کي د مرض الموت دا وينا وه چي غم نه لرم چي د دارالاخران يعني دنيا څخه وزم، بلکه زما غم پر دې دی چي څرنګه يوه شپه د عمر ټوله په خوب مي تيره کړه؟ او څرنګه يو ساعت د عمر دخدای ﷻ د ذکر پر ما په غفلت تير سو. روايت حسن بصري رحمه الله وه خپلو مريدانو سپين ږيرو ته يو وخت داسي وويل : يامعشر الشيوخ ماينتظر الزرع اذا بلغ قالوا الحصاد. يعني څه انتظار کوي کښت چي پوخ سي؟ خلکو ورته وويل چي د لو کولو انتظار لري. يعني چي کښت به د مابينه څخه خي. او بيا حسن رحمه الله وځوانانو شاګردانو ته وويل: يامعشر الشباب فإن الزرع قد تدركه الآفة قبل ان يبلُغ. يعني اي ډلي د ځوانانو! کښت ته ګاهی آفت قبل يعني دمخه تر پخيدو ورسيږي. يعني ځوانان دي په ځواني نه غره کيږي، ولي د مرګ نيټه او اجل نه دی معلوم او سپين ږيري خو د مرګ د لو او فنا وخت ته بيخي نژدي دي.

قال بعض اهل المعرفة شعراً:

الا مهّد لنفسك قبل موتٍ ✤ فإن الشيب تمهيد الحمام

وقد جدّ الرجل فكن مجداً ✤ لحط الرحل في دار المقام

درویش وايي چي علماء احترام او صلحاء کرام وايي چي په ورځ د قيامت به پر سري، که صالح وي او که ګناه کاره وي. د دنيا په ژوند پسي به ارمان کوي چي ولي دي د دنيا په ژوند کي زيات کوشش په اعمال صالحه وو کي نه وکړي. او ګناه کار به وايي چي وي د دنيا په ژوند کي تا توبه پر خپلو ګنهو نه وکښه.

دا دنيا ده چي تيريږي په ارمان ✤ کوچ کوونکی که نبيان که وليان

وَقُلْنَا يَآدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ

او مونږ وويل و آدم ته چي اې آدمه اوسيږه ته او ستا ښځه يعني حوا چي ام البشر ده په جنت کي يعني چي دارالسرور دی او دارالنعم الکثيره دی بحيث لايُحيط باحصاء نعمها عددٌ.

---

**فائدة**: امام بغوی رحمه الله وايي چي چونکه آدم عليه السلام خپل د جنس يعني انسان ملګری نه درلودی، نو دی چي بيده سو نو ملکو دخدای ﷻ په امر دده د چپه طرف څخه يوه کوچنی پوښتی وکښه او هغه په ماده خلق دده زوجي حواء رض وګرځول. نو حواء ډيره ښائيسته انسان ښځه وه، نو آدم عليه السلام دخوبه راويښ سو چي وي کتل حواء يي وسرته ناسته وه، نو آدم عليه السلام ورته وويل: (من أنت) ته څوك يې؟ هغې ورته وويله زه ستا ماينه يم. زه خدای ﷻ ددې دپاره پيدا کړم چي ته په ما

سره مطمئن اوسې او زه په تاسره.

**پوه سه!** چې (اُسکن) مشتق دی د (سکنی) څخه يعنې اوسيږئ ته ومايته په جنت کې چې عربي معنا يې لبث او استقرار دی لا من السكون ضد الحركة لان السكون المذكور ليس بنعمةٍ بل النعمة الاستقرار دی سره د ازادۍ په ميوو کې د جنت.

**پوښتنه** : څه حکمت الهي دی چې آدم عليه السلام يې يوازې مخاطب او حواء يې پر عطف کړه او دواړه يې په يوه پلا مخاطب نه کړه؟

**جواب** : اشاره ودې ته ده چې اصل مقصود په خطاب سره آدم عليه السلام دی او حوا يې تبع ده.

**فائـــدة:** دجنـت څخـه مـراد دارالثـواب دی، ولـي لام تعريـف دپـاره د عهدخارجي دی او بيله دارالثوابه بل معهود نسته کمالايخفی. او معتزله وايي چې دارالثواب اوس نسته او هغه په قيامت کې جوړيږي، نو دوی وايي چې د جنت څخه مراد يو باغ دی چې په مځکه کې دْ فلسطين خدای پاك دپاره د امتحان د آدم جوړ کړی وو. او دوی د (إهبطوا) ترجمه دا کوي چې د فلسطين د باغه څخه هند ته ولاړسي.

درويش وايي چې علامه تفتازاني رحمه الله وايـي چې دمخه تر ظهـور د معتزله وو اجماع د امت مرحومه من الصحابة رض والتابعين وتبعهم رح پر دې وه چې مراد د جنت څخه دارالثواب دی. او فاضل لاهوری رحمه الله وايي چې حمل د جنت پر بستان الدنيا باندې لکه څوك چې په دين بازی کوي. اود اجماع الامت پر ضد د قرآن مبارك ترجمه کوي. **فقولهم مردود جدًا.**



Scanned by CamScanner

په تفسير قرطبي کي وايي چي ابليس چي استکبار او انکار د امر الهي وکړی او دی کافر سو، نو خدای ﷻ دی د جنته وشاړه او آدم عليه السلام ته يي وويل: (أُسكن أنت)آه. او روح البيان وايي چي مراد د جنت څخه دارالثواب دی باجماع المفسري رح.

درويش وايي چي قصر د اجماع پر مفسرينو رح باندي تقصيراً دی لأنه قد سبق ان قول د معتزله وو د اجماع څخه د ټولـه امت مرحومه مخالف دی.

**فائدة**: درويش موافق د روايت سره سم د ابن مسعود رض وويل چي حواء د يوې کوچنی، چپه پښتی، څخه خدای ﷻ پيدا کړه. پر دې خبره بعض خلک سوال کوي چي دا نقصان د يو جزء د بني يعني آدم دی او پر انبياء عليهم السلام باندي نقصان روا نه دی.

**جواب**: دادی چي دا خلق که څه هم نقصان دی ظاهراً لکن په دې کي تکميل سته د آدم حقيقتاً، ولي په حواء رض دده وحشت او دهشت دفع سو کما مرّ سابقاً. په روح البيان کي وايي چي حواء رض وروسته تر وفات د آدم اوه۷ کاله او اوه۷ مياشتي ژوندی وه. او عمر ددې نه سوه اوه نوي ۹۹۷ کاله ته رسيدلی او بيا وفات سوه. او قبر يې په جده کي دی. او د آدم عليه السلام قبر په سرانديپ کي دی. کذا فی کتب التواريخ الاسلامية.

**فائـدة**: قدرت الهي دی چي بعض انسانان بې موره او بې پلاره پيدا کړي دي يعني آدم او بعض انسانان يې بې پلاره پيدا کړي دي يعني عيسی عليه السلام او بعض انسانان يې بې موره، که څه هم پلار مانند لري يعني حواء رض او بعض انسانان ته يې مور او پلار دواړه ورکړي

لکه عموماً اولاد آدم علیه السلام. وهذا من عجائب قدرته تعالی التی تحبر فیه العقول.

**مسئلة**: په ازدواج یعني په ماینه کولو کي ډیري فائدې دنیوي او اخروي سته. او خدای ﷻ په قرآن کریم کي ټوله انبیاء علیهم السلام متزوج ذکر کړي دي. مګر یو یحیی علیه السلام یې حصور ذکر کړی دی یعني د ښځي سره جماع نه کوونکی، لکن بیا هم یحیی علیه السلام نفس نکاح وکړه دپاره د موافقت د نورو انبیاء علیهم السلام سره په سنت کي د نکاح، لکن جماع یې نه ورسره وکړې. ولي چي دده په شریعت کي ترک الجماع عزیمت وو او جماع کول رخصت وو.

په اشباه والنظائر کي وایي چي موږ عبادت مشروعه د وخت ښځه د آدم ﷺ بیا تر ورځي پوري دقیامت او بیا په جنتو کي بل نه لرو بیله نکاح او ایمان بالله ﷻ. او په بعضي کتابو کي وایي چي فضیلت د کوروالا یعني ماینه والا پر بې کوره سړي دونه دی لکه د مجاهد فی سبیل الله پر قاعد عن الجهاد. او یو رکعت د کور والا افضل دی تر اویا ۷۰ رکعته د بې کوره. او فائده د نکاح بقاء د نسل انساني ده. او ځان ساتنه ده د زنا څخه، لکن په روح البیان کي وایي چي افضلیت د نکاح تر سنه یو زر او سل ۱۱۰۰ پوري دی لقوله علیه السلام إذا أتی علی اُمتی مائة وثمانون سنة بعدالالف فقد حلت العزوبة والعزلة والترهب علی رؤس الحبال.

درویش وایي چي دغه وخت د قتل او قتال او د فتنو دی او دغریبانو د غلبې دی پر ممالك اسلامیه و. قال السعدی رحمه الله

زنان باردار ای مرد هوشیار + اگر وقت ولادت مار زایند
ازان بهتر بنزدیك خردمند + که فرزندان ناهموار زایند

**فائدة:** بعضي جاهلان کسان وايي چي آدم علیه السلام ولي د درختي منهی عنها څخه خورك وکړی چي د جنت څخه دی او حواء رض مځکي ته راکوز سوه؟

**والجواب** : خدای پاك دمخه ترخلق د آدم ملکو ته وویل: (إني جاعل في الأرض خليفة)آه، نو خلافت دمځکي خو دا غواړي چي په مځکه کي به ډیر انسانان وي او آدم به د هغو لاربنود وي، نو جنت چونکه ځای د توالد و تناسل نه وو، نو خدای ﷻ آدم ته همجنسه کوروالا یعني حواء رض وربه برخه کړه او مځکي ته يي راواستول ترڅو چي ددوی دوو د ازدواج سره نور انسانان په مځکه کي پیداسي. او ددوی دوو ته يي طویل عمرونه ورکړه، حتی ددوی په ژوند کي نسل ددوی پر مځکي ډیر سو او د آدم خلافت پر دوی باندي قائم سو ثم و ثم إلی یوم القیامة وباقي التفصیل سیأتي في تفسیر الآیة التالیة ان شاء الله تعالی فانتظره.

وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا

او تاسي خورک کوئ د جنت څخه يعني د ميوو څخه د جنت

**فائدة:** په خورك كي د ميوو دجنت يې دواړه مخاطب كړي يعني په يوه صيغه د (كُلا) ولي چي په خورك د ميوو دوى دواړه سره برابر دي بخلاف السكنى فانه يختص بالزوج والزوجة تبع له فلهذا قال: (ياآدم اسكن انتَ و زوجك)آه وقدمرٌ فائدته من قبل. او معنا د (رغداً) خوراك دى په پراخه توګه. او معنا د (حيثُ شِئْتُماَ) داده چي په هر ځاى كي د جنت چي ستاسي خوښه وي. حكمت د پراخى د خورك د تولو ميوو څخه د جنت او په هر ځاى كي د جنت چي وي دادى چي د آدم او حواء عذر زائل كړي په خورك كي د درختي منهى عنها څخه. ولهذا قال عزوجل بعد توسيع الامر بالاكل من ثمار الجنة التى لايحصيها عدد.

وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّٰلِمِينَ ﴿٣٥﴾

او تاسي مه نژدې كيږئ ودغي درختي ته، نو به تاسي وګرځئ د ظالمانو د ډلي.

**پوه سه!** چي مقصود خو نهى د اكل څخه د ميوي د درختي دى لكن ظاهراً يي نهى د قرب څخه د درختي وكړي. مبالغةً فى النهى عن الاكل ومبالغةً فى تحريمه كمافى قوله تعالى (ولاتقربوا الزنا) ولي چي قرب و منهى عنه ته ميل قلبي او نفساني او شيطاني وهغه شي ته پيدا كوي، چي په هغه منهى عنه كي به واقع سي. كمافى قوله عليه الصلوة والسلام



Scanned by CamScanner

من رعى حول الحمى يوشك ان يقع فيها او كماقال ﷺ، نو بناء على هذا نژدې والى و منهى عنه ته مكروه دى.

**فائدة**: مشهوره داده چې مراد د درختې څخه درخته د غنمو ده. وهو قول ابن عباس رض وكعب ﷺ وفى اطلاق الشجرة عليها مبالغةٌ كما لايخفى. او ابن مسعود رض وايي چې درخته منهى عنها د انګورو درخته وه. او ابن جريج ﷺ وايي چې درخته منهى عنها د انځر درخته وه. او علىﷺ وايي چې درخته د كافور وه. وقال القاضى البيضاوى ﷺ والأولى ان لايتعين من غير قاطعٍ كما لم تعين فى الآية لعدم توقف ماهو المقصود عليه كمالايخفى.

**فائدة**: علماء او اهل تفسير په دې كې اختلاف لري چې نهى د (لاتقربا)آه تحريمي وې او كه تنزيهي وې؟ بعض علماء وايي چې نهى تحريمي وې په دليل ددې چې په جواب كې د نهى خداى ﷻ داسې وويل: (فتكونا من الظالمين) دوى وايي چې مرتكب ته د صغيرې ګناه يعني چې نهى تنزيهي سي ظالم نه ويل كيږي. او بل دا چې ددغه اكل منهى په سبب خداىﷻ پر دوى كالي توى كړه او د جنت څخه يې مځكې ته راواستول. دوى وايي چې د مكروه تنزيهي د كولو خو دونه سخته جزاء نه وي، نو پر دې دوى دا بناء كوي چې انبياء عليهم السلام د كبيرې ګناه د كولو څخه معصوم نه دي نه قبل النبوة او نه بعد النبوة . او ډير نور دلائل هم وايي په دې باره كې. يعني په رد كې ددې قول.

درويش يوه په زړه پورې رساله تصنيف كړې ده چې نوم يې (كشف الغطاء عن عصمة الانبياء) دى او په دې رساله كې ما ددې مذهب تولو

دلائل رانقل کړي دي او دهغو جوابونه د مفسرانو رح او د متکلمين رح او محدثينو رح او فقهاوو رح په خجسته اقوالو سره ورکړي دي إن شئت التفصيل لدلائلهم والجوابات الفقير عنها فارجع الى الرسالة المذکورة فانها کتفاريق العصا. او دوی د (فتکونامن الظالمين) ترجمه داسي کوي ای (الذين ظلموا انفسهم بارتکاب المعاصی ای الکبائر) او چه نهی تنزيهي سي، نو يې ترجمه د آيت مذکوره داده چي تاسي به وګرځی د هغوکسانو څخه چي داسي فعل وکړي چي ددوی وکرامت ته تاوان وي او ونعمتو ته هم. تفسير مظهري يې اوله ترجمه کړيده المذهب الصحيح ماذکره عياض فی شفائه. او درويش ددغه محدث قولونه د ډير ځايو څخه په خپله رساله کي رانقل کړي دي. او حاصل يې دادی چي انبياء عليهم السلام د کبائرو ګنهو څخه عمداً قبل النبوة او بعدالنبوة معصوم دي په قيد د عمدقتل د موسی عليه السلام چې قبطي يې په سُکه وواهه هغه مړ سو.

او دمکروه تنزيهي څخه يعني فعل د خلاف الاولی او دقسمه څخه د حسنات الابرار سيئات المقربين معصوم نه دي. قال نجم الدين وهو من الاولياء الکبار واستحقاق آدم عليه السلام اللوم بالنهی التنزيهی من قبيل حسنات الابرار سيئات المقربين. ددې سببه دی چي رتبه د انبياء عليهم السلام چونکه ډيره بلند ده، نو مکروه تنزيهي هم ودوی ته عتاب الهي او لوم متوجه کيږي چي افرادو ته د امت پر مکروه تنزيهي دونه لوم او عتاب نه متوجه کيږي کما قالوا ان العطايا علی ظهر البلايا. آه درويش وايي چي علماء په اتفاق وايي چي هرڅونه چي د بنده وخدای ﷻ ته قرب زياتيږي هغونه يې امتحان د رب العزت دخوا ډيريږي او سختيږي. حتی اهل تصوف وايي چي دبعض اهل الله او مقربينو دپاره د مکروه تنزيهي

کول تر نه کولو ګټور ثابتيږي. په دې معنا چي د مقرب بنده څخه چي مکروه تنزيهي په بعض اوقات کي صادر سي، دی دونه شرمنده ګي او توبهٔ او استغفار او ژړا او عجز او انکسار مختاره کړي چي قرب الهي يې نور زيات سي.

او د يو شيخ څخه چا پوښتنه وکړه چي ولي آدم ﷺ پس لـه نهی د منهی درختي څخه خورك وکړی او ځان ته يې تاوان ورساوه؟ شيخ مرحوم جواب ورکړی چي آدم په نزول کي و مځکي ته څه تاوان وکړی؟ دوه نفره د جنت څخه مځکي ته راغله او په ورځ د قيامت د کرورو اولادو سره به جنت ته بيرته ورسي چي په جمله کي د هغو به يو لك څليرويشت زره ۱۲۴۰۰۰ تخميناً انبياء عليهم السلام هم وي. د شيخ ابومدين الغربي قدس سره څخه چا پوښتنه وکړه چي ولي آدم پس لـه نهي الهي خورك د درختي د ميوي وکړی؟ شيخ مرحوم ورته وويله چي که آدم ﷺ په دې خبر وای چي زما د نسله نورمحمدي سيدالبشر ﷺ هم پيدا کيږي لصار يأکل عروق الشجرة المذکورة فکيف بثمرها ليُسارع الخروج الى وجه الأرض ليظهر الجمال المحمدی والکمال الاحمدی صلى الله عليه وسلم.

درويش وايي چي دا مبحث ډير اوږد دی، نو پر طالب الحق والصواب والتفصيل باندي لازمه ده چي رساله د کشف الغطاء دي دستياب کړي. اوبه ښه غور دي مطالعه کړي.

باعث د تصنيف د عاصي ددغي رسالې دا وو چي په قندهار کي يو عالم يو وخت پيدا سو چي د بعض عباراتو د شرح العقائد او د فتاوی عالمګيري د نه پوهيدو په سبب يې دجمعې په خطبو کي جهاراً دا وويل چي انبياء عليهم السلام پس له نبوته د کبائرو ګنهو څخه معصوم نه دي. او دا يې هم يوه ورځ د جمعې په خطبه کي چي اکثر عوام او علماء

دجمعي دلمانځه دپاره هم حاضر وه، داسي وويل چي زه د محمد ﷺ سره خو محبت کوم، لکن خدای يې نه بولم يعني چي د ګناه څخه معصوم بنده وو، نو ددې وينا په سبب په عوامو او علماوو کې نوی اضطراب پيدا سو، ولې دا قول دهغه عالم د اهل سنت والجماعت د عقيدې څخه مخالف وو او د حشويه مذهب وو. قصه ډيره اوږده ده چي درويش په کشفُ الغطاء کي په تفصيل بيان کړې ده، خو اخيرالامر بعض علماء د قندهار درويش ته راغله چي ته په رد کي د قول دهغه عالم، بلکه په رد کي د مذهب د حشويه يو کتاب تصنيف کړه چي دا فتنه د قندهار څخه دفع سي. او په آئنده وخت کي بيا دا فتنه سر راپورته نه کي. او هغه عالم هم خپله خطا ومنله. دا وو سبب د تصنيف د رسالې مذکورې وهوالموفق في الامور کلها وعليه التکلان.

## فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَٰنُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ

**پوه سه!** چي ددې آيت دوه تفسيره دي. اول: (صادر کړی شيطان ذلت د دوی په سبب د درختي يعني په سبب د خوړک د درختي) نو پر دې تفسير (عن) سببي دی. دوهم: (وايستل او لرې کړه شيطان دوی د جنت څخه) نو پر اول تفسير ضمير د (هاء) راجع دی و شجره ته او پر دوهم تفسير راجع دی و جنت ته. او (عن) پر خپله معنا دی.

**پوه سه!** چي د دوهمې معنا تائيد کوي قرائت د حمزه رحمه الله (فازالهما) يعني ګوښه کړه شيطان دوی د جنت څخه

**پوښتنه**: شيطان ته خدای ﷻ وويل (اخرج فانك رجيم) نو د شيطان او آدم و حوا څرنګه ملاقات سره وسو، چي د دوی سره خبره وکړي

**جواب** : بعض مفسـران رح وايي چي شيطان صورت ورته بدل کړی، نو هغه خبري ورسره وکړې او خبرې هغه دي چي په بل آيت کي راځي (هل أدلك على شجرة الخلد وملكٍ لايبلى) او يا داقول د ابليس : (مانهاكما ربكما عن هذه الشجرة الا تكون ملكين او تكونا من الخالدين). او د قسم اخيستل د شيطان ودوی ته. المذكور في قوله تعالى: ( وقاسمهما اني لكما من الناصحين).

او بعض مفسرين رح وايي چي پر طريقه د وسوسې يې دا خبرې ودوی ته وکړي لکه زموږ سره د وسوسې د لارې خبرې کوي.

او بعض مفسرين رح وايي چي شيطان د دخول څخه د جنت ممنوع وو پر پخواني حال يعني د عزت او احترام په توګه او د وسوسې او ذلت د دخوله څخه نه وو ممنوع، دپاره د امتحان د آدم‌ و حوا.

اوبعض علماء وايي چي شيطان په دروازه کي د جنت ودريدی او آدم او حوا ته يې ور نارې کړې او خبرې يې ورسره وکړې.

او امـام بغـوي وايي چي آدم چي د جنت نعمتونه او ميوې وليدې، دا يې وويل (لو أنّ لي خلداً) نو شيطان د موقع څخه فائده واخيستل، نو ورغلی د آدم او حوا په مابين کي ودريدی (وهما لايعلمان انه ابليس لتغيره الصورة) نو شيطان وژړل او نوح يعني په زوره بغاري يې شروع کړي وهو اول من ناح و ورث هذا النوح الى النساء غالباً في وقت من ماتَ من اقاربهن و الى الرجال نادراً. نو آدم او حوا ورته وويل چي پر څه شي ژاړې؟ شيطان ورته وويل چي ستاسي پر حال ژاړم، ولي تاسي به مرې يو وخت او دا نعمتونه د جنت به ستاسي څخه پاتيږي. نو آدم او حوا

دده په دې خبره ډیر غمجن سوه او شیطان ته یې وویل چي د چارې ښوونه هم راته وکړه! قال یعنی ابلیس : (هل أدلك علی شجرة الخلد) آه او قسم یې په خدای ﷻ واخیستی چي زه تاسي ته نصیحت کوم کمامرّ آنفاً.

او بعض علماء وایي چي ابلیس خان مُصور کړی په صورت د یوې دابې د دوابو څخه د جنت چي خادمانو دجنت نه وپیژندی او جنت ته داخل سو. او د آدم او حوا سره یې مکالمه وکړه بماسبق.

او حسن بصري رحمه الله وایي چي آدم او حوا د تفریح دپاره دروازې ته د جنت راغلي وه چي ابلیس دا خبري ورته وکړې. او د آدم او حوا چي شیطان قسم باالله ورته واخیستی و زړه ته دده خبره ولویده، ولي چي ددوی عقیده داوه چي قسم باالله به کاذبا څوك نه اخلي. **وهو اول من حلف بالله كاذباً كذا في المظهري.**

**پوه سه!** چي تفسیر مظهري د بغوي رحمه الله څخه روایت کړی دی او نسبت یې کړی دی و ابن جریر رحمه الله ته د ابن مسعود او ابن عباس رض او ابوالعالیه او وهب بن منبهه ته او محمد بن قیس ته چي ابلیس وغوښتله چي جنت ته ورسي، دپاره د خبرو د آدم او حوا سره، نو خزنه وو دجنت دی منع کړی د دخوله دجنت، نو یوه دابه د دوابو څخه د جنت چي احسن دواب الجنت وه او دا دابه په پخواني حالت کي د ابلیس، د ابلیس ډیره په زړه پوري اشنایه وه او څلور پښي یې درلودې لکه د اوښ څېړي او دا دابه د خُزانو څخه دجنت هم وه، نو ابلیس ته یې په خوله کي ځای ورکړی او تر خازنانو د جنت یې تیر کړی او خازنان نه سوه په پوه او جنت ته یې وروستی. او ابلیس د آدم سره هغه مذکوره خبري وکړي. او بیضاوي رحمه الله دا روایت په داسي ډول راوړی دی چي ابلیس په خپله ځان مصور په

صورت دهغي دابې وګرځاوه او جنت ته ورغلی.

درویش وایي چي الله تعالی په صورت حال خبر دی. دا روایات په ظاهره ټوله متضاد دي او جمع د ټولو هم نه ده ممکنه.

**فائدة**: شیطان (فیعال) دی مشتق د (شطن) څخه دی په معنا د بعد. او شیطان بعید دی دخیر او د رحمت الهي څخه.

**فائدة**: نسبت د (أزلهما) وشیطان ته د جهته ددي وسو چي سبب د ازلال ددوی د شیطان غرور او وسوسه وه، ورنه فاعل حقیقي خو خدای ﷻ وو

**فائدة**: معنا د (أخرجهما مماکانافیه) داده چي د نعمتو څخه د جنت یي محرومه کړه او د کرامت څخه یې بې برخي کړه.

**فائدة**: مقصود دشیطان نفس خروج د جنت نه وو بلکه مقصود یې دا وو چي دی دخپلي رتبې څخه لیري کړي لکه دی یعني شیطان چي د قرب الهي څخه محروم سو، لکن ابلیس په قصد کي کامیابه نه سو (لقوله تعالی (فتاب علیه وهدی) کذافی روح البیان.

وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٣٦﴾

او مونږ وویل چې ښکته سئ یعنې مځکې ته چې بعض ستاسي به دښمن وي د بل بعض دپاره او تاسي لره ځای د قرار یعنې ځای د اوسیدو سته یعنې په مځکه کې. او فائده اخیستل سته تر یو وخت پورې یعنې تروخته د مرګ.

---

**پوه سه!** چې خطاب د (اهبطوا) و آدم او حوا ته دی ولې په بل ځای کې د قرآن کریم خدای ﷻ صیغه د تثنیه راوړې ده. (اهبطا منها جمیعاً).

**پوښتنه** : دلته ضمیر د جمع څنګه صحیح کیږي؟

**جواب** : چونکه آدم او حوا اصل د ټولې نوع انساني وه، نو ګویا دوی دوه ټوله انسانان دي، نو د جمع ضمیر صحیح دی. او بعض مفسران رح وایي چې خطاب د جمع و آدم او حوا او ابلیس ته دی.

**پوښتنه** : ابلیس خو دمخه د جنت څخه شړل سوی وو لقوله تعالی: (فاخرج فانك رجیم).

**جواب** : دمخه تیره سوه چې ابلیس د وسوسې دپاره جنت ته داخل سوی وو او یا په پټه ورغلی وو. اوپر تفسیر اول یعنې مخاطب آدم او حوا سي، نو مراد د عداوت څخه عداوت د بعض اولاد ددوی دی د بعض سره لکه قابیل او هابیل. اویا دښمني ده د مومنانو او کافرانو تر مابین فی کل الازمان، بلکه دښمني د بعض مومنانو د بعض مومنانو سره په امور

دنيويه كي كما هو المشاهد الى يومنا هذا.

او پر تفسير ثاني يعني چي مخاطب آدم اوحوا او ابليس سي، نو مراد عداوت دی د ابليس د آدم او حوا سره، په شمول د اولاد د آدم او حوا الى يوم القيامة بالتفليل والوساوس.

**فائدة**: (بعضكم لبعض عدو) په اتفاق جمله اسميه ده. او په اتفاق د ټولو مفسرانورح دا جمله حال د (إهبطوا) دضمير. نو اوس سوال دادی چي نحات په اتفاق د جمله اسميه په حاليت كي واو شرط بولي او دلته واو نسته. او هغه جواب چي مظهري رحمه الله وركړی دی (حالٌ استغنی بالضمير عن الواو) او بيضاوي رحمه الله هم داغه جواب راوړی دی، نو پر هغه جواب دا سوال واردېږي چي اكتفاء په ضمير سره په جمله اسميه حاليه كي نحات ضعيف ګڼرلي دی، نو د نظم قرآني معجز سره دا تركيب ضعيف مناسب نه دی. بلكه صحيح جواب دادی چي دا جمله اسميه په تاويل د مفرد ده أی متعادين كما اشار اليه البيضاوي رحمه الله والمظهری رحمه الله بعدالجواب المذكور اولاً. او په حال مفرد كي د واو ځخه په ضمير سره كفايت روا دی بالاتفاق. او بعض محققين رح وايي چي دا حال يعني (عداوة البعض للبعض) خو له حال دائم دی. او نحات وايي چي په حال دائمه كي واو نه راځي، نو ترك د واو و تاويل بالمفرد ته هم حاجت نه لري. وهو جواب حسن.

فَتَلَقّٰۤى اٰدَمُ مِنۡ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَيۡهِ‌ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيۡمُ‏ ﴿۳۷﴾

**پوه سه!** چي ابن کثیر رحمه الله لفظ د آدم په زور وايي یعني مفعول د (تلقی) يې بولي او (کلماتٌ) په پیښ وايي، نو معنا د آیت داده چي راغلی یعني الهام سوې وې آدم ته یو څو کلمې د جانب څخه د خدای دده چي سبب د توبې دده وګرځیدلې. او باقي قاریان یې بالعکس وايي یعني آدم مرفوع وايي چي فاعل د (تلقی) وګرځي او کلماتِ په نصب وايي یعني په زیر د (تاء) ولي چي حالت نصبي د جمع مونث په زیر دی کماتقرر فی النحو. نو يې معنا داسي ده چي زده کړې آدم دخدای ﷻ څخه دده یو څو کلیمې، نو خدای ﷻ یې توبه قبوله کړه دده، یعني رجوع په مغفرت سره یې ورته وکړه.

**پوه سه!** چي اصل معنا د توبې رجوع ده. نو که یې فاعل خدای ﷻ وو، نو یې معنا رجوع د عقوبت څخه ومغفرت ته. او که یې فاعل بنده وي نو يې معنا رجوع د ګناه څخه

**فائدة:** لفظ د (تواب) صیغه د مبالغې ده. دا مبالغه یا په سبب د کثرت د تائبینو دی یعني د کفره څخه او یا د معصیت څخه چي مومن وي. اویا دا مبالغه په سبب د کثرت د ګنهو ده په بندګانو کي فافهم.

**فائدة:** سعید بن جبیر رحمه الله او مجاهد رحمه الله او حسن بصري رحمه الله وايي چي دا کلمې هغه دي چي په دې آیت کي ذکر سوي دي: (ربنا ظلمنا أنفسنا)

إلی آخر الآیة. او د ابن مسعود رض څخه روایت دی چې ښه الفاظ د توبې هغه دي چې زموږ پلار یعني آدم ﷺ ویلي دي، پس له دې چې خطیئه څني وسوه او هغه دادي: (سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالی جدك لاإله إلاأنت ظلمتُ نفسی فاغفرلی انه لایغفرالذنوب إلا أنت)
وفی المثنوی:

زاهد غرور داشت سلامت نبرد راه ✤ رند ره نیاز بدارالسلام رفت

او حاکم د ابن عباس رضی الله تعالی عنهما څخه روایت کړی دی. چې هغه کلمات دادي چې آدم ﷺ چي د جنت څخه کښته کړه سو، نو يې داسي وويل: (یاربِّ ألم تخلقنی بیدك بغیر واسطةٍ؟ قال بلی) ترجمه: اې ربه تا زه نه یم پیداکړی په خپل قدرت سره بیله واسطې؟ خدای ﷻ ورته وویل هو ما پیدا کړی یې په خپل قدرت سره (قال الم تسکنی جنتك؟ قال بلی) آدم ﷺ وویل : تا ماته سکونت نه کړی را په جنت کي؟ خدای ﷻ ورته وویل : هو. (قال ألم تسبق رحمتك غضبك؟ قال بلی) آدم ﷺ وویل ایا ستا رحمت تر غضب دمخه نه دی؟ خدای ﷻ ورته وویل هو: (قال أرئیت ان اطعتُ ورجعتُ وتبتُ ارجعیٌ انت الی الجنة؟ قال نعم) نو آدم ﷺ وویل چي ته ماته خبر راکړه که زه عمل صالح کړم او رجوع دخپلي گناه څخه وکړم او توبه وکاږم، مابیرته جنت ته راجع کوي؟ خدای ﷻ ورته وویل : هو.

**پوه سه!** مراد د آدم ﷺ رجوع وجنت ته په آخرت کي ده، نو پر دې تفسیر مراد د کلماتو څخه مناجات او عُذرخواهي دخلیفه اول دخپل خدای ﷻ سره. او په حدیث شریف کي راغلي دي چي آدم ﷺ پس له خطا څخه

خدای ﷻ ته وویل (بحق محمد أن تغفرلی) یعني په روی د محمد ﷺ ما وبخښې؛ (قال کیف عرفت محمداً) یعني تا څرنګه وپیژندی محمد ﷺ؟ (قال) یعني آدم : (لما خلقتنی ونفخت فیّ الروح فتحتُ عینی فرئیتُ علی ساق العرش لاإله الاالله محمدرسول الله فعلمتُ انه اکرم الخلق علیك حتی قرنت اسمه باسمك قال نعم وغفرله بشفاعته) ترجمه: آدم ﷺ وویل په جواب کي دخدای ﷻ چي (کیف عرفت) داسي چي تا چي زه پیدا کړم او روح دي په ما کي، نو.ما سترګي خلاصي کړې او پر پایه د عرش مي دا ولیدل (لااله الاالله محمد رسول الله) نو زه پوه سوم چي محمد ﷺ یو اکرم د مخلوق دی وتاته، نو خدای ﷻ بخښه و آدم ﷺ ته وکړه په شفیع کولو د روی د محمد ﷺ . کذا فی روح البیان.

وروی عن ابن عباس رض بکی آدم وحوا مأتی سنةً ولم یأکلا ولم یشربا اربعین یوماً ولم یقرب حواء مأة سنةً کذافی روح البیان والمظهری.

وروی عن یونس بن حُباب وعلقمه بن مرثد ﷺ چي دوی وویله که اوښکي د ټولو مخکي والاوو سره یو خای کړه سي د داود ﷺ د اوښکو سره، نو د داود ﷺ اوښکي به پر زیاتي وي. او که اوښکي د داود سره د ټولو اوښکو د اهل الارض سره جمع کړه سي، د آدم ﷺ اوښکي به پر زیاتي وي. درویش وایي چي خبرونه محمول پر سماع دي د خیرالبشر صلی الله علیه وسلم څخه و إلا لایُدرك ذالك بالعقل والقیاس کمالایخفی.

**فائدة:** خدای ﷻ چي د تائب عاصي دپاره دوه وصفه د (تواب او رحیم) چي سره یو خای کړه چي دواړه صیغي د مبالغې دي. د تائب دپاره علاوه تر غفران الذنب بشارت د احسان دی.

**فائدة:** په دې آیتو کې ذکر د حوا رانه غلی، په دې سبب چې دا تابع د آدم ده په حکم کې. ځکه ذکر د ښځو په اکثر کې د قرآن او احادیثو نبویه ملتوي وي.

**فائدة:** دتوبة العبد معنا داده چې په زړه کې به پښیمان وي پر کړې ګناه. او ګناه به دستي پریږدي او عزم به کوي چې آئنده به یې هم نه کوم. او خصوم به راضي کوي بإیصال حقوقهم المالیة الیهم او الاعتذار منها باللسان وغیر ذالك. قال المولوی المعنوی رحمه الله فی مثنویه:

مرکب تو به عجائب مرکبست ✤ بر فلك تازد بیك لحظه ز پست
چون بر آرند از پشیمانی خروش ✤ عرش لرزد از انین المذنبین

وفی موضع آخر:

گر خدا خواهد که مان یاری کند ✤ میل مارا جانب زاری کند
ای خنك چشمی که آن گریان اوست ✤ وی همایون دل که آن بریان اوست
آخیری هر گریه آخر خنده ایست ✤ مرد آخیر بین مبارك بنده ایست
باش چون دولاب نالان چشم تر ✤ تا ز صحن جان تو روید خضر

وفی تفسیر القرطبی ان آدم تاب ثم هبط. والیه الاشارة بقوله تعالی (اهبطوا) ثانیاً ومنه یعرف ان الامر بالهبوط لیس للاستخفاف و مشوباً بنوع سخطٍ اذ لاسَخَطَ بعدالتوبة فآدم اُهبطَ بعد ان تاب الله علیه انتهی.

درویش وایي چې د انبیاء علیهم السلام په باب کې استخفافي الفاظ استعمالول سخته ګناه ده. بلکه موجب د کفر دی اعاذنا الله عن الإستخفاف بهم بل عن الاستخفاف بأولیاء الله الکرام رح وصلحاء الأمة المرحومة رح.

# قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا

## موږ ورته ووېل ودوی ته چي د جنته ووزئ ټوله

**پوه سه!** چي بعض مفسرين رح وايي چي هبوط اول صرف د جنت څخه وو او هبوط ثاني د آسمان څخه و مځکي ته دی، نو ضمير د (منها) راجع و آسمان ته دی. او بعض وايي چي دا تکرير دی د اول هبوط، دپاره د تاکيد او يا د جهته د اختلاف المقصود، ولي په اول کي مقصود عقاب وو پر معصيت د آدم او حوا. او د دوهم امرالهبوط څخه مقصود تکليف ددوی په امر او نهي سره.

**فائدة:** پر اول تقدير يعني چي (قلنااهبطوا) تاکيد د اول (اهبطوا) وي، نو عدم عطف يې په سبب د کما اتصال دی او پر دې تقدير کلمه د (فاء) عاطفه نه ده، ولي چي تقديم د معطوف يعني چي (فتلقی) دی پر تقدير د عطف پر تاکيد چي دا اوس (قلنا اهبطوا) دی نه دی روا کما تقرر فی النحو. او که (اهبطوا) دپاره د اختلاف العرضين وي نو فصل په يعني عدم عطف په سبب د اختلاف د غرضينو د دوو جملو دی وهو من اسباب الفصل کما فی المطول.

**پوه سه!** پر تقدير د اختلاف د غرضينو اول ته امر تکويني وايي او دوهم ته امر تکليفي وايي فتأمل فی الفرق بينهما.

**فائـدة:** تفسير اول يعني اول هبوط د جنت څخه وو او دوهم د آسمان څخه دی، که څه هم مظهري راوړي دي، لکن قاضي بيضاوي رحمه الله په پوره منهيته د تفسير خپل ضعيف ګڼلي دي. يو په دې سبب چي هبوط په

دي قصه کي آدم هبوط الی الارض ځني مراد دی کما قال صاحب الکشاف رحمه الله. او بل دا چي مذکور په آیات سابقه وو کي جنت دی، نو ضمیر د منها به ځرنګه و سماء ته راجع وي انتهی.

**پوښتنه** : لفظ د جمیعاً خو حال دی، نو په مقتضی د لفظ د جمیعاً باید هبوط د آدم او حوا او ابلیس په یوه زمانه کي وي ولیس کذالك. واجاب عنه المحقق البیضاوی رحمه الله ومقلده فی التفسیرالمظهری رحمه الله وصاحب روح البیان رحمه الله چي لفظ د جمیعاً که څه هم لفظاً حال دی، لکن په معنی کي تاکید دی فتأمل فی الفرق بین قولنا جاؤا جمیعاً وجاؤا معاً فإن الاول یدل علی التاکید دون الاجتماع والثانی یقتضی الاجتماع والمعیة کما تقرر فی النحو والمعانی.

فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَن تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿۳۸﴾

نو که چیرې درسي وتاسې ته زما دخوا ښخه هدایت یعنې په واسطه د رسول او کتاب، نو هغه څوک چې متابعت وکړي زما د هدایت یعنې ایمان پرخدای ﷻ او پر رسول اوپر کتاب راوړي، نو هیڅ بیره نسته یعنې په آخرت کې او نه پردوی غم سته په آخرت کې. په دې سبب چې د دنیا ژوندولې عبث راباندې تیر سو، نو خوف هغه چې متوقع شي ښخه وې لکه د سرې قریب مثلاً ناجوړی وي او دی بیرېږي چې مړ نسي. او حزن پر واقع شي وي لکه د سړي چې يو قریب مړ سي او دی په غمجن وي. حزن په دي سبب نسته چې دوی خو په دنیا کې متابعت دخدای ﷻ د هدی وکړی او ایمان پر خدای ﷻ او رسول وغیره یې درلودی، نو اعمال حسنه یې هم کړي وه.

اوخوف د عذاب الهي هم ورته نسته. نو چې خدای ﷻ ددوی ښخه خوف او حزن پورته کړي، نو ودوی ته یې ثواب په ابلغ وجه ثابت کړی. بخلاف الكفرة لأنهم يحزنون على فوات الايمان والهدى فى دارالدنيا و يخافون عذاب النارالموعود.

---

**فائدة**: د (يأتينكم) و اولاد ته د آدم ﷺ دي په تبع د ذکر د آدم ﷺ و إنما لم يخاطب ابليس و ذريته لأنهم لم يأتينهم كتاب ولا رسولٌ.

**پوښتنه**: راتګ د (هدی) یعنې په سبب د ارسال الرسل و انزال الكتب خو متیقن دی چې کیږي به، نو خدای ﷻ په (ان) د شك راوړی؟

**جـــواب** : قاضـي بیضـاوي رحمه الله وایـي چـي راتـگ د هُـدی خـو فـي نفسـه محتمل دی پر خدای، خو واجب نه دی بان ان شاء هَدیٰ و ان شاء ترك.

**تـرکیـب الآیـة** : اصـل د (اما) ان مـا ، نـو ان شـرطیـه دی او کلمـه د (ما) زائده ده. دپاره د تاکیـد د وقـوع د شرط او کلمـه د (فـاء) دپاره د ترتب د مابعد الفاء علی ماقبلها وهو الامر بالاهباط دی.

**پـوښتنـه** : نحات وایي چي تاکیـد دفعـل مضـارع پـه نـون ثقیلـه سره هلتـه کیږي چي دمخه یا امر وي او یا قسم وي. او دلتـه خو نـه قسـم سته او نـه طلب؟

**جواب** : تاکیـد د شـرط چـي پـه (مازائـده) سره وکـړه سـو، نـو هغـه تاکیـد د تاکید دنون ثقیله لاز خلاصه کړه. قال الخفاجی رحمه الله او کلمه د (من) دوهم شرط او (فلاخـوف) آه جزاء د شـرط ثـاني ده. او جملـه شـرطیه ټولـه جزاء د شرط اول ده. یعني (فإمّا یأتینکم) آه.

**پـوښتنـه** : خدای جل جلاله فـاول شرط کی (هُدَی) کلمـه وویـل، نـو دوهـم شـرط ییا دخـه حکمـت دپـاره (هُدَایَ) راوګرځاوه او ضـمیر یې نـه کـړی ورتـه راجع یعني (فمن تبعه)

**جواب** : حکمت الهي په عدم اضمار کي دادی چـي د اول هُدًی څخه مراد هغه هـدایت دی چـي وسـاطت د رسـول او د کتـاب الهي وده تـه رسیدلی وي. کما یدل علیه سیاق الکلام. او د هدای څخـه مـراد عـام تر هغه دی یعني که مایأتي به الرسل وي او کـه مایقتضیه العقل السلیم الصافی کقول المجتهدین رحمهم الله، نـو اشـاره ودي تـه ده چـي قیاسـات د مجتهدینو رح هم

حجت دي دپاره د عمل دی كما فی كتب الفقه والاصول، نو رد دی پر هغو كسانو چي د قياس ښخه منكر دي. كالسلفية واصحاب ظواهر الحديث وغيرهما من الفرق الحادثة فی دين الاسلام وقدمرَّ فی صدر التفسير الابيات المتعلقة برد اقوال من يمنع التقليد للمجتهد فتذكر.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۳۹﴾ ع

اوهغه كسان چي كفر كوي يعني انكار كوي د ايمان ښخه پرخدای ﷻ او پر وحدانيت دخدای ﷻ او انكار كويَ د رسالت ښخه د عليه السلام او درواغ بولي آيتونه د قرآن او دنورو كتب الهيه وو، نو دغه كسان چي دي اصحاب د اور دي په ورځ دقيامت كي او دوی به هميشه په اور كي وي.

---

**فائدة:** (والذين) آه عطف دی پر (من تبع) آه او دهغه مقابل دی. كانه قيل ومن لم يتبع آه. لكن په تعبير په (كفروا) آه إعلامٌ بأنه من لم يتبع الهُدی فهو كافرٌ.

**فائدة:** د كفارو په بيان كي موصول جمع راوړي، دادپاره د بيان ددي چي كفار هر وخت تر مسلمانانو ډير دي.

**پوه سه!** چي د (كفروا) ښخه مراد كفر په رسولانو دی او د (كذبوا) ښخه مراد كفربالكتب المنزلة اليهم دی او يا مراد دادی چي (كفروا) په زړو كي اود (كذبوا) چي تكذيب په ژبه هم كاوه.

**فائـــدة:** (أولئك) اشاره ده و (الذين) ته چي په صفت د کفر او تکذيب حاضر سول. او د اصحاب النار معنا په اصطلاح د قرآن کريم ملازم النار ده.

**فائدة:** خلود که څه هم په معنا د مکث طويل دی. که هميشه وي او که نه، لکن دلته مراد ځني دوام بقرينه الآيات الأُخر فی باب الكفار وبقرينة الاحاديث المتواترة المعنى فی شانهم. او جمله د (هم فيها خالدون) منصوب محلاً ده، ولي چي حال ده د اصحاب النار څخه.

**پوه سه!** چي فلاح د ورځي د آخرت په اتباع د هدی ده چي دخدای ﷻ په واسطه د پيغمبرانو موږ ته رسيدلي ده لقوله تعالى : (فلاخوف عليهم)آه.

سگ اصحاب روزی چند ❊ پی نیکان گرفت ومردم شد

وفی المثنوی :

طفل یك روزه همی داند طریق ❊ که بگریم تا رسد دایه شفیق
تونمی نیدانی که دایه دایگان ❊ کم دهد بی گریه شیر رایگان
گفت فلیبکوا کثیراً گوش دار ❊ تا بریزد شیر فضل کردگار

سعدی رحمه الله :

نرود مرغ سوی دانه فراز ❊ چو دیگر مرغ بیند اندربند
پند گیر از مصائب دیگران ❊ تانگیرند دیگران زتو پند

**فائـــدة:** عجب داده چي غير مکلفين دخدای ﷻ دعذاب څخه او دووږخ څخه بيريږي او مکلفين په خوب کي د غفلت بيده دي. کماروی عن مالك بن دينار وهو من الاولياء الكبار رحمه الله قال رئيتُ صبياً يلعبُ في التراب يضحك تارةً و يبكی اخری فظننتُ انه مجنون فهممْتُ ان اُسلم عليه

فامتنعتُ عنه تکبراً ثم قلتُ لنفسی کان النبی صلی الله علیه وسلم يُسلِم عن الصغار والکبار فسلمتُ علیه فرفع رأسه الیَّ وقال وعلیك السلام ورحمته وبرکاته یا مالك بن دینار فقلت کیف عرفتنی ولم تکن رئیتنی فقال حیث لتقلت روحی بروحك فی عالم الملکوت عرَّف بینی وبینك الحی الذی لایموتُ فتعجبتُ وقلتُ له ماالفرق العقل والنفس قال ان النفس هی التی منعتك عن السلام علیَّ تکبراً وغفلك الذی بعثك علی السلام اتباعاً لرسول الله ﷺ فقلتُ مالك تلعب بهذه التراب فقال انی احبه لان تعالی قال: (منهاخلقناکم وفیهانعیدکم ومنها نخرجکم تارةً أُخری) فقلت أراك تارةً تضحكُ وتارةً تبکی أُخری فماالسبب لذالك الضحك والبکاء؟ فقال اذا ذکرتُ عذاب ربی بکیتُ و اذا ذکرت رحمته العامة ضحکتُ. فقلتُ یا ولدی ای ذنبٍ لك حتی تبکی ولم تبلغ اوان التکلیف من الله عزوجل؟ فقال یا مالك لاتقل هذا. رئیتُ أُمی لاتوقد الحطب الکبار الاَّ ومعه الحطب الصغار فاخاف ان اکون مثل الحطب الصغار لتوقَّد بی نار الحطب الکبار ککفار جهنم فی دار البوار. روح البيان مع زيادة

**تمهید**: پوه سه! چي ربط د راتلونکي آیت ددمخه آیتو سره دادی چي خدای جل شانه اول بیان د توحید خپل وکړئ بقوله تعالی (یاأیهاالناس اعبدوا)الآیة او وروسته بیان د نبوت د علیه السلام وکړی بقوله تعالی (وان کنتم فی ریبٍ مما نزلنا) الآیة او خطاب یې دټولو خلګو سره وکړی. او نعم عامه خپل یې بیان کړه لکه تخلیق د آدم او امرکول د ملکو په سجده وده ته. اوس نوبت د خطاب وبني اسرائیل ته ورسیدی: ولي چي دا سورت خو مدني دی. او غالب خطابات الهیه په مدینه منوره کي د

یهودو سره دي، ولې چې دوی اهل علم او اهل کتاب وه، نو که دوی اقرار په نبوت د آنحضرت صلی الله علیه وسلم او سره د ذکر تفصیلي د نبوت د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په تورات کې موجود وو، نو به نورو خلکو یعني مشرکانو وغیرهم به د دوی تقلید کړي وای او ایمان به یې راوړلی وای. فقال عزمن قائل:

# يٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ

**اې اولاد د یعقوب ﷺ په یاد کړئ هغه نعمتونه زما چې ما انعام کړی دی پر تاسې باندې.**

---

**پوه سه!** چې بني جمع د ابن ده او مشتق د نباء څخه دی، ولې ابن گویا بناء د پلار ده.

**پوښتنه** : چې ابن خو په عربي خوی ته وایي، نو تا یې ولې ترجمه په اولاد سره وکړه چې نر او ښځې دواړو ته شامل دی؟

**جواب** : ملاعصام رحمه الله وایي چې په قرآن مبارك کې یې تغلیب ورکړی ابن ته پر بنت باندې لشرف الابن. او خفاجي رحمه الله وایي چې که څه هم ابن په لغت کې خوی ته وایي، لکن چې مضاف سي ویوچاته لکه بنوفلان مراد ځني معنی عامه ده یعني چې خوی او لور دواړو ته شامل ده او دا هم معنای عرفي ده. ابن نو ځکه یې ما ترجمه په اولاد سره وکړه.

**فائدة:** اسرائیل لقب دی د یعقوب ﷺ بعض علماء رح وایي چې په عبراني ژبه صفوة الله او یا عبدالله دی، ولې (إسراء) په عبراني ژبه په معنا د (صفوة) او د (عبد) دی او (ایل) په عبراني ژبه الله ته وایي.

پوه سه! چي په بل قرائت کي (اسرائل) بحذف الياء راغلی دی. او په بل قرائت (اسرال) بحذف الياء والهمزة راغلی دي. او په بل قرائت کي (اسرایل) بقلب الهمزة یاءً قاله البیضاوی.

**فائدة:** مراد د ذکر څخه د نعمت صرف پیادول نه دي بلکه مراد شکر د هغه نعمت دی. تفسیر مظهري صرف تفسیر ددې نعمت بیان په هغه سره کړی دی د موجودین په زمانه کي د علیه السلام ونیکه ګانو ته خدای ﷻ ورکړی لأن نعمة الآباء نعمةٌ لأبناء او هغه نعمتونه داوه چي د دوی آباء خدای پاك د فرعون څخه خلاص او فرعون یې غرق کړی. او بل خدای ﷻ ددوی اسلافو ته عبادت د عجل ور معاف کړی یعني پس له دې چي په توبه کي فقط اویازره ۷۰۰۰۰ کسان مړه سوه. او سره ددې عبدة العجل په دوی کي په لکو وه او سایوان ګرځول د وریځې پر دوی هغه وخت چي دوی په تبه کي وه او انزال د من او سلوی په تیه و بعث الانبیاء فی اسلافهم وجعل اسلافهم ملوك الارض وغیرذالك مامرّ وسیاتي.

او قاضي بیضاوي رحمه الله دا قول په صیغه د ضعف یعني په قیل راوړی دی او وجه د ضعف یې خفاجي رحمه الله بیان کړېده، نو په نیز د بیضاوي رحمه الله مراد نعم د حاضرینو د عصر نبوي ﷺ دی حیث کانوا فی ارغد عیشٍ فی خیبر و وادی القُری وفدك وماحول المدنیة بل فی المدینة المنورة قبل هجرة النبی صلی الله علیه وسلم لان المفسرین کلهم یقولون ان المراد آه تعداد النعم الخاصة بالیهود ولهذا خص النداء بهم بقوله (یابنی اسرائیل اذکروا)آه وقال لهم و آمنوا بما انزلتُ آه، ولي چي مخاطب په ایمان بما انزلتُ چي قرآن عظیم الشان دي سره خو آباء ددوی

نسي کیدای او همداسبب وو چي قاضي بیضاوي رحمه الله اراده د نعمتو د، د اسلافو ددوی ضعیف وګنړل او هغه چي بعض مفسرانو رح ویلي دي چي مراد د نعمت څخه ادراك ددوی دی زمانه د نبوت د علیه السلام ډیر ضعیف تفسیر دی، ولي چي نعمت د نبوت د علیه السلام خو د نعمت خاصه څخه د بني اسرائیلو نه دی، بلکه نعمت د نبوت د علیه السلام نعمت عامه دی د ټولو حاضرینو د عصرنبوي فی جمیع الارض، ددې سببه خدای ﷻ وایي (وماأرسلناك إلاّ رحمةً للعالمین).

**فائدة**: رب جلاوعلا چي نعمت خپل مقید کړی په علیکم سره. حکمت پکښي دادی چي انسان طبعاً غیور او حسود دی، نو چي دی هغه نعمت الهي ته وګوري چي خدای ﷻ غیر ته دده ورکړی وي، نو غیرت او حسد یې باعث کوي پر کفران د نعم الهیه وو چي ده ته یې ورکړي وي. او دخدای ﷻ سره یې سخت عداوت پیداکیږي او چي انسان و نعمت دخدای ﷻ ته وګوري چي خاص الخاص و ده ته یې ورکړی وي، نو حُب د نعمت الهي دی باعثه کوي پر رضا او پر شکر الهي.

وَأَوْفُوا بِعَهْدِي أُوفِ بِعَهْدِكُمْ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴿٤٠﴾

او تاسي وفا وکړئ په وعده سره زما، زه به وفا وکړم په وعده سره ستاسي او خاص زما څخه وبیرېږئ

**پوه سه!** چي قاضي بیضاوي رحمه الله وایي چي عهد و فاعل ته د عهد مضافیږي او ومفعول ته د (عهدهم) مضافیږي او اول عهدي مضاف و فاعل ته دی، ولي چي خدای ﷻ و دوی ته وصیت او عهد کړی دی په ایمان راوړو او په طاعت سره بقوله تعالی (فإما یأتینکم مني هدًی)الآیة. او دوهم یعني بعهدکم مضاف دی و مفعول ته یعني ددوی سره د خدای ﷻ دخوا څخه وعده کړه سوې په ایمان او عمل صالح سره او په نصب د دلائلو د وحدانیت خپل په انفسو او په آفاتو کي او په انزال د کتب الهیه او ارسال الرسل او وعده یې کړې ده ددوی سره په ثواب د جنت ددوی په ایمان او اعمال صالحه وو ددوی.

**فائدة:** ولي قاضي بیضاوي رحمه الله دواړه اضافته و فاعل ته نه کړه مع ان الاضافة وفاعل ته اکثر او ارجع دی کما تقرر في محله؟ والجواب هو اضافة و فاعل ته ارجح دی او دهغه څخه عدول نه کیږي بیله مانع، نو په اول عهدي کي خو مانع نسته، ولي چي خدای ﷻ خو ودوی ته عهد او وصیت کړی دی په ایمان او عمل صالح سره کما مرّ آنفاً او په دوهم عهدکم کي خو مانع موجود دی د اضافت و فاعل ته، ولي چي ددوی دخوا څخه خو کم عهد او وعده موجود نه ده کمالایخفی.

**پوه سه!** چي مظهري رحمه الله دواړه ځایه اضافه ومفعول ته روا بللي ده،
لکن په ثبوت یې نه ده رسولي کمالایخفی علی من طالع تفسیره.

**پوه سه!** چي اول د مراتبو د وفاء بالعهد زموږ دخوا راتګ په (أشهد أن لاإله إلاالله و أشهد أن محمدرسول الله) دی. او دپاك خدای ﷻ دخوا حفظ الدم والمال دی. او اخیره مرتبه د وفاءبالعهد زموږ دخوا استغراق په دریاب کي د توحید الهي دی، حتی چي د ځانه څخه غافل سي فضلاً غیره او دخدای ﷻ دخوا فوز په لقاء دائمه سره دی کذاقال البیضاوی رحمه الله.
او هغه روایت چي مظهري رحمه الله د ابن عباس رض د ابن جریر په روایت په سند صحیح راوړی دی: (أوفوا بعهدی فی اتباع محمدصلی الله علیه وسلم أُوفِ بعهدکم) په رفع کي د تکالیف شاقه وو دتاسي څخه. او یا دغیره څخه د ابن عباس رض روایت دی (أوفوا بأداء الفرائض و ترک الکبائر أُوف بالمغفرة للصغائر والثواب علی اتیان الفرائض) او یا داسي (أوفوا بالاستقامة علی الطریق المستقیم أُوف بالکرامة والنعیم المقیم فی الجنة) بیضاوي رحمه الله وایي چي دا ټوله تفسیرونه د مابین د اول العهدین و آخرهما دي فافهم.

درویش وایي چي هغه توجیه چي مظهري رحمه الله راوړي ده یعني چي اضافه دواړه ځایه اضافه ومفعول ته ده، بیضاوي رحمه الله په قیل سره راوړیده او داسي وایي چي (اوفوا بما عاهدتمونی من الایمان والتزام الطاعة أُوف بماعاهدتکم من حُسن الاثابة) او تفصیل ددغو دوو عهدینو په دغه آیت کي راغلی دی: (و إذ أخذالله میثاق بنی إسرائیل )إلی قوله (ولأدخلنّکم جنات)الآیة. ١

**پوښتنــــه** : قائـل ددې توجیـه خـو قتـادهﷺ او مجاهـد رحمه الله دی، نـو بیضاوي رحمه الله ولې په صیغه د ضُعف راوړه؟

**جواب** : دا دوې وعدې د یهودانو سره د زمانې د موسی علیه السلام کړه سوې دې او دلته په دې آیت یعنې (أوفوا بعهدی)آه خو مخاطب یهودان د عصرنبوي دي بقرینة قوله تعالی (وآمنوا بما أنزلت)آه کما مرّ چې ایمان په ماأنزلتُ چې قرآن کریم دی هم په دغو معاصرینو کې د عصرنبويﷺ مقصود دی لا فی حق أسلافهم کما مرّ آنفاً.

**پوښتنــه** : ددې خبرو خو داسې معلومیږي چې اضافت ومفعول ته په دواړه عهدینو کې روا هم نه دی لا انه ضعیف؟

**جواب** : وأجاب عنه الفاضل عصام رحمه الله چې نسبت د عهد د آباء و اولاد ته صحیح دی، ولې چې دوی یعنې معاصرین اقتداء په آباو سره لري په دین کې. قوله تعالی: ( وإیای فارهبونی) یعنې هرکار چې کوې زما څخه بیریږه مثلاً زنا چې کوې زما څخه بیریږه یعنې، نو یې مه کوه. او هرکار چې نه یې کوې هم زما څخه بیریږه مثلاً لمونځ نه کوې زما څخه بیریږه. یعنې نو یې کوه. خصوصاً فی نقض العهد کما ههنا.

**فائدة**: قاضي بیضاوي رحمه الله وایي چې قوله تعالی : (وإیای فارهبونی) په افاده کې د تخصیص د رهبت په خدای ﷻ پورې اوکړه دی تر (إیاك نعبد) په افاده کې د تخصیص د عبادت په خدای ﷻ پورې، ولې چې (إیاك نعبد) بوازې تقدیم د مفعول چې (ایاك) دی پر فعل دلالت پر تخصیص کوې نو (إیاك نعبد) یوه جمله ده او په (إیای فارهبونی) کې (إیای) مفعول د

(فارهبونی)المذکور نه دی، ولي چي مفعول د (فارهبونی) المذکور خو هغه یاء د متکلم ده چي حذف سوې ده او کسره پر دلیل ده. بلکه (ایّای) مفعول د (ارهبونی) مقدر دی یعني (ایای ارهبوا) نو دا جمله یوه جمله او (فارهبونی) سره د مفعول مقدر دوهمه جمله ده. نو په (ایای فارهبونی) کي یو تقدیم د مفعول دی کمامرّ لأن التقدیر ایای ارهبونی. او بل تکرار د مفعول چي یاء د متکلم ده هم سته. په اوله جمله کي (ایای) المذکور دی او په دوهمه جمله کي یاء دمتکلم ده چي مقدره ده، ولي چي اصل یې (فارهبونی) وو

**فائدة:** فاء جزائیه پر تاکید د بیرې دخدای ﷻ کوی، ولي چي معنا یې داده چي که تاسي د یوشي څخه بیریږئ. خو د خدای ﷻ څخه وبیریږئ

قال عزّ من قائل:

**وَاٰمِنُوۡا بِمَآ اَنۡزَلۡتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمۡ وَلَا تَكُوۡنُوۡٓا اَوَّلَ كَافِرٍۢ بِهٖ**

او ایمان راوړئ اې بني اسرائیلو په هغه کتاب سره چي ما نازل کړی دی یعني پر محمدعلیه السلام چي قرآن عظیم الشان دی. په داسي حال کي چي قرآن پاک تصدیق کوونکی دی دهغه کتاب چي ستاسي سره دی، یعني تورات شریف، په دې معنا چي قرآن کریم پر داسي چا نازل سو چي دهغه نعت او بیان د حلیې او مولد او د هجرت ځای وغیرذالک په تورات کي موجود دي، ولي چي دعوی د ایمان بالتورات کوی نابه پر مصدق د تورات هم ایمان راوړي ولهذا قیدالله سُبحانه (بماأنزلت) بکونه (مصدقالمامعکم) او تاسي مه کرځئ اوله ډله چي کفر په قرآن سره کوئ. یعني تاسي موجودین په عصرنبوي کي اوله ډله د کافرانو دځېل

قوم مه کرځئ، ولي ستاسي آئنده نسلونه چي په تاسي سره اقتداء وکړي به کفر بالقرآن ګناه يې ستاسي په غاړه ده. لأنكم الواضعون لاساس الكفر بالقرآن للقرون الآتية.

---

**پوه سه!** چي علیه السلام چي مديني منورې ته هجرت وکړی، نو تر ټولو اول يې د مدينې منورې يهودو انكار وکړی. او بيا بنو النضير او بنوقريظه د يهوديه تكذيب وکړئ او بيا د خيبر باشندګانو يې تكذيب وکړی ثم وثم إلى يومنا هذا. **وفي المثنوى:**

هر که بنهد سنت بد ای فتا ❊ تا در افتد بعد خلق از عما
جمع گردد بروی آن جمله بزه ❊ کو سری بودست و ایشان دم غزه

**پوښتنه**: ايمان بماأنزلت آه خو داخل دی په **(أوفوا بعهدكم)** كي نو جلا راوړو ته يې څه ضرورت وو؟

**جواب**: تخصيص د ايمان بعد التعميم دپاره دباعثه كولو ددوی پر ايمان باندي، ولي چي ايمان خو عمده د وفاء بالعهود دی.

**پوښتنه**: خدای ﷻ منع كړه چي تاسي اول كافر مه ګرځئ په (ماأنزلت) سره، نو دوی خو اول كافران نه دي بلكه مشركين دمكې مكرمې تر دوی دمخه دی په كفر كي؟

**جواب**: وفي جوابه وجوه المفسرين: بعض وايي چي لفظ د مثل محذوف دی تقدیره **(لاتكونوا مثل اول كافربه)** يعني تاسي چي اهل علم او كتاب ياست او علم تفصيلي په نعوتو او احوال دعليه السلام هم لرئ نو بايد تاسي په مثل د اول كافرانو يعني اهل مكه نسئ، ولي هغه خو اميان او جاهلان ده.

او بعض وايي چي تاسي اول کافران په اهل کتابو او يهوديانو کي مه کرځئ؛

او بعض وايي چي تاسي مه کرځئ اول کافران په خپل کتاب تورات سره لأن الکفر بالقرآن کفر بالتوراة لکونه مصدق له.

او قاضي بيضاوي رحمه الله او مظهري رحمه الله وايي چي مراد په آيت کي مانطق به الظاهر نه دي بلکه مقصود تعريض دی پر دوی باندي کقولک اما انا فلستُ بجاهلٍ تعريضاً علی الجاهل الموجود هناک.

**پوښتنه**: ضمير د (کونوا) خو جمع دی او لفظ د اول مفرد دی، نو څرنګه يې حمل صحيح کيږي؟

**جواب**: مور دمخه اشاره وکړه چي د اول معنا اول فريق او فريق لفظ که مفرد دی معنا يې جمع ده لکه قوم او رهط.

## وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ ﴿٤١﴾

او تاسي مه رانيسئ په آياتو سره زما ثمن لږ او خاص زما څخه وبيرېږئ

**پوه سه!** چي بيع و شراء خو خاص په اعيانو پوري ده کماتقرر في اللغة والفقه. لکن دا قدر فرق لري چي بيع خرڅول دشي يعني په مقابل کي د بيع يو مرغوب فيه شی، که نقود وي او که غيرها حاصل کړي. او شراء تحصيل دي د مرغوب فيه په بذل سره د ثمن. لکن دلته مراد د شراء څخه مطلق استبدال من قبيلِ استعمال المقيد في المطلق کالمرسن چي د اوښ پزي ته وايي په مطلق پزه کي، ولي چي آيات خو د اعيانو څخه نه دی او د آياتو څخه مراد آيات قرآنيه دي أی (لاتستبدلوا بالايمان بالآيات

القرآنية) او يا مراد آيات د تورات دي چي په هغو كي نعت د نبي عليه السلام موجود وو. او هغه يهودو بدل كړه په انكار سره.

**فائدة:** مراد دثمن قليل څخه حفوظ د دنيا دي لأنها وإن جلت يعني كه څه هم ډيري وي لږ دي. او خسيس نسبت و جنت او نعمتو ته د جنت چي ددوى څخه په دغه استبدال كي فوت سوه.

**فائدة:** د يهودانو ملايانو په خپلو عوامو كي رسوم درلوده يعني زكاتونه او هدايا او صدقات. او علماوو ددوى پرعوامو رياست كاوه، نو دوى وبيريدل، كه موږ نعت دعليه السلام په صحيح ډول بيان كړو، نو عوام د يهودو به ايمان راوړي پر محمدعليه السلام باندي او زموږ رياست او هدايا وغيره به زموږ دلاسه ورږي. نو دى هغه رسوم خوښ كړه او د نعتو څخه د عليه السلام يي يا انكار وكړى او يا يي تبديل كړه كما ثبت بالآيات القرآنية والاحاديث النبوية.

**فائدة:** په حديث نبوي كي چي روايت يي دارمي كړى دى داسي راغلي (الا إنَّ شرُّ الشرار شرارُ العلماء و أنَّ خيرالخيار خيارُ العلماء).

**فائدة:** عموماً خلك دهر وخت يا په متابعت د رئيسانو او د خانانو، دنيادارو او يا په متابعت د ملايانو د حق څخه انكار كوي، لكه قريشو دمكي په متابعت د ابوجهل چي يو قومي مشر ددوى وو، د عليه السلام د نبوت او د قرآن كريم د حقيت څخه انكار وكړى. او ورته و ابوجهل ته نور رئيسان په مكه كي قريشو درلوده. او په مدينه منوره كي رئيسانو د يهودو په ګډون د ملايانو ددوى د حق دين د اسلام څخه انكار وكړى. وهذه الآفة والبلية جارية فى امة محمد عليه الصلوة والسلام. يعني

الی اخیر دورات الاسلام چې د درویش په زمانه کې یعنې د سنه ۱۳۶۰هجري قمري دا فتنه وخپل عروج ته رسیدلې ده په افغانستان کې.

**پوښتنه** : بدلول د ایمان بالآیات په ثمن قلیل سره هلته کیدای سوای، چې یهودو ته ایمان بالآیات وای او دوی هغه ایمان پرې ایښې وای او دهغه په عوض کې یې ثمن قلیل اخیستې وای او سره ددې چې یهودانو خو ایمان بالآیات القرآنیه هیڅ نه درلودی؟

**جواب** : والجواب ان معنی الاستبدلال المذکور پر دې ده چې دوی خو دعوی د ایمان بالتورات کوله. نو ایمان بالتورات مستلزم دی ایمان لره. بالآیات القرآنیه کما ان الکفر بالآیات القرآنیة کفرٌ بالتوراة، نو گویا دوی ایمان بالآیات القرآنیة درلودی او په ثمن قلیل یې بدل کړی کذا فی حواشي البیضاوی.

قوله (وإيای فاتقونِ) یعنی باتباع الحق والایمان بالقُرآن والایمان بمحمد علیه الصلوة والسلام والاعراض عن المتاع الدنیوی الخسیس المسترزل.

درویش وایي چې د تاکید دلاري د (إيای فاتقونِ) او د (إيای فارهبونِ) فرق نسته. غایة الأمر ان التقوی هو فرط الصیانة چې منتهی دحال د سالکینو دی. او رهبة بیرې ته وایي. چې ابتدایي حال د طالبانو دخدای جل وعلا دی، نو چونکه په (إيّای فاتقون) کې خطاب و علماوو ته د یهودیانو وو او دحال سره د علماء و فرط الصیانة او غایة الوقایة د عذاب څخه دخدای ﷻ مناسب وه، نو ځکه یې دوی په (فاتقون) سره مخاطب کړه. او چونکه په آیت سابقه و کې عوام د بني اسرائیلو مخاطب وه او عوامو ته نفس بیره دخدای ﷻ چې ابتدائي حال د سلوك دی کافي وه، نو

ځکه په اول آیت کي (فارهبون) ذکر سوله. وهذا حاصل ما في البیضاوی وروح المعاني و روح البیان و تفسیر المظهری دی.

درویش وایي چي زموږ د اسلام په اولینو دورو کي عُلماء د امت مرحومه په تقوی سره په صحیح معنا موصوف وه. ته تاریخ اسلامي د علماء منځنۍ مینو مطالعه کړه، خصوصاً د درویش شرحه د ابوالمنتهی چي په پښتو ژبه سره د ډیري زمانې څخه چاپ او په ټولو کتابخانو کي دستیاب کیږي.

لکن رفته رفته دعلماوو حال د تقوی حقیقي څخه و طرف ته د تقوی لفظي روان دی. الی یومنا هذا. غزنوی رحمه الله:

چو بینم دین احمدﷺ در غریبی ✣ دلم سوزان و چشم خون جاری

واعظان چون جلوه درمحراب منبر میکنند ✣ چون بخلوت میروند آن میکنند

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤٢﴾

او تاسي مه ګډوی حق چي صفت دمحمدﷺ ستاسي په کتاب تورات کي په باطل سره چي تاسي به په خپلو لاسو غلط بیانات په باره کي دعلیه السلام نوشته کړي وي دپاره د طلب د ریاست خپل پر عوامو او دپاره د حفظ د رسومو جاریه بینکم وبین العوام. او جمله د تکتموا الحق عطف پر تلبسوا ده او تر (لا) ناهیه لاندي ده. او حال دادی چي تاسي اهل علم یاست او د عالم سره کِتمان الحق مناسب نه دی، بلکه مناسب دده سره، بلکه واجب پر ده الاعلان بالحق دی، نو پر دې ترجمه (تعلمون) منزل منزلة لازم دی، یعني مفعول نه غواړي. او یا مفعول محذوف دی، یعني

تعلمون أن محمدًا صلى الله عليه وسلم نبی مرسلٌ فإن ذالك مذكور في التوراة ومعلومٌ لكم.

---

**حکایت:** کعب بن الاشرف یوه ورځ احبار د یهودو یعني علماء ددوی سره جمع کړه، او ورته وې ویل چي تاسي څه وایاست په باره کي د محمد یعني نبيِ دی او که نه او دده نعت په تورات کي سته او که نسته؟ ملایانو ورته وویل چي هو نبيِ دی او نعت یې په تورات کي موجود دی، نو کعب مذکور ورته وویل چي ماوتاسيِ ته د انعام او عطیه نیت کړی وو، که تاسيِ دا جواب نه وای راکړی، ملایانو ورته وویل چي موږ دا جواب د بي فکری په حالت درکړی، نو ته موږ ته مهلت راکړه چي موږ تورات په ښه غور مطالعه کړو. بیا به هغه موافق د تورات سره موافق جواب درکړو. نو ملایان چي سره یوازي سول، نو د علیه السلام اکثر نعوت او حلیې یې دده دحال نعوتو او په حلیې برابر کړه، نو یې کعب مذکور ملعون ته وربنکاره کړه، نو کعب مذکور هر مُلا ته یوه کاسه اوربشيِ او څلور ګزه کرباس ورکړی. وفي المثنوی:

بود در انجیل نام مصطفی ✣ آن سر پیغمبران بحر صفا

بود ذکر حلیها وشکل او ✣ بود ذکر غزو و صوم و اکل او

الی آخر الأبیات درویش. هذا ماذکره صاحبُ روح البیان لکن لایناسب المقام لأنّ الخطاب فی الآیات المتلوة مع الیهود لامع النصاری فافهم واغتنم = درویش.

په تفسیر تیسیر کي وایي چي دا آیت که څه هم په شان کي د یهود نازل سوی دی، لکن حکم یې عام هغه مسلمانانو ته هم شامل دی چي د یهودو سره مشابه کارونه کوي، نو ګویا حکمرانانو ته د مسلمانانو وایي

(لاتخلطوا العدل بالجور) او قضاتو د مسلمانانو ته وايي (لاتخلطوا الحکم الحق المعلوم لکم بأخذ الرشوة) او ملايانو ته د اسلام وايي چي تاسي تعليم د علومو شرعيه مه کړوی په اخذ الاجرة سره. لماورد في الحديث الصحيح مَن تعلَّم علماً لايبتغی به وجه الله بل لايتعلمه الا ليصيب به عرضاً من الدنيا لم يجد عرف الجنة يعني بوی د جنت فضلاً عن دخولها.

**مسئلة:** که پر يو عالم تعليم د حکم الهي متعين سو يعني بل عالم دغه حکم نه وو او دي عالم منع وکړه د تعليم څخه دغه، ترڅو چي اجرت ور نه کړي، نوبه حکم کي د آيت مذکوره داخل دی. بلکه عالم بايد داسي وي لکه خدای پاك وايي: (يُجاهدون في سبيل الله ولايخافون لومة لائم) اويا عليه السلام وايي : (لايمنعنَّ احدکم هيبة احدٍ ان يقول او يقوم بالحق حيث کان).

**حکايت:** تاريخ اسلامي خبري کوي. او علماو ته د اسلام په لوړه سويه وعظ او تبليغ کوي. او وايي چي سُليمان بن عبدالملك چي يو د الوالامر څخه د مسلمانانو وو په سرزمين کي د عربو چي قصد د مکي مکرمي يې وو، لکن پر لاز د مديني راغلی او د يوڅو ورځو دپاره په مدينه منوره کي پاته سو. نو د خلکو څخه يې پوښتنه وکړه چي په مدينه کي داسي يو څوك سته چي د يوچا د اصحابو څخه د عليه السلام سره يې ملاقات سوی وي؟ خلګو ورته وويل : هو، يو ابوحازم رحمه الله سته. نو سليمان سړی ور واستاوه او ابوحازم رحمه الله يې راوغوښتی خپل حضور ته، نو سليمان په دوران کي د ملاقات اول دا خبره ورته وکړه: ياابا حازم ماهذا الجفاء؟ ابو حازم ورته وويل: چي ماستاسره څه جفا کړېده؟ سليمان ورته وويل چي

بوله مخور كسان د مدينې زما ملاقات ته راغله او ته نه راغلې؟ ابوحازم ورته وويل. يا أميرالمؤمنين پناه په خداى وغواړه دداسې غلطو كلماتو د ويلو څخه، ولې چې تا زه دمخه تر نن ښېځ نه يم پيژندلى او نه ما ته تر اوسه ليدلى يې، نو زما ته راتګ وتاته ولې جفابولې؟ نو سليمان بن عبدالملك و محمدبن شهاب زهري رحمه الله چي يو عالم وو تبع تابعي چې د سليمان سره همراه وو، وكتل ددې دپاره چې د ابوحازم رحمه الله خبره صحيح ده او كه نه؟ محمدبن شهاب وويل چې د شيخ يعني ابوحازم خبره صحيح ده. ته خطاوتلى يې. او بيا سليمان و ابوحازم رحمه الله ته وويل چې څه سبب دى چې زموږ مرګ نه دى خوښ؟ ابوحازم رحمه الله وويل چې تاسي آخرت خراب كړى دى او دنيا مو آباده كړېده. نو څكه ستاسي زړه نه غواړي چې د آبا ځاى څخه دې خرابو ته ولاړ سې. سليمان ورته وويل: أصبت الحق يا اباحازم. بيا سليمان ورته وويل چې زموږ ورتګ به خداى ﷻ په ورځ د آخرت پر څرنګه عنوان وي؟ ابوحازم رحمه الله ورته وويل چې صالح سړي به خداى ﷻ ته داسې ور ځي په محبت سره لكه يو سړى چې دخپله كوره او عيالنه څخه مسافر سوى وي او خپل كور ته ورځي. او بدكاره سړي به په داسې توګه ور ځي چې لكه يو مريى چې د باداره تښتيدلى وي او د مجبورى په حالت كي بيرته بادار ته ور ځي. فبكى سليمان. بيا سليمان ورته وويل چې زما سره به خداى ﷻ څه معامله وكړي په ورځ دقيامت؟ ابوحازم رحمه الله ورته وويل چې ته خپل عمل پر قرآن پيش كړه، نو تاته به خپل حال معلوم سي. سليمان ورته وويل چې پر كوم ځاى د قرآن يې پيش كړم؟ ابوحازم رحمه الله ورته وويل: پر دغه آيت (إن الأبرار لفى نعيم و إنّ الفجّار لفى جحيم) سليمان ورته وويل چې فأين رحمة الله يا

اباحازم؟ ابـو حـازم ورتـه ووېـل : (إنّ رحمة الله قريبٌ من المحسنين) بيـا سليمان ورتـه ووېـل فأيُّ عبادالله اکرم عندالله؟ ابوحـازم ﷬ ووېـل چې خاوند دغيرت او عقل سليم وي. سليمان ورتـه ووېـل فأي الأعمال افضل؟ ابوحازم ﷬ ورته ووېل أداء الفرائض مع اجتناب المحارم. سليمان ورتـه ووېل چې کومه هغه دعاده چې دخدای ﷻ په دربار کې و اجابت ته نژدې ده؟ ابوحازم ﷬ ورته ووېل چې دعـاء د محسـن اليـه ده و مُحسن تـه. بيـا سليمان ورتـه ووېل چې کومـه صدقه افضله ده؟ ابوحـازم ﷬ ورتـه ووېـل چې صـدق د سـائل چې مسـکين وي بيلـه احسـانه او زهيرېدو. سليمان ورته ووېل چې کومه خبره بـه عدله خبره ده؟ ابوحازم ﷬ ورته ووېـل چې حق خبره کول دي وهغه چاته چې ته څنې بېرېږې او يا دي وهغه تـه طمع د دنيـا وي. سـليمان ورتـه ووېـل چې کوم سړی ډېر هوشيار دی؟ ابوحـازم ﷬ ورتـه ووېـل چې هغـه سړی دی چې عبـادت دخدای ﷻ کوي او نـور خلک هم دخدای ﷻ عبادت ته رابولي. سليمان ورتـه ووېـل چې ډېر احمق سړی څوک دی؟ ابوحـازم ﷬ ورتـه ووېـل چې هغـه سړی دی چې خپـل آخرت يعني جنت د بل د خوشحالی دپاره دلاسه ورکړي او يا دبـل د دنيـا دپاره. سليمان ورتـه ووېـل أصبت. بيا سليمان ورتـه ووېل: چې ستاڅه رايـه ده دا زموږ په حکمراني کې؟ ابوحازم ورته ووېل نور مې وبخښه. سليمان ورته ووېـل : خامخا نصيحت ماته به يې کوې. ابوحـازم ﷬ ورتـه ووېـل: يا اميرالمومنين! ستا پلرو او نيکه ګانو دا بادشاهي د توري په زور نيولې ده بيلـه مسـودې د اهـل او عقـد، حتـی پـر دغـه بادشاهي نيولو باندې د مسلمانانو سره تاسې ډېر جنګونـه وکړه او ډېر مسـلمانان مـو پـه قتـل ورسول، حتـی چې ډېر مسلمانان ستاسې د بيرې او ظلم څخه ترک الـوطن

ته مجبور سولهز نو یو سړی چې د سلیمان سره ملګری وو ابوحازم رحمه الله ته وویل بئس ماقلتَ یا اباحازم. ابوحازم رحمه الله وهغه سړي ته وویل: کذبت ان الله تعالی اخذ من العلماء میثاقاً لتبیین الحق ولاتکتمونه. سلیمان ورته وویل چي زموږ حال به څرنګه صالح سي؟ ابوحازم رحمه الله ورته وویل چي ډیره سختي د رعیتو سره پرېږده یعني ظلم مه کوئ. او کار د غیرت څخه اخله. او تقسیم د بیت المال په برابره توګه کوه. یعني قوم پرستي مه کوه. سلیمان ورته وویله چي څرنګه موږ اموال د خلګو څخه اخلو؟ ابوحازم ورته وویله چي د روا لاري یې را اخله او مستحقو کسانو ته یې ورکوه سلیمان ورته وویل چي ته زموږ نه ملګری کیږې، موږ به ستا څخه زدکړه کوو؟ ابوحازم رحمه الله ورته وویل چي زه پر خپل ځان بیریږم چي ستاسي خوا ته به زما میل پیدا سي، نو به خدای جل جلاله ما ته ضعف الحیات او ضعف الممات را په برخه کړي. سلیمان ورته وویل چي ته خپل احتیاجات ماته وړاندي کړه چي زه یې در حل کړم. ابوحازم رحمه الله ورته وویل چي زما حاجت دادی چي د دوږخه مي خلاص کړه اوجنت ته مي ورولېږه. سلیمان ورته وویل چي داخو زما تر طاقت لوړ کار دی. ابوحازم رحمه الله ورته وویل چي زما بل حاجت وتاته نسته. سلیمان ورته وویل چي ماته یوه دعاء وکړه. ابوحازم رحمه الله وویل چي خدایه! که سلیمان ستا دوست وي، نو ده ته توفیق د خیر د دنیا او آخرت ورکړې. او که به ستا دښمن وي، نو د نزلې تر وریښتانو یې ونیسې او ماتحب وترضی ته یې کش کړې. سلیمان ورته وویله چي ماته نصیحت وکړه. ابوحازم رحمه الله ورته وویل چي ما تاته کوتاه خبري وکړې. لکن په باطن کي مي بیخي ډیري خبري درته وکړې، نو که یې ته اهل یې نو دي بس دي. او که یې ته اهل نه یې نو ماته هم بې ځایه غشي ویشتل نه دي په کار. سلیمان ورته وویل چي ماته اخیري وصیت

وکړه. ابوحازم رحمه الله ورته وویل : وصیت به درته وکړم. لکن ډیر کوتاه. هغه دا چي تعظیم دخدای ﷻ کوه او خان ساته ددې څخه چي خدای دي تا نه ووینې په داسي کار کي چي ته یې ځني نهي کړی یې. او یادي تا نه وويني په داسي کار کي چي ته یې په امر کړی یې.

نو دسلیمان سوالونه چي خلاص سوه. ابوحازم رحمه الله ته یې رخصت ورکړی او وروسته سلیمان سل ۱۰۰ دینار ور واستوله او وې ویله چي ته دا مصرف کړه زه دغونه نور در استوم. ابوحازم رحمه الله هغه دده دینارونه بیرته ور رد کړه او ورته نوشته یې کړه (یاأمیرالمؤمنین اعنداك بالله أن یکون سؤالك ایّای هزلاً و ردّی علیك بذلاً مالا أرضاه لك فکیف لنفسی)

**فائدة عظیمة**: پوه سه! چي قدماوو د فقهاوو رح اخستل د اجرت پر تعلیم القرآن باندي ددې آیت (ولاتشتروا بآیاتی ثمناً قلیلاً) ناجائز گنړلی دي او دوی پر تعلیم القرآن باندي. تعلیم الحدیث والفقه او د نورو علوموشرعیه قیاس کړي دي. بلکه امامت او آذان یې هم پر قیاس کړي دي.

اما د متاخرینو د فقهاوو فتوی پر دې ده چي استیجار روا دی. شارح الوقایة وایي لظهور التوانی فی امورالدین او دلیل د متاخرینو دا حدیث دی. چي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وایي:

(إن احق ما أخذتم علیه اجراً کتاب الله) او دوی د آیت تاویل داسي کوي چي په حق کي د چا دی چي پر ده متعین وي. یعني بل څوك نه وي چي دا تعلیم وکړي او دی مزدوري غواړي لکه چي پر علماوو د یهودو چي تعلیم د تورات په باره کي د علیه السلام متعین وو او دوی اُجرت د عوامو څخه واخیستی کما مرّ فی قصة کعب بن الأشرف ومثّلو له چي په یو

ځای کي غاسل د مړي یو سړی وي او هغه غسل بې مزدوری نه ورکوي نه ورکوي، نو ده ته مزدوري حرامه ده لتعیینه علیه. او که د مړي غاسلان ډیر وه، نو غاسل ته مزدوري روا ده. لعدم التعین علی احدٍ منهم. وهکذا تعلیم الحدیث والفقه وغیرهما من العلوم الشرعیة وهکذا الأذان والإمامة بالأُجرة.

**مسئلة**: که دا شیان پر یو سړي متعین هم سي او دی نفقه د عیال نه لري، نو هغه اخذ د اُجرت روا دی. او هم په صورت کي د تعین پر خلیفه د اسلام دا واجبه ده چي دغه متعین سړي ته دي تنخا مقرره کړي لئلا یضیع الأمور المذکورة ولا المتعین وعیاله. او که خلیفه تنخا نه ورکوله، بیا پر عامو مسلمانانو دا تنخا ورکول واجب دي.

دوی وایي چي څه وخت چي سیدنا امیرالمومنین ابوبکر صدیق د خلافت المومنین دپاره متعین سو، نو دده کسب قبل الخلافة دجامو خرخول وه او په هغو کي ادنی مایکفی للعیال گزاره کوله. نو د تقررالخلافة په سهار یې یوڅه کالي واخسته چي دا به په بازار کي خرخ کړي. او بیا به دخدمت المومنین یعني خلافت کار کوي. حضرت عمر﷛ په مخه ورغلی، ورته وې ویل: چیري ځي یا امیرالمومنین؟ ده ورته وویل چي زه به ژر ژر یوڅه کالي خرڅ کړم دعیال د نفقې دپاره او بیا به د خلافت مقام ته درسم. عمر﷛ ورته وویل چي دواړه کاره نه سره کیږي. ته چي په خدمت د مسلمانانو اخته سوې، نو تاته به د بیت المال څخه د مسلمانانو تنخا درکول کیږي. نو یې دی بیرته راوگرځاوه، نو په اتفاق د اصحابو کرامو﷛ یو څه تنخا ورمقرر کړه.

درویش وایي چي دعمرﷺ رایه او فکر ډیر خوش آیین وو، ولي خلیفة المسلمین او امیرالمومنین چي په بازار کي کیږي ځرځوي څه ناڅه دمسلمانانو سپکاوی وو د کافرانو په نیز

**پوه سه!** چي د قرآن شریف خرڅول دقسم څخه د (لاتشتروا) آه په اتفاق نه دی، ولي چي دا خو بیع د اوراقو او کاغذ ده، او د عمل د کاتب یا چاپ والا دعمل خرڅول دي کمالایخفی هذا حاصل ما فی روح البیان وحاشیة الجلالین وغیرهما.

## وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ﴿٤٣﴾

او تاسي لمونځونه کوئ او زکات ورکوئ یعني لکه دمسلمانانو لمونځونه او زکاتونه، ولي مطلق لمونځ او زکات خو د یهودیانو په دین کي هم وو. ددې آیت څخه دا معلومه سوه چي کفار مخاطب او مکلف په فروعو د دین هم دي کمافی المظهری.

---

**پوه سه!** چي زکات په لغت کي په معنا د نما او زیادت راغلی دی. کما یقال زکی الزرع اذا نما. او په معنا د پاکي هم راغلی دی کما فی قوله تعالی: (ومن تزکی) ای تطهر. نو په زکات شرعي پاکي دمال د خبث څخه ده او مال هم په ورکړه د زکات نما کوي

او تاسي رکوع کوئ یعني لمونځ کوئ سره د لمونځ کوونکو چي علیه السلام او اصحاب کرام دي رض. نو په آیت کي ذکر د جزء مراد ځني کل دی.

**پوښتنه**: رکوع خو یو جزء دلمانځه دی او لمونځ خو نور هم ډیر اجزاء او ارکان لري، لکه سجده، ولاړه، قرائت وغیره نو په تخصیص کي د رکوع څه حکمت دی؟

**جواب**: اشاره ولمونځو ته دمسلمانانو ده، چي د یهودو په لمانځه کي رکوع نه وه.

**مسئلة**: په دې آیت کي چي (مع الراکعین) پکښي دی باعث کول دي د مسلمانانو پر لمانځه دجماعت. او جماعت په نیز د داود ظاهری رکن د لمانځه، یعني سره د قدرت پر جماعت بې جماعته لمونځ صحیح نه دی په نیز د ده. او امام احمدبن حنبل رحمه الله وایي چي رکن دلمانځه خو نه دی، بلکه جماعت فرض علیحده دی. یعني لمونځ بې جماعت خو صحیح دی لکن که سړی سره د قدرته دجماعت لمونځ بې جماعته وکړي، نو یو فرض خو یې ادا کړی، او د فرض په اندازه یې غاړي بندي دي. او د جمهور حنفیانو رح او شافعیانو رح په نیز جماعت سنت موکده دی، نژدې واجب ته دی. بلکه بعض محققین د حنفیه وو یې عین واجب بولي. همداغه آیت پر دلیل کرځوي، ولي چي امر خودپاره د وجوب دی چي مطلق ذکر سي کمافی کتب الاصول. وفی الحدیث المتفق علیه کي راغلي دي چي علیه السلام وایي (صلاة الجماعة تفضلُ صلوة الفذ بخمس وعشرین درجةً) وفی روایة (بسبع وعشرین) ولامنافات بینهما لان التصریح باسم العدد لاینفی الزائد کماتقرر فی اُصول الفقه مثلاً یو سړي وویل چي ماته پنځه کسه نن راغله او بیا یې وویل چي ماته اوه ۷ کسان نن راغله. دا منافات نه سره لري.

او بعض شارحین دحدیثو مبارکه وو وایي چي دا فرق د ۵ او ۷ بناء پر اخلاص او مواظبت د جماعتي سړي دی. او بعض وایي چي عطایا د اُمت مرحومه د رب العزت دخوا او ز افزون په ازدیاد کي وي.

**تنبیه:** درویش د مظهري څخه خلاف المذهب رانقل کړی چي ددې آیت څخه دا معلومه سوله چي کفار مخاطب په فروع سره ددین دي لکه لمونځ او زکات وغیرهما، لکن مذهب د حنفیانو رح دادی چي کفار په اعمالو بدنیه یا مالیه لکه لمونځ او زکات مخاطب نه دي او دوی ته عذاب پر ترك د لمانځه مثلاً نه ورکول کیږي، نو دغسي آیتونه چي ظاهراً پر تکلیف د کفارو په فروعو سره د دین دلالت کوي محمول پر اعتقاد دفرضیت دهغو عباداتو دي. مثلاً په مذکوره آیت کي معنا داده (وأقیموا الصلوة) اعتقدوا فرضیة الصلاة وهکذا في غیرها.

**پوښتنه** :دکفارو خوابدی ځای دوږخ دی، یا په فروعو مخاطب یا نه، نو ددې اختلاف څه فائده ده؟

**جواب** : هغه امامان رح چي کفار په فروعو مکلف بولي، هغه وایي چي کافرانو ته په دوږخ کي درې قسمه عذاب ورکول کیږي. یو عذاب د کفربالله و رسوله وکتابه. او بل عذاب د نه عقیدې ددوی پر فرضیت دلمانځه. او بل عذاب پر نه کولو د لمانځه دی.

او په نیز د حنفیانو رح دوه اول عذابه دوی ته ورکول کیږي. وتفصیل هذه المسئلة یُطلب من کتب اصول الفقه.

نو دجماعت فضائل واوری!

۱) جماعت په مثال د جنګ د کفارو سره، یعني غزا دی او محراب یې په مثال د ځای دغزا دی. ولابد للقتال من صُفوف المسلمین الغزاة فالجماعة فی الصلاة کصفوف الغزاة.

۲) په حدیث صحیح کي راغلي دي: (ما إجتمع من المسلمین فی جماعة اربعون رجلاً الاّ وفیهم رجلٌ مغفور له)آه او خدای جل سلطانه اجل تر دې دی چي په څلویښتو خلکو کي دي یوه ته بخښنه کوي او ۳۹ دي ناامیده پرېږدي.

۳) واجب ده پر امیر دمسلمانانو چي هغه سړي ته چي همیشه تارك الجماعت وي عذاب ورکړي.

درویش وایي چي اکثراً تارك الجماعة بلِ الصلاة خو غټ غټ امیران وي. نو هغو ته به څوك عذاب ورکړي؟ اللهم صبراً.

چو کفر از کعبه برخیزد کجاماند مسلمانی؟

۴) ابوسلیمان الدارنی رحمه الله وایي چي ما شل کاله په وطن کي تېر کړه ماته احتلام پېښ نه سو. لکن چي مکې مکرمې ته ورغلم یو دماخستن لمونځ راڅخه بې جماعته سو. په هغه شپه ماته احتلام پېښ سو.

### دلمانځه ادب:

لمونځ كوونكي بايد په حضور قلبي او په لمانځه كي دنيـايي فكر نه وهي فضلاً عن الفكر فى المعاصى. بعض علماء د باطن رح ددې آيت چي (ولاتقربوا الصلوة وانتم سُكارى) كه څه هم شان نزول خو يې سكر د شرابو څخه دى په وخت كي د لمانځه كما سيأتى انشاءالله ، لكن مع هذا دوى وايي (لاتقربوا الصلوة وأنتم سكارى من حب الدنيا وكثرة الهموم) وفى المثنوى المعنوى:

اول اى جان دفع شر موش كن ❖ وانگه اندر جمع گندم كوش كن
بشنو از اخبار آن صدر صُدور ❖ لاصلوة تم الا با الحضور

يعني حضور قلبي او دفع د حضرات شيطانيه وو او دنياويه وو اولين شرط د قبول د لمانځه دى. البتتاً علماء رح وايي په لمانځه كي د بل عبادت فكر وهل ممنوع نه دي. لماروى عن عمر رض انه اذا قام فى الصلوة كان يتفكر فى تجهيز الجيش لغزوالكفار وكما يتفكر الرجل فى الصلوة فى افعال الحج مثلاً. والله الموفق.

أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ وَأَنتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٤٤﴾

ایا تاسي امر کوئ یعني اې علماء دیهودو لأنّ الخطاب لهم، خلک یعني هغه مسکینان ستاسي چي تاسي طمع د نقود وغیره نه ورته لری په بِر یعني ښه کار سره. عن إبن عباس رض إنها یعني دغه آیت نازل سوی په ملایانو د یهودانو چي دوی به امر کول په پټه هغه بې طمع کسان په متابعت دعلیه السلام او په خپله به یې متابعت نه کاوه.

او بعض مفسرین رح وایي چي دې ملایانو به خلکو ته ویل چي صدقات کوئ او پخپله به یې صدقه نه کول. او بغوی رحمه الله هم نژدې د ابن عباس رض وتفسیر ته داسي تفسیر کړی دی چي علماوو د یهودو به وخپل قریب ته او هغه چا ته دمسلمانانو چي ددوی به حلیف وو إذا سأل المسلمون عنهم فی امر رسول الله صلی الله علیه وسلم اُثبُتْ علی دینه فانّ امره حقٌ وقوله صدقٌ او دوی په خپله به چي مامور په تمسک بالتورات هم وه دهغه خپلې وینا څخه یې مخالفت کاوه. او دعلیه السلام نعت ته بې چي په تورات کي موجود وو تغیر ورکاوه. نو ددې کبله خدای ﷻ ددوی ته وویل: (وتنسون أنفسكم) او تاسي هیر کړي دي خپل ځانونه.

---

پوه سه! چي هیرول دخپل ځان څو څوک نسي کولای. نو ټوله مفسرین رح تفسیر د نسیان په ترک سره کوي چي د هیري سره لازم دی او د بیضاوي د کلام څخه داسي فهمیږي چي دی وایي چي تترکونها کالمنیات آه چي دی په (تنسون) کي استعارة تبعیة وایي او حال دادی چي تاسي

تلاوت د کتـاب الله تـورات هـم کـوئ. چې په هغـه کـي نعـوت او بيـان د حقيقت دده ﷺ د ديـن موجـود دی. او په هغـه تـورات کـي وعيـد او عـذاب ذکر سوی دی چې قول او عمل يې سره مخالف وي او يا ترك د بر کوي او يا عناد کويِ. (أفلاتعقلون) ايا تاسي عقل نه لرئ؟ ولې چې عقل خو سړی دداسي کارو څخه نهِ منع کوي.

**فائدة**: بر توسع د خير په کارو کي مشتق دی د بَر څخه بفتح الباء چې پراخه بيابان ته وايي.

**فائدة**: قاضي بيضاوي رحمه الله او مظهري رحمه الله او روح البيـان په يوه خوله وايي چې استفهام په دې آيت کي دپاره د تقرير يعني باعث کول پر اقرار. او تـوبيخ يعني سـرزنش وچاتـه. او تعجيـب يعنـي خلـک او سـامعان پـه تعجب کي اچول.

**پوښتنــه** : داستفهام حقيقي معنـا خـو طلب دفهـم ده، چونکـه هغـه پـه خدای ﷻ کي محال وو، نو څخه پر مجاز محمول دی، لکن پوښتنـه داده چې هره يوه د تقرير او توبيخ او تعجيب خو جلا جـلا معاني مجازيه دي. او علماوو د علم بيـان خـو د دوو مجـازي معنـاوو په يوه وار د لفظ څخه اخيستل ناجائز گڼلي دي.

**جواب** : ددې سوال په جواب کي بعض محشيانو د بيضاوي داسي ويلي دي : أی الإستفهام لمجموع المعانی الثلثة من حيث المجموع فهو معنیً واحدٌ مجازی آه.

**فائــدة**: چونکـه استفهام صـدر د کـلام غـواړي او مابعـد الاسـتفهام پر ماقبل الاستفهام نه عطف کيږي کما تقرر فی النحو نو په دې کلام کي

حذف د معطوف علیه دی وروسته تر استفهام . والتقدیر أتفعلون هذا ولاتعقلون؟

**فائدة**: (تعقلون) یا منزل منزلة اللازم دی. أی لاعقل لکم یمنعکم عن هذا الفعل الشنیع ای مخالفة القول والعمل والعناد. او یا مفعول د (تعقلون) محذوف دی. والتقدیر أفلاتعقلون قبح ضیعکم فیمنعوکم عنه.

**فائدة**: عقل په لغت کي حبس ته وایي ومنه عقال البعیر یعني زنګون بند د اوښ. او بیا په عُرف کي إدراك انساني ته وایي، ولي چي إدراك انساني سړی منع کوي د قبیح کار څخه او بندوي پر بنه کار باندي. او بیا وقوت د نفس وایي چي دا ادراك په کیږي.

**فائدة**: دا آیت که څه هم په علماوو کي د یهودو نازل دی، لکن زموږ هغه ملایانو ته هم شامل دی چي وبل ته ښوونه د ښو کارو کوي او په خپله عمل نه په کوي. او پر منبر د وعظ قال الله وقال الرسول وایي او په خلوت کي په هغه سره عمل نه کوي. بیت:

واعظان کین جلوه درمحراب و منبر میکنند
چون بخلوت میروند آن کار دیگر میکنند

او ددې آیت څخه دا معلومیږي چي دداسي ملایانو فعل د جاهل بالشرع او احمق خالي عن عقل دی، ولي چي څوك چي جامع د علم بالشرع او د عقل څښتن وي. باید دداسي کارو څخه یې عقل منع کړي او شرع یې منع کړي.

**فائدة**: ددې آیت دا معنا نه ده چي فاسق دي چانه نصیحت نه کوي، ولي چي فسق جلا بد کار دی او امر بالمعروف او نهی عن المنکر جلا ښه کار

دی، بلکه مقصود دادی چي واعظ دي اول تزکیه د خپل خان وکړي او خپل خان دي کامل کړي، ترڅو چي وعظ دده په بل چا کي تاثیر وکړي.

روی البغوی رحمه الله چي رسول کریم صلی الله علیه وسلم په شپه کي د معراج داسي کسان ولیدل چي شونډان یې په غچیو د اور ور پرې کول کیدله، علیه السلام د جبرئیل علیه السلام څخه پوښتنه وکړه چي من هؤلاء؟ جبرئیل علیه السلام ورته وویل چي دا ستا د اُمت خطیبان دي چي **يأمرون الناس بالبر وينسون انفسهم وهم يتلون الكتاب.**

او دغه رنګه اسامه بن زید رضی الله عنه وایي چي ما د رسول کریم صلی الله علیه وسلم څخه واوریدل چي ویل یې چي یو سړی به په ورځ د قیامت دوږخ ته ورولي چي کُلمې به یې تر دُبره راوتلي وي او پرخپلو کُلمو به راګرځي لکه د خراس خر پر خپل ژرنده. او دوږخیان به پر راټول سي. بعض دوږخیان یې وپېژني او ورته ووایي چي ای فلانیه ته دلته څه کوې؟ ته هغه ملا نه یې چي موږ ته به دي امربالمعروف او نهی عن المنکر کاوه؟ دی ورته ووایي چي هو زه هغه یم. لکن تاسي ته به مي امربالمعروف کاوه او په خپله به مي هغه معروف نه کاوه. او تاسي به مي د منکر څخه منع کولاست او ما په خپله هغه منکر کاوه. بیت:

مشکلی دارم ز دانشمند مجلس باز پرس
توبه فرمایان چرا خود توبه کمتر میکنند

**وفی الحديث ما من عبدٍ يخطب خُطبةً إلا والله تعالى سائله عنها يوم القيامة ما اراد بها.** کذا فی روح البیان. **وقال عليه الصلاة والسلام كم من خطيب يلعب به الشيطان قال الشيخ اسماعيل الحنفي** رحمه الله **بعد ذكر هذا الحديث** که د واعظ غرض دا وو چي زما خو دي مسلمانان نفع واخلي

که څه هم ژه معذب فی النار یم فهو نوع فناء لکن یخاف ان یجد حظه فی ضمنه و ادنی الحال ان یُلاحظ قوله علیه الصلوة والسلام انّ الله یؤید هذا الدین بالرجل الفاسق. درویش وایي چي دا حدیث سره د خپله حاله دمخه ذکر کړی دی.

**حکایــــت:** تاریخ وایي چي یو عالم وو د واعظانو څخه چي ډیر موثرالکلام په زړو کي د سامعانو وو، حتی چي بعض اوقات دده د وعظ د تاثیره یو یا دوه کسه مړه کیدله. او په دغه ښار کي یوه سپین سري ښځه وه چي یو خوی صالح نرم دله یې درلودی. او دې سپین سري به همیشه وخپل خوی ته ویل چي ددغه عالم او واعظ و نصیحت ته به نه ورځي، ولي چي بیریدله چي خوی یې نرم دله دی چي په نصیحت د واعظ مذکور مړ نسي. خو یوه ورځ د سپین سري خوی د مور په پټه نصیحت ته ورغلی او څو خبري د واعظ چي یې واوریدلي بیهوش سو او په هغې بیهوشی کي یې روح قبض سو. او خلکو د سپین سري د خوی جنازه مور ته ور وړه او په تکفین او قبر کي یې کومك ورسره وکړی. او هغه واعظ هم پر آس سپور هدیرې ته ورغلی. سپین سري چي واعظ پر آس سپور ولیدی او د خوی د مرګ لمبه یې په زړه کي وه، نو یې واعظ ته داسي وویله:

أتهتدی الأنام ولاتهتدی ❊ الاذالك لاینفع

فیا حجر الشحذ حتی متی ❊ تسُنُّ الحدید ولاتقطع

واعظ چي دا دوه بیته د سپین سري واوریدله پر آس سربیره یې لویه نعره وکړه او د آسه څخه را ولویدی او بې هوشه سو. او په هغې بیهوشی کي یې روح ورکړه. رحمه الله تعالی.

وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۚ وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ ﴿۴۵﴾

**پوه سه!** چي علماء دیهودو چي خدای ﷻ امر کړه په ایمان سره پر علیه السلام او پر اظهار د نعت د علیه السلام چي په تورات کي موجود وو. او دا دوی ته ډیره ګرانه معلومیده، ولي چي ددوی ریاست پکښي دمابینه څخه تلی، او هغه مالي ګټي چي دوی به د نورو یهودو څخه ترلاسه کولې دغه هم په خطر کي د عدم ګرځیدلې، نو خدای ﷻ ددوی ته علاج دهغه بیان کړی او وې ویله چي (تاسي مدد وغواړئ په دغه سختیو کي بلکه په عمومي شدائدو کي په صبر سره انتظاراً للفرح والسرور)

**پوه سه!** چي لفظ د صبر که صله یې علی وي، یعني الصبر علی الشیئ، نو مراد دادی چي ځان بند کړه او صبر وکړه پر ټولو عباداتو دخدای ﷻ او که د صبر صله (عن) راسي نو یې معنا داده چي ځان بند کړه د معاصي وو څخه او د حب څخه د ریاست چي مانع دایمان ستاسي دی. او ډیره لویه ګناه ده.

او که صله د (فی) وي نو معنا یې داده چي په موجباتو کي د فقر او مسکنت او د زوال د ریاست چي هغه سبب ستاسي د جاه و جلال دی صبر وکړی. لأن الصبر مفتاح الفرح دی (إنّ مع العسر یسراً إن مع العسر یسرًا)

او بعض مفسرین رح وایي چي مراد د صبر څخه روژه د مفطرات ثلثه وو څخه چي اکل دی او شرب او قضاء الشهوت دی، ولي چي روژمره کسر د شهواتو او تصفیه د باطن راخي ویناسب هذا المعنی قرینه وهو الصلوة. او کومك وغواړئ په شدائدو کي د لمانځه څخه

په حديث شريف کې راغلي دي أنه عليه الصلوة والسلام اذا خربه امرٌ فزع الى الصلوة، ولې چې لمونځ چونکه معراج المومنين دی. او ځای د نزول د رحمت د رب العالمين دی، نو خامخا زړه ورسره پوره کيږي. او رحمت و ګلدت څه ناڅه سپکيږي. وذالك بمقدار توجه المصلي دی. او هغه خبره چې مظهري کړېده، که څه هم ناقل دی چې کلمه د واو په معنا د (على) ده او معنا يې داسې بيان کړېده : (واستعينوا بالصبر على الصلوة) آه ډير بعيده توجيه ده. او د قرآن پاك سره مناسب نه ده، ولې چې واو عاطفه په معنا د على هيڅ ځای نه دی راغلی. او هغه آيت دی چې مظهري د استشهاد دپاره راوړی دی. من قوله تعالى : (وأمر اهلك بالصلوة واصطبر عليها) نداءٌ من بعيد، ولې چې په آيت مذكوره کې خو صريح لفظ د (على) راغلی دی.

او بعض مفسرين رح د صلوة معنا په دعاء سره کوي. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من كانت له حاجةٌ الى الله او الى احدٍ من بنى آدم فليتوضأ وليُحسن وضوئه ثم ليصل ركعتين ثم يُثني على الله وليُصلِّ على النبي صلى الله عليه وسلم وليقل لااله إلاّالله الحليم الكريم سبحان الله رب العرش العظيم الحمدلله رب العالمين أسألك مُوجبات رحمتك وعزائم مغفرتك والغنيمة من كل برٍ والسلامة من كل اثمٍ لاتدع لى ذنباً إلا غفرته ولاهماً الا فرجته ولاحاجةً هى لك رضاً إلاّ قضيتها يا أرحم الراحمين. رواه الترمذى والحاكم فى المستدرك نحوه.

ترجمه: آنحضرت صلى الله عليه وسلم وايي که چاته يو حاجت وي دخدای ج سره او يا ديوچا سره د بني آدم، نو دي اودس تازه کړي او ښه

کامل اودس دي وکړي او بیا دي دوه رکعته یعنې نفل وکړي او بیا دي حمد دخدای ﷻ ووایي او بیا دي درود پر علیه السلام ووایي او بیا دي مذکوره دعاء وکړي، انشاء الله حاجت به یې دسره سي.

**فائــــدة:** ضمیرد (إنها) یـا راجـع و استعانت تـه دی، نـو دا سـوال نـه پیداکیږي چې (إنها) خـو ضمیر مفرد دی او صبر او صلاة خو دوه شیان دي، نو باید (إنهما) ویـل سوی وای. او یا ضمیر مفرد راجع دی و هریوه ته د صبر او صلاة په تاویل د خصلة. او بعض مفسرین رح چې وایي چې ضمیر مونث راجع دی و تولو اما امروا به ومانهواعنه ته هغه توجیه د مقام سره مناسب نه ده کمالایخفی. او بعض مفسرین رح وایي چې ضمیر مفرد راجع دی یوازي و صلوة ته، ولي چې صلوة پر انواعو د صبر مشتمل دی مثل الصبر عن الأکل والشرب والتکلم المباح وغیرذالك.

اوهغه تفسیر چې بعض اهل التفسیر کړی دی او مظهري ﷫ هم په لفظ د قیل را نقل کړی دی چې معنا د آیت داسي ده: (واستعینوا بالصبر و انه لکبیرٌ وبالصلوة وانها لکبیرة ای ثقیلة شاقةٌ) فحذف احدهما اختصاراً، نو دا تفسیر لکه په قرآن کریم سره چې رایه آزمایي کوي او ډیر نامناسب تفسیر دی.

**پوه سه!** چې لمونځ په اعتبار د صرف المال په طهارت کي که اوبه په بیع وي او په سترالعورت کي متضمنه دي زکات لره. او په اعتبار د توجه إلی الکعبة لکه حج دی. او په اعتبار د لزوم د یوه مکان لکه اعتکاف دی. اوپه اعتبار د خشوع بالجوارح من القیام و وضع الید علی الید والنظر فی القیام الی موضع السجود والرکوع والسجود شامل دي

ډيرو عباداتو بدنيه وو لره. او اخلاص د نيت يې عبادت نفسانيه دی. او په اعتبار د مجاهدې د نفس او شيطان سره په دفع کې د افکار فاسده و او د امور دنيويه لکه جهاد فی سبيل الله دی. او په اعتبار د قرائة القرآن افضل د عبادات بدنيه وو دی. او په اعتبار د تکلم بالشهادتين په ناسته کي مشتمل پر اصل الايمان دی. او په اعتبار د منع د مصلی خپل خان لره چي اکل او جماع دی پر منزله د روژې دی. او په اعتبار د مناجات مع الحق سبحانه متضمن دی معرفت شهودي لره. فالصلوة افضل العبادات بعدالايمان بالله ورسوله ولهذا قالوا يُسأل عن العبد يوم القيامة بعدالسؤال عن الإيمان عن الصلوة. قال السعدي رحمه الله:

روز محشر که جان گداز بود ✤ اولین پرسش نماز بود

**پوه سه!** چي کبر خو د اجسامو صفت دی، نو بيضاوي رحمه الله وايي چي مراد دلته ثقيلةٌ وشاقةٌ دی او ددې معنا شاهديې هغه آيت دی، که څه هم په باره کي د مشرکينو راغلی دی. (كَبُرعلى المشركين ماتدعوهم إليه) او تولو مفسرينو د خشوع معنا په سکون او اخبات سره کړيده. ولهذا پټې غونډۍ ته خُشقه وايي او خشوع په قرآن مبارك کي صفت د آواز راغلي ده کمافی قوله تعالی: (وخشعة الأصوات للرحمان)آه او په صفت د بصر هم راغلې ده. کمافی قوله تعالی (خاشعةً أبصارهم) او خضوع لين يعني نرمي او انقياد ته وايي يعني فرمان برداري، نو ځکه فقهاء رح وايي چي خشوع د جوارحو صفت ده او خضوع د زړه صفت ده محصل مافی البيضاوی والتفسير المظهری و روح المعانی و روح البيان وغيرها.

**پوه سه!** چي خدای ﷻ خاشعین مستثنی کړه د (إنها لکبیرة) څخه. وجه د استثنائیت په اتفاق د مفسرینو یې دا ذکر کړېده چي خاشعین په امثالو د صبر او دلمانځه اموخته دي او ددوی زړونه و امتثال ته د اوامرو الهیه وو تل آماده وي. او دا معلومه خبره ده چي پر عادتي سرېي دیو کار سره هغه کار دروند نه واقع کیږي، نو ځکه صبر او صلوة پر خاشعینو ثقیل نه دی. او بله وجه یې داده چي خاشعین په مقابل کي د سختیو د عباداتو ثواب موعود د جنت ویني او یقین پر کوي چي ددوی سختي په عباداتو الهیه وو کي هیڅ شی نه معلومیږي نسبت و نعمتو ته د جنت. د مثال په توګه یو مزدور چي د مزدورانو عادي اجرت شل روپۍ وي مثلاً روزانه. او یوصاحب کار ومزدور ته سل ۱۰۰ روپۍ مثلاً روزانه مقرره کړي، نو پر هغه مزدور کار دصاحب کار دروند نه پر پوزي لما یری من خمسة امثال الأجرة المعتادة فلذالك لم یشتد علی الخاشعین الاستعانة بالصبر والصلوة لما یعتقدون فی مقابلتها ما لاعین رئت و لا أذن سمعت ولا خطر علی قلب البشر. اللهم اجعلنا من الخاشعین الخاضعین لننال من الله النعیم المقیم.

درویش وایي چي دا مثال خو د ابرارو د عبادت مثال دی اماالمخلصین دهغو خو شان داسي دی لکه د رابعه رحمها الله چي د علماوو څخه یې یو وخت پوښتنه وکړه چي تاسي دا عبادات الهیه دځه دپاره کوئ؟ بعضي علماوو ورته وویل چي دپاره د نجات د دوږخه څخه. دې رحمها الله ورته وویل چي تاسي خو عبادت د بېري په خاطر کوئ، د رب ﷻ سره اخلاص ستاسي څه دی؟ او بعضي علماوو ورته وویل چي دپاره د جنت د دخول یې کوو. رابعه رحمها الله ورته وویل چي تاسي خو لکه اجیران

اجرعظیم غواړئ. نو علماوو ورته وویل چي ته يې د څه دپاره کوې؟ رابعه رحمها الله ورته وويل چي که خدای ﷻ بالفرض دوږخ نه وای پیدا کړی نو خو بیره د دوږخ به هم نه وای او که یې بالفرض جنت هم نه وای پیدا کړی، نو خو طمع د دخول به یې هم نه وای. مګر سره دهغه یې زه په عباداتو سره مامور کړی وای، ما به صرف د امتثال د اوامر الهیه وو دا عبادت کولای.

درویش وایي چي حقیقتاً اخلاص همدغه وو. تاریخ وایي چي رابعه رحمها الله به شبانه روز ۲۰۰ رکعته همیشه کوله. فرحمه الله تعالی

الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿۴۶﴾ ع

**پوه سه!** چي فهم ددې آيت د معنا موقوف دی پر پېژندو د مراتبو د ادراك. نو واوره! چي اعلی د مراتبو د ادراك انساني يقين دی چي په اصطلاح د قرآن كريم او دعلم كلام علم ورته وايي او هغه ادراك دی چي د جانب مخالف يو ضعيف احتمال هم نه وي ورسره. ويُقاربه في جانب النزول الظن وهو الادراك الغالب يعني چي احتمال د جانب مخالف خو ورسره وي لکن احتمالاً ضعيفاً او دغو دوو ادراکو ته تصديق وايي د منطقو په کتابو کي. او تر ټولو کښته ادراك وهم دی چي هغه ادراك ضعيف دی يعني ادراك د جانب مخالف غالب وي. او نږدې و وهم ته په جانب کي د علو شك دی چي په هغه طرفين يعني موافق او مخالف دواړه سره برابر وي. او وهم او شك دواړه د قسمه د تصور دي عندالمنطقين.

اوس نو واوره چي په قراآتو مشهوره وو کي (يُظنون) راغلی دی.

او په مصحف ي د عبدالله بن مسعود رض (يعلمون) په ځاى كي د
(يظنون). راغلى دى. نو سوال ددې دى چي پر معتقداتو خو يقين لازم دى
كماتقرّر في علم الكلام نو ظن څرنګه (إنهم ملاقو ربهم) چي د عقائدو
برجسته عقيده ده كافي وي؟
ددې سوال په جواب كي د مفسرينو رح څو قسمه جوابونه دي. اول جواب
د بيضاوي رحمه الله دى چي مظهري يې هم متابعت كړى دى. هغه دادى : أي
يتوقعون لقاءالله ونيل ماعنده. حاصل ددې جواب دادى چي ظن محمول
پر خپله متعارفه معنا دى. لكن مراد د ملاقات څخه د رب جل سلطانه
رؤية الهي دى په جنت كي. او مراد د رجوع څخه رسيده و دارالثواب
جنت ته بلاعقاب دى. او دواړي خبري مظنونه دي او متيقن نه دي. يعني
نفس حشر في يوم القيامة نه دي. او يا رجوع و نفس جزاء ته مراد نه ده،
ولي دا دوه خو متيقن عقائد دي.
او بل تفسير چي بيضاوي كړى دى او مظهري يې متابعت كړى دى.
أو يتيقنون إنهم يحشرون إلى الله تعالى فيجازيهم. ددې جواب حاصل
دادى چي په آيت كريمه كي ظن په معنا د علم دى ويؤيده قرائة ابن
مسعود رض. او وجه د اطلاق د ظن پر علم باندي داده چي ظن مشابه د
علم سره وو په غلبه او رجحان د جانب موافق فلذا اطلق عليه. نو پر دې
تقدير مراد د (ملاقوا ربهم) څخه مطلق حشر دى چي هغه يقيني دى او
مراد د رجوع څخه مطلق جزاء ده چي هغه هم يقيني ده، نو په نيز د
بيضاوي رحمه الله لفظ د ظن مجاز دى د علم څخه والعلاقة التشابه بينهما في
الرجحان. او بغوي دعوى د اشتراك كړېده يعني لفظ د ظن په معناى

مشهوره سره او په معنا د يقين دواړو راغلى دى. والله أعلم بصحبته.

او مظهري ﷬ يوه ډيره په زړه پوري توجيه كړېده، دپاره د استعمال د ظن په ځاى كي د يقين، هغه داده چي: د هرچا چي غالب الظن دا وي چي زه دخدايه سره ملاقي كيږم او خداى ﷻ ماته جزاء پر اعمالو راكوي، نو عقل صحيح پر ده باندي آسانه كوي. صبر پر طاعت اليه او پر صبر د عصيان الهي څخه، د بېري د ضرر. مثلاً يو سړى چي ډير تږى وي اوپه ګيلاس كي اوبه پرتې وي او دده غالب ګمان دا وي چي دا اوبه مسمومي دي يعني زهر پكښي كي دي، نو هغه سړى پر مشقت دتندي صبر كوي او د ګيلاس اوبه نه چيښي. او دغه رنګه يو سړى چي سخت ناجوړى وي او دده غالب ګمان دا وي چي ددې ګيلاس په اوبو كي زما شفاء سته، مګر يقين يې وي چي ډيري ترخې دي، نو دا سړى پر تلخي د هغو اوبو صبر كوي او چښي يې. نو څرنګه په هغه سړي كي چي ايمان پر خداى ﷻ لري او عقيده پر جزاء د رضاء الهي او دلوى ثواب، بلكه په مشقت كي د عبادت لذت او عشق هم محسوسوي. ولهذا قال عليه الصلوة جُعلت قرة عيني في الصلوة. اخرجه الحاكم والنسائي.

**فائدة**: الصلوة معراج المؤمنين تكون سبباً و وسيلةً الى رؤية الله تعالى

وعن ربيعة بن كعب ﷺ قال كنتُ ابيت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فآتيته بوضوئه وحاجته فقال سل قلتُ اسئلك مرافقتك في الجنة قال او غيرذالك قلتُ هو ذاك قال فاعنّي بكثرة السجود. رواه مسلم.

وعن أبي هريرة ﷺ قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اقربُ مايكون العبد الى الرب وهو ساجده. رواه مسلم ، مظهرى.

يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَنِّي فَضَّلۡتُكُمۡ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٤٧﴾

اې اولاد دیعقوب په یاد کړئ یعني په شکر سره زما هغه نعمت چې ما انعام کړی وو پر تاسي او ما تفضیل درکړی دی تاسي ته پر عالمیانو یعني ستاسي د زمانې. دا آیت دمخه هم تیرسو. فائده د تکرار یې داده چې دوی ته نعمت د تفضیل ور په یاد کي چې هغه د لویو نعمتو څخه دخدای ﷻ دی اووروسته وعید شدید پوري مربوط کی یعني (واتقوا) الخ

پوه سه! چې مراد د تفضیل څخه تفضیل د نیکه کانو ددوی دی چې په زمانه کي د موسی علیه السلام وه او وروسته تر هغه هم إلی مدةٍ مدیدةٍ یعني إلی ان غیّروا دینهم.

نعمت وهغو ته ورکړه د نبوة علی نبوةٍ وه او کتاب الله تورات وو. او علم بکتاب الله او اعمال صالحه موافق د احکامو سره د تورات او په عین حال کي بادشاهي د دنیا او عدالت بین الناس او د انبیاء علیهم السلام سره کومك کول وه.

**حکمت الهي**: چې فضیلت د آباوو و ابناوو ته ور یادوي دادی چې شرف د آباوو شرف دی د ابناوو او بل حکمت دادی چې تاسي موجودین هم هغه د آباوو نعمت حاصل کړی په اتباع سره د نبي علیه السلام والقرآن النازل علیه لأنّ فیه اتباع موسی ﷺ والتوراة وشرف آبائهم کان بسبب اتباع موسی ﷺ والتوراة وذالك الیوم محصور فی اتباع محمد ﷺ

والقرآن لأن دين موسى ﷺ وكتابه قدنسخ بحكم الله و اقام الله عزوجل مقامها النبي عليه السلام والقرآن تذييلٌ.

يحيى بن معين رحمه الله وايي چي كامل صبر دادى چي تمنا به نه كوي د ماسوى د مارزقك الله تعالى. او راضي به اوسي په قضاء دخداى ﷻ په امورو كي د دنيا او آخرت. او داسي صبر لكه سر چه په بدن كي دى. قال الحافظ رحمه الله:

گویند سنگ لعل شود در مقام صبر ✤ آری شود ولیك بخون جگر شود

**پوه سه!** چي خداى جل سلطانه بيان كړي د جزاء د اعمال صالحه وو. وجعل لها نهايةً واحدةً يعنى (من جاء بالحسنة فله عشر أمثالها) او جزاء د صدقي في سبيل الله يې فوق ترهغه بيان كړيده. يعني قوله تعالى: (والذين يُنفقون أموالهم في سبيل الله كمثل حبةٍ أنبتت سبع سنابل في كل سنبلةٍ مائة حبة)الآية. او اجر د صابرانو يې بې حسابه بيان كړى دى. قال الله تعالى: (إنما يُوفَّى الصابرون اجرهم بغيرحساب)

**فائدة:** خداى پاك ځان موصوف په صبر ګڼرلى دى كما ورد فى الحديث النبوى ﷺ ليس شيئٌ اصبر على اذى سمعه من الله تعالى إنهم يدعونه له ولداً و أنه تعالى يُعافيهم ويرزقهم.

**فائدة:** بعض اهل الله وايي چي كه ته غواړې چي زه مقتداء دخلګو سم او ته خشوع نه پېژني. خشوع دا نه دد چي ته به زيره ډوډۍ خوري يعني يا جوارينه يا اوريشينه ، بلكه خشوع داده چي ته به دنيادارد او مسكين په حق كي برابر بولې. اوبل خشوع به كوي په فرق عمل كي چي پر ثا

خدای ﷻ فرض کړی وي. فمن أظهر الخشوع عندالناس فوق مافی قلبه فإنما ظهر نفاقاً علی نفاق.

**فائدة**: سهل بن عبدالله تستری وايي: لاتكون خاشعاً حقاً حتی تخشع كل شعرةٍ علی بجسدك وهذا هوالخشوع المحمود. ولې چې خوف الهي په زړه کي قرار ونيسي، نو تبعاً خشوع د ټولو اعضاوو سره لازمه ده لأن القلب هو الرئيس الأعظم لبقية اعضاء الجسد، نود صاحب ددغي خشوع القلب په وسه نه ده پوره چې دفع خشوع الأعضاء الظاهر وکړي، نو ځکه ده هميشه سر کښته ځړولی وي او متادب او متذلل ناست وي. وأما الخشوع المذموم فتكلفه فی الخشوع عندالناس او یا تکلف د ژړا په صوت کي او سر يې کښته نيولی وي. يعني عند رؤية الناس كمايفعله الجهال من العلماء والمتصوفة المراؤون ددې دپاره چې خلك وده ته په سترګو د بزرګی او دخدای ﷻ د بيري وګوري وذالك خدعٌ من الشيطان و تسويل من نفس الإنسان اعاذناالله من المكر بحضرت المليك المقتدر العليم بالظاهر والباطن.

## وَاتَّقُوا يَوْمًا

أی عذاب يوم وهو يوم القيامة

## لَّا تَجْزِى نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ

ای نفس مومنة عن نفسٍ كافرةٍ لأنّ الشفاعة لأهل الكبائر ثابتة بالآيات والأحاديث والاجماع

## شَيْئًا

ای من الحقوق اللازمة فی زمة النفس الكافرة فهومنصوبٌ على أنه مفعول به لاتجزی صفةُ يوماً والجملة اذا وقعت صفةً لابد من العائد فيها الى الموصوف كما هوالمقرر فی النحو.

## وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ

قرء إبن كثير ويعقوب وابوعمرو بالتاء والباقون بالياء وكلاهما جائز لأن الفاعل وهو لفظ الشفاعة مؤنث غيرحقيقی يجوز فيه التذكير والتأنيث للفعل المسنداليه يعنی لايقبل من النفس الكافرة شفاعة شافعٍ ان فُرض شفاعة الشافع له، او يا د نفس مومنه څخه که چیرې شفاعت دکافر وکړي

# وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ

يعني فدية

---

# وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٤٨﴾

أى لايمنعون من عذاب الله تعالى

---

**پوښتنه**: ضمير دجمع په (ولاهم يُنصرون) کي وچاته راجع دی؟

**جواب**: و کافرة ثانية ته راجع دی، ولي هغه که څه هم لفظاً مفرد دی، لکن چونکه نکيره دی او په سياق کي دنفي راغلي دی، نوعموم او کثرت فائده کوي كماتقرر في العلوم العربية.

**پوه سه!** چي لاري دخلاصوالي ديو مجرم دعذاب څخه د دنيا يا شفاعت د يو شافع به وي، دهغه نفي دکفارو څخه په ورځ دقيامت په دې سره وکړی (ولايقبل منها شفاعة) او بله لار د خلاصون دمجرم دنياوي داوه چي فديه او عوض مالي دخپل جرم ورکړي، دهغه نفي خدایﷻ په دې سره وکړه: (ولايؤخذ منها عدلٌ). او بل طريقه د خلاص والي دمجرم دنياوي دا وه چي قوم دمجرم يې په زور سره خلاص کړي، دهغه نفي خدایﷻ په (ولاهم يُنصرون) سره وکړه. فلايبقى فى ايدى الكفار غير اليأس من طرق النجات كلها.

**پوه سه!** چي په دې آيت کي رد دی پر يهودانو چي دوی به ويل چي زموږ آباء انبياء دي که څه هم موږ کفر وکړو زموږ شفاعت به کوي او موږ به

دعذاب الهي څخه خلاصوي. کیف یقولون ذالك وقدقال الله تعالی: (لن تنفعکم ارحامکم ولا اولادکم) وقال ایضاً (یوم یفرالمرء من أخیه)الآیة وفی المثنوی:

چون یفر المرء آید من اخیه ✣ یهرب المولود یوماً من ابیه

زان شود هر دوست آن ساعت عدو ✣ که بت تو بود وازره مانع او

**فائدة:** معتزلـه په دغـه آیت سره دلیـل وایي پر دې چي شفاعت د اهل کبائرو ګنهو په ورځ د قیامت نسته.

والجواب منا أن هذه الآیة مخصوصة بالکفار په دلیـل دهغو احـادیثو نبویه وو چي بخاری او مسلم او نورو ثقات یې روایت کړی دی، بلکه احادیث د شفاعت دکبائرو ګنهو والامتواترة المعنی دي.

**وَإِذْ نَجَّيْنَٰكُم مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ**

او په یاد کړئ اې حاضرینو دعصرنبوي ﷺ چي موږ نجات درکړی تاسي ته، یعني ستاسي و آل و آباوو ته په زمانه کي د موسی ﷺ د آل فرعون څخه یعني د فرعون او دده اتباعو قبطیانو څخه چي دوی تاسي ته قصد کړی وو د بدعذاب، ولي چي دا عذاب چـي بیـان بـه یـې راسـي ډیـر بـد وو نسبت ونورو عذابو ته کمالایخفی نو باید تاسي ذکر د نعمـت د آبـاو اداء کړی بالایمان بحمد ﷺ.

---

**فائدة:** دا جملـه د(نجیناکم) آه تفصـیل دی دهغـه اجمال چي په دې قول کي دخدای ﷻ تیر سو: (أذکروا نعمتی التی انعمت علیکم) آه یعني هغه نعم همدغه دي چي په دې آیتو کي به راسي.



Scanned by CamScanner

**فائدة:** اصل د آل (اهل) وو (هاء) يې په همزه بدل کړه په دليل ددې چې تصغير د آل (اهيل) راغلی دی او تصغير شيئ واصل ته دده ردوي کما هو القانون الصرفي، لکن لفظ د آل داسي ځاته مضافيږي چې د رتبې والا سړي وي که د آخرت وي لکه انبياء عليهم السلام او دنياوي عزتمند سړی وي لکه آل فرعون.

وعن الکسائي سمعتُ اعرابياً فصيحاً يقول آل و اويلٌ و اهل واهيل، نو که روايت صحيح وي نو لفظ د آل اجوف واوي دی يعني اصل يې اول وو، نو يې واو متحرك مفتوح ماقبلها په الف بدل کړی. نو اهيل تصغير د آل نه دی. بلکه تصغير د آل اُوَيْل دی ل والاول هو الاشهر المتداول.

**فائـــدة:** لفظ د فرعون د يو معين سړي نوم نه دی. بلکه لقب دی د بادشاه دعمالقه وو چې هغه اولاد د عمليق بن لاوذ بن ارم بن سام بن نوح ﷺ لکه لفظ د قيصر چې لقب دی د بادشاه. نو د روميانو او کسرى لقب دی دشاهانو د فارس. او يا اميرالمومنين چې لقب دی د خليفه د مسلمانانو.

**فائدة:** فرعون دموسى ﷺ دزماني نوم يې مصعب بن ريان وو. او بعض اهل تاريخ وايي چې دمصعب خوی وو چې وليد يې نوم وو چې د بقاياوو څخه د عاديانو وو. او فرعون د يوسف ﷺ نوم يې ريان وو چې پلار د فرعون موسى ﷺ وو او يا يې دپلار پلار وو. او ددغو دوو فرعونانو تر مابين تر څلور سوه کاله بالا زمانه تيره سوېده. فغلط من قال إنَّ فرعون موسى هو فرعون يوسف ﷺ.

**فائدة:** چونکه فرعونان ډیر سرکښه او ظالمان خلک وه، نو عربو په اشتقاق جعلي دلفظ د فرعون دا باب جوړ کړی: (تفرعن الرجل) یعني فلاني سړي فعل د فرعونیانو وکړی، یعني ظلم او سرکښي.

**فائدة:** فرعون بني اسرائیل څو ډلي کړخولې وه. یوه ډله د نباء په کار یې اخته کړېوه یعني خښتي یې مُبتلي او دیوالونه به یې وهله او فرعونیانو ته یې سرایونه او غټې قلعه وي ورجوړولې، او بله ډله یې د کښت او باغو په کار اخته کړېوه. او درنې درنې ډبري به یې دغرو څخه په راوړې. او پر بعض یې جزیه مقرره کړېوه. او ښځو د بني اسرائیلو د فرعونیانو د کورو کارونه ورکوله. او همدغه سوء العذاب د فرعون وو چي بني اسرائیل ته یې ور کاوه چي د تاریخ په پاڼو کي دونه عذاب و یو قوم ته نه دی ورکړه سوی.

درویش وایي چي د فرعون موسی ﷺ تاریخي معلومات خو هغه وو چي تیر سوه یعني د عملیق بن لاوز آه دقوم څخه وو چي عمالقه یې بلله او ددوی لویه برخه په مصر او په شاوخوا کي آبادوه. اما روح البیان وایي په نقل سره چي فرعون موسی اصلاً اصفهانی وو یعني د ایران د اصفهان باشنده وو. او بعض شمالي ملایان د افغانستان وایي چي فرعون موسی دتاش برغان یعني دشمالي افغانستان باشنده وو او قصه د فرعون موسیﷺ ددواړو قولو سره یو شی ده چي عنقریب به یې درویش بیان کړي انشاءالله. اما اولاً درویش وایي چي ددغو درو قولو په مابین کي منافات نسته او هر یو محتمل دی، ولي چي عمالقه یو لوی قوم وو نو یحتمل چي فرعون موسیﷺ اصلاً باشنده د مصر وو او دا احتمال هم سته چي فرعون موسیﷺ دي سره د یوڅو کورو په اصفهان کي ګزاره

کوله. او یاسره د بعضي قومو دي په شمالي افغانستان کي ګزاره کوله.
په هرحال دهغه متشابه قولو آخر داقصه ده چي: فرعون موسى سواء كان اصفهانياً او من شمال افغانستان كان حرفته وكسبه التجارة في بيع وشراء الثمار يعني میوې لکه انګور، انځر، خټکي وغيره به يې په ډك پيمانه راتيول او خرڅول حتى آل امره الى خسر التجارة وركبه الديون الثقيلة يعني تجارت يې تاواني سو او درانه پوروونه پر باندي سوه. او په وطن کي يې ګزاره د پوروړو دلاسه مشکله سوه. نويې قصد ددي وکړی چي دباندي ملك ته به ولاړ سي او هلته به خواری او کسب وکړي، که دي روپۍ پيدا کړي پوروړو ته به يې راوړي. نو يوڅه مبلغ يې دځان سره واخيستی اول شام ته ورغلی او هلته يې دخپل کاروبار زمينه مساعده نه وبلل، بيا دهغه ځای څخه مصر ته ولاړی چي هلته يې قوميان هم ډير وه، هلته چي ورغلی موسم د خټکيو رسيدلی وو، نو فرعون موسی ﷺ اول تربازار دباندي خټکي قيمت کړه. ۹ دانې په يوه روپۍ وه او بيا ورغی دبازار په مابين کي يې قيمت کړه. هلته يوه دانه په يوه روپۍ وه. فکر يې وکړی چي دا ۱۰ ډيره ګټه ده. نو دبازار دباندي يې په يوه روپۍ ۹ دانې خټکيان راتيول او په پټو کي يې په شا کړه، يوڅو ګامه چي يې واخيستل حکومتي عسکر ولاړ وه. فرعون ته يې وويل چي څشي دي په شا دي؟ فرعون ورته وويل: خټکي دي. عسکر ورته چي حکومتي محصول دي ورکړی دی؟ فرعون ورته وويل يا. عسکرو ورته وويل: يوه دانه کښيږده. فرعون يوه دانه کښيښوله. يوڅو ګامه چي يې واخيستل بل عسکر ولاړ دی هغه هم ورته وويل چي څه شی دي په شا دی؟ فرعون ورته وويل خټکي. عسکر ورته وويل محصول دي تحويل کړی دی؟ فرعون ورته وويل اوس نژدي مي هغه بل عسکر ته ورکړی. عسکر ورته وويل چي

هغه د محصول دتولیدو عسکر نه وو زه دمحصول د تولیدو دپاره حکومت درولی یم. فرعون یوه دانه ختیکی ودې عسکر ته ورکړی. وهکذا فرعون چې دبازار مابینځ ته ورتلی، یوه دانه ورپاتـه سوه هغه یې په یوه روپې خرڅ کړی.

فرعون دخان سره فکر وکړی چې دابنار ناپُرسان دی او ددې ځای حکومت د رعایتو دحاله ځخه بیخي غافله او ناخبره حکومت دی. نو د ښار دباندي ووتی یو لوی قبرستان یې ولیدی. هلته یې ختې شروع کړې او دخان دپاره یې یوه کوچنی خونه جوړه کړه او هر مړی چې به دښار قبرستان ته راوړی پنځه پنځه روپی به یې محصول حکومتي ختې اخیستي. اودخدای ﷻ تقدیر وو چې په دغه کال په مصر کي وبار ګډوه وه او ډیر مړي به کیدله او فرعون موسی ﷺ خپل محصول پنځه پنځه روپی ځندي اخیستلي. آخر یې ډیري روپی سره جمع کړې او یو بل سړی یې دخان سره مزدور کړی او خپل ځان یې د قومندان په نامه مشهور کړی. او مزدور یې د عکسر په نامه یاداوه. نو مړی چې به راغلی نو مزدور عسکر به ورته ودریدی چې قومندان وایي چې محصول تاویل کړه پنځه روپی. خلګو به بې چون و چرا محصول تاویلوه.

آخر کلونه پر دې تیر سوه او فرعون ډیر نقود سره جمع کړه. اخیر الامر د یو غټ آمر حکومتي مور مړه ده چې هدیرې تـه یې راوړه. دفرعون عسکر ورته ودریدی چې محصول تاویل کړه. هغه ورته وویل چې تـه چا مقرر کړې؟ هغه عسکر ورته وویل چې مور دحکومت دخوا مقرر یو او قومندان په کوټه کي ناست دی. خیر خو هغه آمر پنځه روپی ورکړې. د مور د دفن کولو ځخه چې فارغه سو، نو هغه آمر دښار یعني د مصر د بادشاه ته راپور وړاندي کړی او د فرعون قبرستان تولـه ماجری یې ورته

بیان کړه، نو بادشاه عسکر ور واستوله چې ورسې؛ د قبرستان قومندان راولي.

فرعون موسی علیه السلام چې یې باچا ته یې وروستې باچا پوښتنه خندي وکړه چې ته پر دې وظیفه دمړو دمحصول چا مقرر کړی یې؟ فرعون ورته وویل چې هیڅ چا نه یم مقرر کړی ما پخپله ځان مقرر کړی. باچا ورته وویل : په څه خاطر؟ فرعون دختکو قصه ورته وکړه فرعون ورته وویل چې ماچې فکر وکړی چې ستا حکومت ډیر غافل حکومت په خیال راغلی، نو ما دغه کار دمحصول د مړو دکلو راهیسې شروع کړی دی. خو دبده مرغه نن ستا دحکومت دغې آمر د مور په مرګ کې زه رسوا سوم. او هغه پیسې چې فرعون سره جمع کړي وې و باچا ته یې کښیښولې.

دباچا عقیده دا سوه چې دا سړی ډیر هوښیار دی. نو فرعون ته یې وویل چې ته زما سره د حکومت په کارو کې یاري وکړه. فرعون ورته وویل چې ماته یوه غټه عهده په لاس راکړه، زه به ډیر ستا حکومت پرمخ بوزم هغه وو چې باچا ده ته د وزارت یو مقام وروسپاره. فرعون د ډیري پوهنې څخه کار واخیستی او پولیس او عسکر یې سره منظم کړه او د رعیتو په کارو یې ځان خبراوه، نو رعیت ډیر دده څخه راضي وو او ډیر کلونه یې دغه د وزارت چوکې په ښه ډول وچلول. او آوازه د عدل او انصاف یې په ټوله مصر کې نشر سول. اخیر الامر چې باچا مړ سو، خلکو د مصر ټوله پر ده اتفاق د باچاهۍ وکړی. فرعون په مصر کې څو موده د شاهي دوره چلول چې خلګ یې ولیدل چې وده ته ډیر جلب سول، نو یې دخدایي دعوه وکړه او خلګو د مصر هم ورسره ومنل.

درویش وایي چې پر هغه تقدیر چې فرعون موسی علیه السلام اصلي د مصر باشنده وو، نو دی د اصل څخه بادشاه مصر وو او بیا یې دعوه د خدایي وکړه. والله أعلم بحقیقة الحال

او که چیرې اصفهاني الاصل وو او یا افغانستاني الاصل وو، نو په مذکوره حیله یو وار خان وبادشاهي ته ورساوه او وروسته یې دعوی د خدایي وکړه کما مرّ آنفاً

## يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ وَفِي ذَٰلِكُم بَلَآءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٤٩﴾

چې دوی یعني فرعون او اتباعو دده به ذبح کول ستاسي بني اسرائیلو پیداسوي خامن او ژوندي به یې پریښوولې ستاسي پیداسوي نجوني او په دغه فعل کي د فرعونیانو ستاسي سره سخت امتحان وو د صبر په سخت عذاب سره. قال الله تعالی: (ونبلوكم بالشر والخير فتنةً) یعني کاهي امتحان دخدای جل جلاله په شر، یعني عذاب سره د آزمایني دصبر او کاهي په نعمت او رخاء سره دپاره د امتحان د شکر دی، نو ښه بنده دخدای جل جلاله هغه څوک دی چي په نعمت کي شکر دخدای جل جلاله لساناً وقلباً وعملاً اداء کوي او صبر کوي په نیز د شدت او سختی یعني دخدای جل جلاله څخه شکایت نه کوي.

---

**پوه سه!** چي د ذالکم اشاره که انجاء ته دبني اسرائیلو وي د فرعون څخه، نو مراد د بلاء څخه امتحان بالنعمت دی او که اشاره و یسومونکم ته وي نو مراد څني امتحان بالعذاب والشدت دی. نو پر اول تقدیر نو خدای جل جلاله ودوی ته موسی علیه السلام نبي ور واستاوه چي په سبب دهغه فرعون

غرق سو او بني اسرائيل ځني خلاص سوه. او پر دوهم تقدير خداىﷻ فرعون پر دوی مسلط کړی.

**فائــدة:** جملـه د (يـذبحون ابناءکم) مظهـري ﷫ يـې بـدل بـولي د (يسومونکم) څخـه او روح البيـان يـې جملـه مستانفه په استيناف بياني بولي، يعني جـواب دسـوال ناشي د ماقبله څخـه والسؤال ماحقيقة سوء العذاب بهم . او بيضاوي يې عطف بيان د (يسومونکم) بولي.

او سبب ددې سوء العذاب د فرعون ټولو مفسرينو په يـوه خوله داسي وايي چي فرعون خوب ليدلی وو چي يو اور د بيت المقدس څخه راووزي او پـر مصر احاطـه وکـړي او ټولـه قبطيـان پکښـي وسـوزل سي او بني اسرائيل پکښي سالم پاتـه سي. نو دکاهنانو څخه دملك يې ددې خوب تعبير وغوښتی، هغو په اتفاق ورته وويـل چي په بني اسرائيل کي به ژر دی چي يو کوچنی پيداسي چي سبب دده زوال د سلطنت به وګرځي.

نو فرعون دتقدير الهي دمخنيوي دپاره د تدبير لار غوره کړه مع أنهم قالوا التقدير يضحك بالتدبير . او امر يې وکړی چي من بعد ازين چي په بني اسرائيلو کي نر عيال پيدا کيـږي هغـه دي قتـل کيـږي و نجوني دي پرېښول کيږي او دايانې يې راوغوښتي چي تاسي بـه پـه کـورو کـي د بني اسرائيلو د حامله ښځو د وضع الحمل په وخت کي بايد حاضري ياست چي ښولي کار وکړي.

بعض مفسرين رح وايي چي فرعون په طلب کي د موسی عليـه الـسلام دوولس زره نوزائيـده کوچنيـان ووژلـه . او وهـب بـن منبهـه رح وايـي چي نيوي زره ۹۰۰۰۰ کوچنيان يې ذبح کړه. په هر صورت راويان د قصې په اتفاق سره وايي چي خداىﷻ په سپين ږيرو او ځوانانو کي يو وبايي مرګ

کډ کړي. نو رئیسان د قبطیانو فرعون ته ورغله چي کوچنیان د بني اسرائیلو ته وژني او په ځوانانو او کلان سالو کي ددوی وبایي مرض ګډ سو. نو دوی ورته وویل چي اخیر الامر به انجام ستا دکار دا سي چي ټوله کارونه او عملونه به د قبطیانو پر ذمه پاته سي. نو فرعون امر وکړی چي یو کال دي د بني اسرائیلو کوچنیان وژل کیږي او یو کال دي نه وژل کیږي. نو هارون علیه السلام په هغه کال پیدا سو چي کوچنیان د بني اسرائیلو نه وژل کیدل او موسی علیه السلام په هغه کال پیدا سو چي کوچنیان یې وژل کیدل. **وسیاتی تفصیل القصة إنشاء الله تعالی.**

**پوښتنه** : نساء خو په عربي ژبه لویې ښځو ته وایي او فرعون چي نه وژلي هغه خو کوچنی نو زاده نجوني وې نو ده نساء اطلاق څرنګه پر وسو؟

**جـواب** : دا اطلاق په اعتبار د مایؤول الیه دی یعني اخیرالامر به دغه نجوني پاته سي نساء به وګرځي **کما فی قوله تعالی فی سورة یوسف (إِنِّي أَرَانِي أَعْصِرُ خَمْرًا) ای عنباً یؤول إلی الخمر.**

**فائـــدة**: داود بن رشید رحمه الله چي د اصحابو یعني دشاګردانو څخه د محمد بن الحسن رحمه الله وو وایي چي یوه شپه بیده سوم. دشپې یخ واخیستم، تلتك وغیره نه وو، نو مي خدای ﷻ ته وژړل وروسته بیده سوم په خوب کي یو څوك راته وایي چي ماخلك بیده کړه او ته مي دخدمت د عبادت دپاره ویښ پرېښولې، ته لا ژاړې؟ **فکان داؤد لاینام بعدذالك لیلاً الا قلیلاً. قال المولوی المعنوی رحمه الله فی مثنویه:**

دره دو ره پشــم داد حق تامن رخواب ✤ بره جهــم هره پیــم شب لابد نشاب
تا نخیــم جمله شب چون گاوومیش ✤ دردها بخشید حق از لطف خویش

**فائدة:** هرمصيبت او غم او ناجوړي وغيره چي پر مسلمان مسلط سي، دخدای جلت قدرته، دادي ګمان نه کوي چي زماڅخه خدای ﷻ خپل لطف او مهرباني او رحم قطع کړی، ولي چي عقل او عادت او شريعت پر دې شاهد دی چي په عين حال کي دمصيبت دناجوړی ونحوها لطف الهي ورسره همراه دی. اماالعقل هرعاقل په دې پوهيږي چي که زه خدای ﷻ مسکين کړی يم مثلاً سترګي، صحت دبدن او دنورو اعضاوو صحت خو دخدای ﷻ لطف او مهرباني دماسره. وهکذا يو سړی که په سترګو ړوند وي، دی په دې پوهيږي چي په لاسو او يا په پښو ګوډ نه يم الی غيرذالك، نو خو دده څخه لطف او مهرباني دخدای ﷻ نه ده قطع سوي. بلکه لطف الهي په کراتو مراتو تر هغه مصيبت چي زه په مبتلا يم بالا دی. واماالعادة هر مسلمان خصوصاً بلکه که بني آدم په دې پوهيږي چي انسانان به دعادت الهي سره سم خامخا ديو تکليف سره مخامخ وي او عادت دا فيصله کوي چي نسبت ومقدوره تکليفاتو او مصائبو څخه زما تکليف بيخي جُزوي دی، نو عادت هم قضاوت کوي چي لطف دخدای ﷻ په عين وخت د تکليف او مصيبت زماڅخه قطع نه دی. واماالشريعة فقدقال رسول الله ﷺ اذا اَحَبَ الله عبداً ابتلاه فان صبر اجتباه وان رضی اصطفاه وفی حديث آخر وهو صحيحٌ ايضاً اشد الناس بلاءً الانبياء ثم الاولياء ثم الامثلْ فالامثل فعلی العاقل ان يصبر علی بلاياه التی من جانب الله عزوجل وليعطف نظره علی المصائب والبلايا التی نجاه الله تبارك وتعالی منها.

درویش وایي د صبر علی البلایا معنا دا نه ده چي سړی به په دفع
دبلا وبادار خپل ته د دفع د بلا واقع درخواست نه کوي او یا به دوا نه
کوي. واماالکاملون فی ولایة الله عزوجل وخاصة اولیائه فمستثنی من

وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَأَنْجَيْنَٰكُمْ وَأَغْرَقْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ

وجوههم کالقمر لیلة البدر لایدخل اولهم حتی یدخل آخرهم یدخلون
متماسکین قیل من هم یارسول الله؟ قال هم الذین لایکتوون ولایسترقون
وعلی ربهم یتوکلون الی آخر الحدیث او کماقال رسول الله صلی الله علیه
وسلم. قال عز وجل :

---

وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ ﴿٥٠﴾

او په یاد کړئ هغه وخت اې حاضرانو یهودانو ! دعصرنبوی ﷺ چي مونږ
توته توته کړی بحرنیل (اوبعض وایي چي بحر قلزوم وو او بعض وایي
چي بحر فارس وو) په سبب ستاسي د آباو د دخول. او یا (باء) په معنی د
لام ده یعنی ( فرقنا لکم البحر) نو مونږ تاسي ته یعني ستاسي و آباو ته چي
زمانه د موسی علیه السلام وه نجات ورکړی د غرق څخه او مونږ غرق کړه آل
فرعون یعني ټوله قبطیان سره د فرعون . او تاسي یعني ستاسي آباو ورته
کتل چي د بحر اوبه پس له بندیدو څخه په کثرت او خروش او جوش
سره پر فرعونیانو او قبطیانو باندي را رواني سوي. او ټولـه یـې په لپیټ
کي ونیوله

او تفصيل القصه دادی چي څه وخت هلاکت د فرعون نږدې سو، نو موسیٰ ﷺ خدای پاك امر کړی چي بني اسرائيل د شپې دکورو څخه وباسه او په کورو کي دي څراغان لګيدلي پريږدي، ترڅو چي څوك شك وانخلي. او په دغه شپه خدای ﷻ پر قبطيانو موت مسلط کړی، نو دوی تر سهاره په دفن د مړو اخته وه او موسی بنی اسرائيل شپږ لکه نفر يا څه بالا د مصره څخه وايستله. او تاريخ وايي چي دوی چي يعقوب عليه السلام سره مصر ته داخل سوه دو اويا ۷۲ اويا نفره نر او ښځي وې. راوي وايې چي بني اسرائيل چي د مصره ووتله د رودنيل لار خني ورکه سوه، روان به وه، لکن د لاري درك نه ور معلوميدی، نو موسیٰ ﷺ د سپين ږيرو څخه د بني اسرائيلو پوښتنه وکړه چي داڅه سرګرداني ومونږ ته پيښه سوه او سبب يې څه دی؟ نو هغو ورته وويله چي ديوسف ﷺ وخت د وفات چي نږدې سو، نو دوروڼو څخه يې وعده واخيسته چي تاسي به د مصر څخه نه وزئ چي ما درسره ونه باسئ، نو موسی ﷺ ددوی څخه پوښتنه وکړه چي قبر يې چيرې دی؟ هغو ورته وويل چي مونږ ته نه دی معلوم، نو موسیٰ ﷺ نعره وکړه چي زه په خدای ﷻ قسم ورکوم هغه چاته چي قبر د يوسف ورمعلوم وي مګر ماته دي يې نه راوښيي. او چاته چي نه وي ورمعلوم دهغو غوږونه دي زما دخبرو د اوريدو څخه کاڼه وي. نو دادده آواز بيله يوې سپين سرې ښځي څخه بل هيڅ چا نه واوريدی. نو دې ښځي ورته وويل که زه قبر ديوسف ﷺ در وښيم ته زما هر خواست قبلوې. موسیٰ ﷺ ورته وويل چي زه به دخدای ﷻ سره صلاح وکړم، ولي قاضي الحاجات خو خدای ﷻ دی زه نه يم ، نو پس له مشورې خدای ﷻ ورته وويل چي غوښتنه د سپين سرې ورسره قبول کړه. نو ښځي ورته وويل چي زه خو د تګ څخه عاجزه يم، نو خدای ﷻ دي ماته قوت البدن

راکړي چې زه ستاسي سره د مصر څخه ووزم. او بل په ورځ د قیامت دي خدای پاك ما ستا سره یوځای کړي. موسی علیه السلام ورته وویل: نعم نو سپین سرې چې بدن یې قوي سو وموسی ﷺ ته وویل چې پر دغه برابر په نس کې د رود نیل په تابوت کې ښخ دی. نوموسی ﷺ خدای ﷻ ته خواست وکړی چې یوسف ﷺ د صندوق دځایه دي اوبه د رودنیل قطع کړي، نو اوبو هغه ځای خالي کړی. او د یوسف ﷺ تابوت یې راوکښنی او دځان سره یې یووړی. او په شام کې یې ښخ کړی، نو موسی علیه السلام پر ساقه یعني پر آخر د بني اسرائیلو را روان وو او هارون ﷺ یې پر مقدمه را روان وو.

نو فرعون چې دشپې په وتلو د بني اسرائیلو خبر سو وې ویل چې د اول چرګ پر اذان به تاسي پسې وزی. راوي وایي چې په دغه شپه هیڅ چرګ اذان نه کاوه. حتی چې ورځ سوه او لمر راوختی، نو فرعون پر مقدمه باندې هامان وزیراعظم په اوه لکه نفرو کې روان کړی. او فرعون چې نور خلک سره جمع کړه یو کروړ یعني سل لکه نفوس ته نفوس ورسیدله.

څه وخت چې بني اسرائیل و رودنیل ته ورسیدله. دپسرلي وخت وو، اوبه د بحرنیل ډیرې په زیادت کې وې، او دبلې خوا فرعون سره دیو لوی لښکر ښکاره سو فتحیر بنواسرائیل وقدحکی الله ﷻ فی کتابه المجید (فلما تراء الجمعان قال اصحاب موسی انا لمدرکون) قال ای موسی (کلا ان معی ربي سیهدین) نو خدای پاك وموسی ﷺ ته وحی وکړې (ان اضرب بعصاك البحر فانفلق فکان کل فرق کالطود العظیم) او کاالجبل العظیم او خدای ﷻ په رودنیل کې دوولس ۱۲ وچې کوڅې پیدا کړې.

ديوې کوڅې او بلې کوڅې په مابين دوني اوبه وي لکه غرونه.

**پوښتنه**: د دوولس کوڅو حکمت څه وو؟

**جواب**: دبني اسرائيلو ۱۲ قومونه وه او دونه سره ضد وه چې يو د بل په کوڅه کې نه سره تله. که دا نه واى، نو خو يوه لويه برداره کوڅه يې کافي وه. او چونکه د دوو کوڅو تر مابين لکه غرونه اوبه ولاړې وې، نو دوى موسى ﷺ ته وويل چې که زموږ عزيزان غرق سوه، موږ خو نه په خبرېږو، نو بيا خداى ﷻ دټولو کوڅو په مابين کې روښندانونه پيدا کړه چې تولو سره ليدل.

نو بني اسرائيل خو سالم تير سول. وار د فرعون د لښکر راغلى چې فرعون يې په مخ کې پر آس سپور روان وو. فرعون چې درياب وليدى چې کوڅې کوڅې دى ملعون پوه سو چې د هلاك دپاره دا يو لوى دام دى. او هغه د کاهنانو خبره يې ور پياد سوه، لکن ظاهراً خلګو او لښکر ته يې وويل چې وګورئ درياب زما د هيبت څخه کوڅې کوڅې سو چې موږ خپل تښتېدلي مريان راوګرځوو او لښکر ته يې حکم ورکړى چې ورسئ لاس تړلي يې راوګرځوئ. او فرعون د خپل آس ملوني تينګې کړې، چونکه فرعون پر نر آس سپور وو، جبرئيل پر ښځه آس سپور راغلى او دفرعون د آس دمخه په کوڅه ننوتى. دفرعون آس پسې زوروونه کړه او فرعون يې بلا اختياره کوڅې ته داخل کړى. او ميکائيل ﷺ پر بل آس سپور وو او دشاخوا پرخلګو به يې نعرې وهلې **ألحقوا باصحابكم**، نو ټوله د فرعون کوڅو کې داخل سو او د درياب ديوې غاړې تر بلې غاړې پورې څلور فرسخه مسافه وه.

راوي وايي چې څه وخت چې د جبرئيل ﷺ آس هغه بلي غاړې ته ورسيدى او د فرعون د آس دوې پښې تر کوځې ووتلې، موسى ﷺ و درياب ته د جريان امر ورکړى. د درياب د غرونو په شان اوبه يو دم راماتې سوې او ټوله غرق سوله. ولله الحمد على ذالك.

**فائدة**: راوي وايي چې فرعون چې ډوب سو او سر يې راپورته کړى داسې يې وويله: (لاإله إلا الذى آمنت به بنو إسرائيل) جبرئيل ﷺ يې په خوله کې خټې ورتخته کړې.

**پوښتنه**: دتوبې دروازه خو خلاصه وه، نو ولې جبرئيل ﷺ يې په خوله کې خټې ورتخته کړې؟

**جواب**: ايمان عند معاينة العذاب الالهي غير مقبولة. اوبل داچې دا ايمان منافقانه وو. دليل يې دادى چې ده ولې داسې نه ويل چې (لااله الاالله) ولې يې بني اسرائيل ته نسبت وکړى.

**فائدة**: بني اسرائيل دونه د فرعون څخه بيريدله، حتى چې موسى ﷺ ته يې وويل: که دا فرعون ژوندى د اوبو څخه راووتى، نو موږ به څه کوو؟ بيا خداى ﷻ د فرعون لاش د درياب په څپه وچې مځکې ته وغورځاوه چې ټولو بني اسرائيلو يې روحه دده ملعون لاش وليدى. نو مطمئن سوه.

**فائـــدة**: دآنحضرت ﷺ دخبري او دموسى ﷺ دخبري ډير فرق سته. موسى ﷺ قوم ته وويل (كلا إن معى ربي سيهدين) كما مرّ آنفاً. او عليه السلام و ابوبکر ﷺ ته وويل (لاتحف إن الله معنا) يعني موسى ﷺ (معى) دمخه کړى او عليه السلام دخداى ﷻ نوم دمخه کړى.

**پوه سه!** چي دا وینا دعلیه السلام و ابوبکر ﷺ ته هغه وخت وه چي دوی د هجرت په اوله ورځ په غار کي د جبل ثور پټ وه او مکې والاوو د پل په ښوونه تر دغي غاري پوري راغله او پل زن ومکې والاوو ته وویل چي پلونه خو تر دغه ځایو پوري راغلي دي. نور نه پوهیږم چي آسمان ته دا دوه نفره ختلي دي او که په مځکه ننوتلي دي. نو په همدغه وخت کي ابوبکر ﷺ و علیه السلام ته کرار وویل چي که کافرانو خپلو پښو ته وکتل موږ به ووینې، نو علیه السلام ورته وویل : (لاتحزن إن الله معنا) ته غم مه کوه خدای ﷻ زموږ سره ملګری دی.

وَإِذْ وٰعَدْنَا مُوسَىٰٓ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظٰلِمُونَ ﴿٥١﴾

او په یاد کړئ ای بني اسرائیلو هغه وخت چي موږ وعده وکړه دموسی سره یعني دکتاب د ورکړې.

---

**پوه سه!** چي ابن کثیر رحمه الله او نافع رحمه الله او عاصم رحمه الله او ابن عامر رحمه الله او حمزه رحمه الله او کسائي رحمه الله یې په باب د مفاعله وايي. ولي خدای ﷻ وعده دوحی ورسره وکړه او موسی علیه السلام وعده د ورتګ د طور ورسره وکړه.

اوبعض مفسرین رح وايي چي باب د مفاعلې په معنا د مجرد دی لأنه يجوز ذالك كما في الشافية. او بعض مفسرین رح وايي چي وعده خو د خدای ﷻ دخوا ښخه وه او دموسی دخوا قبول د وعدې وو او قبول د

وعدې مشابه د وعدې سره دی. او باقي قراء یې په صیغه د مجرد وایي. یعني وَعَدنا.

**پوه سه!** چي موسی مفعول اول دی د (واعدنا) او (اربعین لیلةً) یې مفعول ثاني دی. او پر تقدیر د وعدنا المجرد موسی یې مفعول دی او (اربعین لیلةً) یې حال دی.

**فائدة:** (مو) په عبراني ژبه اوبو ته وایي او (شی) درختي ته وایي. نو شین یې په عربي کي په سین بدل کړی، نو موسی ځندي جوړ سو. وجه ددې نامه داده چي موسی په هغه کال وزېږېدی چي فرعون د بني اسرائیلو نر کوچنیان وژله کمامر. نو دموسی مور چي د فرعون څخه بیریدله چي راسي مړ یې کړي. نو یې خپل خوی په صندوق کي واچاوه او رودنیل ته یې ور وغورځاوه. نو په قدرت الهي څپو د دریاب صندوق په هغه واله کي راوستی چي د فرعون د ګل باغ په درختو کي تیره سوېوه. او صندوق د درختو په مابین کي بند پاته سو. نو د ورځي چي د آسیه زوجة فرعون پرستارانو ښځو په هغه واله کي غُسل کاوه، دا صندوق یې ولیدی. نو یې را واخیستی او د آسیې مخ ته یې کېښېښوی ، هغې چي قلف د صندوق مات کړی، یو زیبا کوچنی پکښي پروت او ګوته یې په خوله کي وه. آسیې چي ګوته راکش کړه، تر ګوته یې سپیني شیدې راتلې او کوچني رودلې. نو نوم یې موسی پر کېښېښوی.

دا قضیه چي فرعون ته پیش سوه، فرعون آسیې ته وویل چي شاید دغه هلك به زما هغه دښمن وي چي ماته کاهنانو معرفي کړی وو. نو باید چي مړي یې کړم. آسیه ورته ټینګه سوه چي نه به یې وژني او دا یې ورته وویل: (عسی ان ینفعنا او نتخذه ولداً) کماسیجیئ فی موضع آخر من

القرآن الکریم. آسیې خوی نه درلودی، نو ځکه فرعون دا هلك ددې ور پرېښودی.

دا عظیم قدرت دخدای ﷻ دی چې یوه دښمن ته دبل دښمن په کور کې تربیه ورکول کیږي. او دښمن د دښمن خوی بلل کیږي لماروی ان موسی لما کبر سماه الناس موسی بن فرعون. باقي حصه به یې په خپل مناسب ځای کې راسي انشاء الله تعالی.

نسب نامه دموسی علیه السلام داسي ده. موسی بن عمران، بن یصهر بن فاهته بن لاوی بن یعقوب اسرائیل الله ابن اسحاق بن ابراهیم ؑ.

**پوه سه!** چي بیضاوي ؒ وایي چي څه وخت چي بني اسرائیل پس له هلاك د فرعونیانو بیرته مصرته راغله، نو خدای ﷻ د موسی سره و عده وکړه چي زه به تاته کتاب تورات درکړم او وخت یې ورته وټاکی د میاني میاشت او لس ورځي د لوی اختر دمیاشتي. او روح البیان وایي چي اول خدای ﷻ موسی امر کړی په دیرشو ورځو روژه دمیاني دمیاشتي، نو چي دیرش ورځي موسی ؑ دمیاني روژې ونیولې، نو موسی دپاره د خبرو د رب جل شانه او د تورات په احترام مسواك وواهه. او پاکي جامې یې واغوستلې. خدای ﷻ ورته وویل چي ته ولي مسواك وواهه؟ لخلوف فم الصائم اطیبُ عندالله من ریح المسك، نو یې ورته وویل چي لس روژې د ذوالحجة هم ونیسه. او همدا قول صحیح دی، ولې په بل ځای د قرآن کې صراحتاً راغلي: (و واعدنا موسی ثلثین لیلةً وأتممناها بعشرٍ فتم میقات ربه اربعین لیلةً) ولعل البیضاوی اخذ بالحاصل. وقال المظهری مثل ماقال البیضاوی ؒ لأنه فی جمیع تفسیره یتبع البیضاوی ؒ.

**فائدة**: قرآن مبارك هم په دې آیت کې ټوله شپې سره جمع کړیدي نو (أربعین لیلةً) یې وویل، نو ځکه روح البیان والا وایي: ای تمام اربعین علی حذف المضاف او وروسته یې داسې ویلي دي چې اولاً خدای ﷻ امر کړی موسی ﷺ په دیرشو روځو د ذوالقعدة، وروسته یې لس روځې د ذوالحجة پر بالاکړې والسبب فیه ماقلنا آنفاً.

**پوښتنه**: روځې خو د ورځې نیول کیږي نو تعبیر په أربعین لیلةً سره ولې وسو؟

**جواب**: بیضاوی او هم روح البیان او هم روح المعانی او هم تفسیر کبیر وغیره داسې ورکړی دی چې د عربو حساب پر قمري میاشتو مبني دی، نو د قمري میاشتي اول خو شپه وي او ورځ یې تبع ده او همدا سبب دی چې تاریخ د هجرت نبوی ﷺ هم پر قمري ګټلو مبني دی چې په وخت کې ددې تفسیر د شروع هغه سنه ۱۴۲۴ هـ ق اللهم وفقني لاتمام هذا التفسیر بالخیر والعافیة والصحة والسلامة والفرح والسرور واجعله حجة لي یارب العالمین.

مصرع: من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل

**قوله تعالی**: (ثم اتخذتم العجل) مفعول ثاني یې محذوف دی أی آلهاً ومعبوداً تسجدون له. (من بعده) ای بعد ذهاب موسی ﷺ الی الطور.

درویش وایي چې ټوله قصه د عجل به په خپل ځای کې راسي انشاء الله تعالی. (و أنتم ظالمون) بوضع العبادة التی هی حق الله خالصةً فی مخلوقه کماهو معنی الظلم ای وضع الشیئ فی غیر موضعه.

قال الله تعالی:

# ثُمَّ عَفَوۡنَا عَنۡكُم

یعني در ومي بخښله دا ګناه د عبادة العجل وه تاسي ته یعني تاسي توبه وکښل

---

# مِّنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ

یعني وروسته تر هغه لوی ګناه چي شرک وو او هلاک مي نه کړاست تر وخت د موسی د راتګ.

---

# لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ

یعني ددې لوی نعمت دعفو د اکبرالکبائر ګناه. سعدي:

خردمند طبعان منت شناس ✣ بدو زند نعمت ببیخ سپاس

---

**پوه سه!** چي شکر د نعمت به خوله هم کوي. یعني الحمدلله مُعطی النِعم او په جوارحو یعني اعضاوو به یې هم کوي. لکه لمونځ، حج وغیره او په مال به یې هم کوي لکه زکات وغیره او په زړه به یې هم کوي. یعني عبادت په اخلاص او په حضور قلب کماقال سیدالمرسلین صلی الله علیه وسلم فی حدیث طویل رواه البخاری وغیره: الإحسان أن تعبدالله کأنك تراه الی آخرالحدیث. او داسي به نه کوي لکه یو شاعر چي وایي:

بر زبانت یاصمد پیدا و در دل با صنم

ای بباطن کافر ظاهر مسلمانی چه سود

مصرع:

توبه فرمایان چرا خود توبه کمتر میکنند؟

وَإِذْ ءَاتَيْنَا مُوسَى الْكِتَٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۵۳﴾

او په یاد کړئ هغه وخت چې مونږ ورکړی موسی ته کتاب یعنې التورات او فرقان چې هغه تورات دی چې فارق بین الحق والباطل دی، نو د کتاب موسی دوه نومان دي. او بعض مفسرین رح وایي چې مراد د فرقان څخه هغه معجزات دموسی دي چې فارق بین المحق والمُبطل دي. او بعض مفسران رح وایي چې مراد د فرقان څخه شریعت دی دموسیٰ علیه السلام چې فارق وو بین الحلال والحرام. او هغه خبره چې کسایي رحمه الله کړېده چې فرقان صفت دی د تورات او واو زائد دی د خوند خبره ده لعدم الحاجة الی زیادة الواو. شاید تاسي به لار پیدا کړی په ښوونه د تورات.

---

**پوه سه!** چې قصه د اتخاذ العجل آلهاً علی ماذکره المفسرون داده چې څه وخت چې میقات د اتیان دموسیٰ علیه السلام کوه طور ته ورسیدی، نو جبرئیل علیه السلام ورته راغلی او پر آس سپور وو چې هغه آس ته فرس الحیواة ویل کیدی ترڅو چې موسیٰ علیه السلام ورسره بوزي طور ته. نو د جبرئیل علیه السلام آس چې پر هره مځکه پښه کښېښوله لاندي تر هغه به وابښه راشنه سوه. د موسی علیه السلام یو سړی پر دین دده منافقانه ملګری وو. چې نوم یې میخا وو او په سامري سره مشهور وو. او کسب یې زرګري وه، نو سامري چې د آس د جبرئیل علیه السلام د پښو څخه د وښو راشنه کیدل ولیدل، د خان سره یې وویل إن لهذا شأناً نو د آس تر پښو لاندي یې یوڅه خاوره دخان سره واخیستل. او سامري چې د بني اسرائیلو څخه واوریدله چې دوی تر دریاب تیر سوله او پر یو داسي کلي ورغله چې هغو بتانو ته سجدې

کولې، نو بني اسرائیلو وموسی ﷺ ته وویل: (إجعل لنا آلهةً کمالهم آلهةٌ) نو د سامري په خیال کي دا ورګرځیدله چي د بت پرستی په سبب به زه قوم د موسی ﷺ د دین د موسی ﷺ څخه بیزاره کوم.

نوهغه وخت چي بني اسرائیل د مصرڅخه وتله په امر د موسی ﷺ چي هغو ښځو د بني اسرائیلو چي د فرعونیانو د کورو خدمت به یې کاوه د فرعونیانو د ښځو څخه زر او زیور په عاریت د یوې شپې دپاره په بهانه د واده په بني اسرائیلو کي غوښتي وه او هغو هم خپل زر او زیور ودوی ته ورکړي وو. نو فرعون او اتباع دده چي په رود نیل کي غرق او هلاك سوه ، هغه زر او زیور د بني اسرائیل دښځو سره ورسره وو. نو څه وخت چي موسی ﷺ مناجات ته دخدای ﷻ ولاړی، سامري به بني اسرائیلو ته شپه او ورځ دواړه پر دوو شپو ور حسابول او په شل ورځي یې څلویښت ورځي ور پوره کړې. نو بني اسرائیلو ته یې وویله چي د موسی خو څلویښت ورځي پوره سوې او رانه غلی چي دا څه سبب دی، نو سامري ورته وویل: زما په خیال دموسی مانع د راتګ دغه زر او زیورات دي چي زموږ سره دي. راسئ چي دا په یوه کنده کي واچوو، نو ګوندي موسی به راسي. قلما جمعوا الحلی والقوها فی حفرة، نو سامري خپل زرګري پر شروع کړه او په درې شوا روز کي یې ګیلګئ دغوا د سروزرو او سپین زرو او د غمیانو څخه جوړ کړی. او هغه خاوره دجبرئیل د آس د پښو یې په خوله کي ورواچوله. نو هغه ګیلګئ چي د سروزرو څخه جوړ وو او په جواهراتو او غمیانو ښائیسته وو خغاستی او د ګیلګي ناري یې وهلې؛ نو سامري وبني اسرائیلو ته وویل (هذا إلهکم و اله موسی فنسی) دغه دی ستاسي او دموسی خدای، نو دوی یودبله سره چپ سوي دي.

نو عبادت ددغه ښائیسته ګیلګي چي دوی یې تر اوسه مثل نه وو لیدلی تولو بني اسرائیلو چي په لګو وه شروع کړی، صرف د هارون ﷺ چي موسی ﷺ په وخت کي د تلو د کوه طور خلیفه او جای نشین تاکلی وو دوولس زره ۱۲۰۰۰ کسه پر توحید پاته سوه. وهذا حاصل ما فی تفسیر المظهری.

وماقال صاحب روح البیان : د ګیلګي په باره کي وکان لحمٌ ودمٌ وشعرٌ فلیس علی ذروة التحقیق لأنهم لایعتبرون بعجلٍ له دم ولحم وشعرٌ لأنهم رؤا کثیراً من هذا القسم من العجاجیل فلم لم یعبدوها بل انما عرّهم السامری بان هذا العجل کان من الذهب قوائمه ورأسه مکل بالبواقیت وله خوار العجل ولم یروا جسماً احسن منه، فلما قال لهم السامری هذا الهکم واله موسی آه قبلوه وعبدوه کلهم الا قلیلاً منهم کما مرّ.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَٰقَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنفُسَكُم بِٱتِّخَاذِكُمُ ٱلْعِجْلَ فَتُوبُوٓا۟ إِلَىٰ بَارِئِكُمْ

او یاد کړئ هغه وخت چې موسی ﷺ وویل و قوم ته خپل یعنې هغه کسانو ته چې عبادت د عجل یې کړی وو. اې قومه په تحقیق سره تاسې ظلم کړی پر خپلو ځانو، ولې چې ضرر د عبادة تاسې ته راجع دی یعنې عذاب لهي، نو توبه وکاږئ یعنې رجوع ددغه شرکه څخه وکړئ وهغه خدای ﷻ ته چې ستاسې پیداکوونکی دی.

---

**پوه سه!** چې معنی د باری داده چې تاسې یې یو دبله څخه په صورتو او شکلو سره جلا کړي یاست:

فَٱقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ

او تاسې قتل کړئ خپل ځانونه.

---

**پوه سه!** چې د آیت معنا دا نه ده چې تاسې خودکُشي وکړئ بلکه معنا یې داده چې هغه کسان چې عبادت العجل یې نه دی کړی هغه عبدة دي قتل کړي.

**پوه سه!** چې (فاء) دپاره د بیان دتوبې ده یعنې ستاسې توبه همدغه قتل النفس ده. اوبعض مفسرین رح وایې چې توبه ددوی خو هغه رجوع قلبي او پښېماني وه او قتل نفس په متمم د توبې وو. لکه ردالمظالم چې زموږ د توبې متمم دی

ذٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ عِندَ بَارِئِكُمۡ

او دا قتل نفس خير دی تاسي لره په نيز د خدای ﷻ ستاسي، ولي دشرک څخه به خلاص سئ او هميشه خوشحالي به مو په ورځ کـي د قيامت در په برخه سي.

---

راوي وايي چي څه وخت چي موسی ﷺ دوی امر کړه په قتل نفس، نو دوی وويله چي نصبرلحکم الله نو بيا دوی ته وويل سول چي زنګنونه او ملاوي په تورو کريا رسی. سره جوت کړئ يعني غوټه ورکړئ او که چا د غوټه خلاصه کړه او يا يې وتوري ته لاس سپر کړی او يا يې د تورو خوا ته وکتل دهغه توبه مردوده ده. دوی هم هغه وکړه. لکن چونکه په بني اسرائيلو کي به پلار په يوه ډله کي وو يعني مثلاً په عبدة العجل کي او څوی به په مخالفه ډله کي وهکذا يو ورور او بل ورور په جلا جلا ډلو کي وه. نو دوی موسی ﷺ ته زاری وکړې چي موږ به څرنګه ددې امرالهي تعميل وکړو او سره ددې چي موږ او قربان به سره وينو. نو خدای ﷻ توره وريځ پيدا کړه چي هيڅ چا بل څوک نه ليدی او قتل د عبدة العجل جاري سو. د سهارڅخه تر مابښام پوري. نو چي قتل ډير سو نو موسی ﷺ او هارون ﷺ خدای ﷻ ته عجز او نياز شروع کړی او خدای ﷻ ته يې ډير وژړله او وې ويله: يارب هلكتْ بنو اسرائيل يارب البقية البقية يعني دا باقي ژوندي راوبخښه. نو وريځ پورته سول او بني اسرائيل يې د قتله څخه بند کړه. نو چونکه تعداد د مړو ۷۰۰۰۰ اويازره ته رسيدلی وو، نو موسی ﷺ پريشانه سو. نو خدای ﷻ دخپل دوست د پريشانی د دفعي دپاره دا زيری او وحی ورته وکړې چي ستا دقوم قاتل او مقتول بـه دواړه

په جنت کي وي. او مقتول به د شهداء په ډله کي حساب کړم او قاتل به د غازيانو په ډله کي حساب کړم. او د مابقی د عبدة العجل به ګناه ور عفو کړم.

**پوه سه!** چي د اُمت مرحومه توبه صرف د زړه په پښېماني ده او قتل ظاهري ته ضرورت نسته البته و قتل النفس الامارة ته ضرورت سته، ولي چي نفس اماره د ګيلګي دهوا عبادت کوی. فی المثنوی :

ای شهان کشتیم ما خصم برون ✤ ماند خصمی زان بتر در اندرون
کشتن او کار عقل و هوش نیست ✤ شیر باطن سخره خرگوش نیست
نفس اژدرهاست او کي مرده است ✤ از غمی بی آلتی افسرده است

**پوه سه!** چي څه وخت چي موسی ﷺ ته خدای ﷻ امر وکړی چي ته د يوڅو کسانو څخه دبني اسرائیلو طور ته راسه او د عبادة العجل په باره کي ماته عذر وکړئ. نو موسی ﷺ اویا ۷۰ کسه د اشرافو څخه دبني اسرائیلو وټاکل او موسی ﷺ ودوی ته وویله چي روژه ونیسئ او بدنونه پاك پريمينځئ او ښه پاك کالي واغوندی، نو دوی هم هغسي وکړه. او دموسی ﷺ سره دکوه طور پرخوا روان سوله. لکن دي اويا ۷۰ خوانینو دموسی ﷺ څخه پر لاري دا مطالبه وکړه چي خدای ﷻ چي ستاسره خبري کوي باید په موږ یې هم واوري، نو موسی ﷺ چي کوه طور ته ور نژدې سو د آسمان دخوا څخه لويه تنبيه د وريځي راشوه سوه چي طور یې ټول په لپيټ کي ونیوی. نو موسی ﷺ څه وخت چي دی او دوی ټوله په عمود الغمام کي داخل سوه دوی ته یې وویل چي ټوله سجده وکړئ، نو څه وخت چي د موسی ﷺ او د ﷻ تر مابين خبري شروع سوي دموسی ﷺ پر مخ داسي يو نور الهي واقع سو چي ملګرو دده و مخ ته نسواي کتلای.

یعني ستړګي یې پر بریښیدلې. آخر موسی علیه السلام پر مخ پرده واچوله او دې او یاکسانو اوریده چي خدای ﷻ موسی علیه السلام ته امر او نهي کولې. او دا یې هم په واوریدله أنا الله لاإله إلا أنا أخرجتکم من مصر بیدٍ ای بقدرةٍ شدیدةٍ فاعبدوني ولاتعبدوا غیري نو څه وخت چي موسی علیه السلام دخبرو څخه فارغه سو او عمود الغمام پورته سو، نو یې ددوی څخه پوښتنه وکړه چي دخدای ﷻ خبري مو واوریدلې؟ دوی ورته وویل :

## فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۚ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿٥٤﴾ وَإِذْ قُلْتُمْ

نو خدای ﷻ ستاسي توبه د عبادة العجل څخه قبوله کړه، یعني پس له دې چي تاسي په قتل النفس سره امتحان ورکړئ کمامرّت القصة آنفاً. په تحقیق خدای ﷻ تواب دی. او په یاد کړئ هغه وخت چي تاسي یعني ستاسي اسلافو وویل وموسی ته.

---

**پوه سه!** چي تَوّاب صیغه د مبالغې ده. مبالغه یا په دې معنا ده چي د ډیر عاصیانو توبه قبلوي او یا په دې معنا ده چي هر بنده ته د ډیرو ګنهو عفوه په سبب د یوې توبې کوي او وصف د رحیم ددې دپاره راوړې چي خدای ﷻ سره د ګنهو د بخښني په توبه سره پر توبه ګار نوره مهرباني هم کوي. یعني لوړي درجې هم ورکوي.

اللهم وفقنا للتوبة النصوح !

# يٰمُوْسٰى لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً

موږ ستا په خبرو باور نه کوو يعني ته وايې چي خداى ﷻ زما سره خبري کولې ترڅو چي موږ خداى ﷻ نه ووينو په سترګو.

---

**سوال:** لفظ د ايمان خو متعدي بنفسه دى او که په واسطه دحرف جر متعدي سي خو هغه حرف جر به لفظ د باء وي لکه آمَنْتُ بِاللهِ او په لفظ د لام نه متعدي کيږي؟

نو ددې سوال په جواب کي قاضي بيضاوى رحمه الله وتبعه المظهرى رحمه الله داسي ويلي دي چي دلام دپاره دمتعدي والي د نُؤمن سره تعلق خو لري لکن نؤمن متضمن معنى لره د اقرار کړخولى دى. او اقرار خو متعدي په لام سره کيداى سي.

**پوه سه!** چي تضمين په اصطلاح د نُحاتو دادى چي ديوفعل سره بله معنا مناسبه لحاظ کړه سي په قرينه د صلې دهغه يعني حرف متعلق به لکه په دې آيت کي چي معنا د (نؤمن) خو تصديق ومعنا مناسبه د تصديق چي اقرار دي لحاظ کړه په قرينه د حرف جر چي لام دى.

درويش: واوره! چي جهر په اصل لغت کي دصفاتو څخه د صوت دى لکه جَهَرْتُ بِالْقِرَائَةِ لکن په آيت شريف کي مجازاً په معنا د معاينه دى يعني په سترګو ليدل.

**فائدة:** جهرة په آيت کي منصوب دى مفعول مطلق دى د (نرى الله) ولي چي معاينه خو نوع د رويت ده کما لايخفى.

**پوه سه!** چې د مؤمن ځخه به ددوی ځخه مراد وو؟ بعض مفسرین رح وايي چې دا يې مراد وو أن الله أعطاك التوراة او بعض وايي چې إن الله كلمك او بعض وايي چې إنك نبيٌ. درويش وايي چې يحتمل الكل ايضاً والله اعلم.

# فَأَخَذَتْكُمُ الصّٰعِقَةُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۵۵﴾

نو په سبب ددغه قول چې هغه په دنيا کې پر خدای ﷻ محال دی صاعقه يعني ټکه پر تاسې نازله سوه او تاسي ورته کتل.

---

**پوه سه!** چې صاعقه هر بيريدونکي شي ته وايي، چې يا سړی ځني مري او يا مُزيل دعقل اوفهم وي. ګاهي يو آواز وي ډير سخت او ګاهي اور وي، ګاهي بل شئ وي.

**فائدة:** که صاعقه دبني اسرائيلو اور وو، نوځو دوی په سترګو ليدی او که صورت هائل وي نو بعض ددوی تر بعض دمخه مړه کيده او ژوندو به ورته کتل وهذا رؤية الموت مجازاً.

**فائـــدة:** رويت دخدای ﷻ چې ممکن او واقع دی په آخرت کي منزه د کيفيت او د مکانه ځخه په جنت کي عـامـة المؤمنين تـه. په احاديث متواترة المعنى کما في الصحاح الستة وبقوله تعالى (وجوهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ الى ربها ناظرة) ثابت دی و إنما عقبوا اى الطالبين للروية و کفروا بذالك الطلب ولي ددوی طلب د رويت محال مراد وو يعني چې خدای پاك په صورت او جسم سره ووينو لقولهم حتى نرى الله جهرةً اى رؤيةً ظاهرةً

کظهور الاجسام وذالك مستحيل بلكه رؤية دخدایﷻ په دنيا كي هم بيله كيفيته وبعض انبياء عليهم السلام ته واقع سوى دى كرؤية النبى صلى الله عليه وسلم ربّه جل شأنه ليلة المعراج كماهو مذهب الجمهور من اهلى السنة كما هو فى كتب العقائد.

نو دليل ويل د معتزله وو پر محال والي د رويت دخدایﷻ په آخرت كي په دغه آيت سره باطل دى، ولي چي ددوى طلب خو طلب د رويت مستحيل وو، نو ځكه دوى هم په كافران سوه. او هم عقاب دموت بالصاعقة وركړه سو هذا حاصل مافى البيضاوى وروح المعانى والتفسير الكبير والقرطبى وغيرها

## ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٥٦﴾

**پوه سه!** چي څه وخت چي خدایﷻ هغه اويا ۷۰ كسان او مشرانو ځنې د يهوديانو په صاعقه مړه كړه. نو موسیؑ وخدایﷻ ته عُجز وكړى او وې ژړل چي اې خدايه زه به بني اسرائيلو ته څه وايم چي تا هغه خيار ددوى مړه كړه او وې ويل: (لوشئتَ أهلكتهم من قبل و إيّايَ اتهلكنا بما فعل السفهاء منا) اې خدايه ! كه ستا اراده واى، نو به دي دوى هلاك كړي واى دمخه تر راتګ زماسره كوه طور ته او زه به دي هم هلاك كړى واى. ايا ته موږ هلاكوې په هغه كار سره چي زموږ بې عقلانو وكړى؟

بعض مفسرين رح وايي چي مراد د فعل ځنې د سفهاوو عبادة العجل دى. وهذا تفسير لايناسب سباق الآية لما مرّ انّ معصية عبدة العجل صارت معفوةً بقتلهم انفسهم كما مرّ مُفصّلاً.



Scanned by CamScanner

او بعض مفسرين رح وايي چي مراد د فعل د سفهاوو هغه خبره د اويا ۷۰ کسانو ده (لن نؤمن لك) الآية. درويش وايي چي دا تفسير د سوق سره د آيت ډير مناسب دی.

نو موسی ﷺ په زاريو او ژړا خدای جلت رحمته ته عجز کاوه، حتی چي خدای عظمت قدرته يو يو د مړو کسانو څخه ژوندي کوله او نورو به ورته کتله چي كيف يحيى الله الموتى؟

**پوه سه!** چي دوی يو شبانه روز مړه وه وذالك معنى قوله تعالى: (ثم بعثناكم) آه بيا موږ تاسي ژوندي کړاست پس له مرګه، شايد تاسي شکر د خدای ﷻ وواياست.

**پوه سه!** چي فائده د (من بعدموتكم) داده چي دا بېهوشي او اغماء نه وه بلکه حقيقت موت وو.

**فائدة:** دا مرګ ددوی يو عذاب الهي وو چي دوی ته يې ورکړی او موت بالاجل الموعود نه وو، ولي كه موت بالاجل وای ، نو دوی به تر يوم القيامة نه وای ژوندي سوي كبقية الأموات بالآجال.

**سوال:** موسی ﷺ خو سوال د رويت الهي وكړی بقوله (رب ارني أنظر إليك) او خدای ﷻ مړ نه کړی، بلکه بيهوشه يې کړی بدليل قوله تعالى: (فلما أفاق) ولي چي افاقت د بيهوشی څخه په هوش کي راتلو ته وايي. نو صعقه دموسی ﷺ بيهوشي وه. او دې اويا ۷۰ کسانو خو هم سوال د رويت جهرة وکړی، نو دوی خدای ﷻ مړه کړه فما الفرق؟

**الجواب:** علی مافی روح المعانی وروح البیان والقرطبی والتفسیر الکبیر وغیرها ددې سوال د موسیﷺ او دحاضر اویا ۷۰ کسانو فرق دادی چې سوال د موسیﷺ حباً او عشقاً و رویت الهي ته وو، نو څکه مړ نسو بلکه بیهوشه سو علی مایدل علیه قوله تعالی: (فلما تجلی ربه للجبل جعله دکاً وّخرّ موسی صعقاً) او سوال د قوم یې تکذیباً لموسیﷺ فی أنّ المتکلم هوالله تعالی او سوال د تعنت وو او ددوی عقیده داوه چې خدایﷻ د اجسامو سره مشابه دی. او دوی رویت دخدایﷻ فی الاحیاز والجهات بالمقابلة للرائی غوښتی. نو چونکه دا قسم رویت پر خدایﷻ خو محال وو، نو څکه دوی یې په طلب کافران سوه او د موت دعذاب مستحق وګرځیدله.

## وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَىٰ ط

اومونږ سائیوان وګرځول پر تاسې سپینه وریځ او تاسې ته مو دخورک دباره مَن یعني ترنجبین او د تاروګانو غوښې مقررې کړې.

---

**پوه سه!** چې څه وخت چې بني اسرائیل په عهد موسیﷺ کې خدایﷻ امر کړه په قتال د جبابره وو سره اودهغه قوم ډیر غټ غټ خلک وه چې ترّ اوه سوه ۷۰۰ ګزه پورې بعض خلک رسیده او صاحبان د ډیر قوت وه، نو بني اسرائیل دجنګ څخه ددې قوم انکار وکړی او موسیﷺ ته یې داسې وویل: (فاذهب أنتَ وربك فقاتلا إنا ههُنا قاعدون) نو خدایﷻ پر دوی باندې عذاب د سفر د تیه مسلط کړی څلویښت کاله.

**پوه سه!** چي تيه د پراخي صحراء نوم دی. په مابين کي د مصر او شام ده او دا بيابان د تيه دوولس ۱۲ فرسخه وو، نو چي شپه به سوه سپوږمی به نه وه، توره تاريکه به سوه او چي ورځ به سوه ډيره سخته ګرمي به وه او په تيه کي اوبه نه وې او نه د خوړلو شی وو. نو دوی موسیٰ ته شکايت د لوږي او تندي او ګرمی د ورځې او د تاريکې د شپې وکړی. نو موسیٰ په دې مـوادو معروضـه وو کـي خدای جلت قدرته وعمت رحمته ته عجز او نياز وکړی. نو خدای سره د عـذاب ددوی، د رحمت دروازه ودوی ته خلاصه کړه. نو دشپې چي سپوږمی به نه وه يوه تنبه د نور به د آسمان څخه را وخريدله چي ددې تيه به يې ټوله روښانه کړه او د ورځي به يې سپينه نازکه وريځ پيدا کړه چي تر باراني وريځي يې ښه خوند کاوه او پر دوی به يې سايوان مانندہ سايه وکړه. او وريځي ته په دې غمام وايي چي د غُم څخه مشتق دی. غُم پټوالي ته وايي او وريځ هم لمر پټوي.

او د خورك دپاره يې من او سلوی ور مقرره کړه او د اوبو د څښلو او د طهارت دپاره يې موسیٰ امر کړی چي: (فاضرب بعصاك الحجر فانفجرت منه اثنتا عشرة عيناً) کما سياتی فی القرآن الکريم.

**فائــدة:** ترنجبين به د سپيدو څخه بيا تر لمر ختو پوري لکه واوره اوريدی او خوند يې داسي وو لکه شهد چي په غړو کي معجون کړي. او د مَن اطلاق پر ټولو هغه شيانو هم کيږي چي د خدای دخوا څخه بندګانو ته بې تکليف د کښت ورکول کيږي. ومنه قوله عليه الصلوة والسلام الکمائة من المَن وماؤها شفاء للعين يعني پوڅکی د من قسمه

ځخه ده یعني بهله ګرولو او زرع دخدای په قدرت دمځکي ځخه راوزي او اوبه د پوځکي دا د سترګو د دید د کم والي دوا ده.

د ابوهریره ﷺ ځخه روایت دی چي ماد درو۳ دانو پوځکیو ځخه اوبه و ایستلې او په ښیښه کي مي واچولې او زما و مینځې په سترګو کي مي ورواچولې، جوړه سوله.

او امام نووی رحمه الله وایي چي زما په زمانه کي ما یو عارضی ړوند ولیدی چي فقط د پوځکي اوبه یې د سترګو ته اچولي. یوڅو ورځي بعد خدای ﷻ شفا ورکړه او دید یې بیرته راوګرځیدی. درویش وایي چي دا په ټینګه عقیده پوري د قول د رسول کریم صلی الله علیه وسلم اړه لري.

**واقعه**: درویش وایي چي ۳۵ کاله دمخه زما په معده کي یوه ډیره غټه دانه دخدای ﷻ په امر پیدا سوه. چي په قندهار کي مي طبي او ډاکټري ډیر علاجونه وکړه فائده یې ونه کړه، بیا د پاکستان د کوټې ښار ته د علاج دپاره راغلم او په سول هسپتال کي په شخصي ځای کي بستري سوم او یوه میاشت مي تیره کړه، ډاکټرانو ډیري خواري رابانديې تیري کړې او ډیر مصرفونه مي وکړه. آخر معالج ډاکټر راته وویل چي دغه نسخه واخله ولاړسه کور ته جوړ به سې. قندهار ته راغلم یو څو ورځې لږ ښه وم. لکن بیرته هغه دمعدې درد او تبه راته پیدا سوه. آخر کابل ته ولاړم او ابن سینا روغتون ته ورغلم چي په هغه روغتون کي داخلي او خارجي ډیر حاذق ډاکټران وه. هغو چي معاینات لاژمه وکړه، نو ماته یې وویل چي عملیات یعني آپریشن ته ضرورت سته، نو په هغه روغتون کي هم په یو شخصي اطاق کي داخل سوم. خیر څو ورځي وروسته یې عملیات راوکړی او عملیات هم کامیابه سو. لکن د سختي کمزوری له سببه ډاکټرانو د دوو میاشتو تیریدو په هسپتال امر وکړی.

غرض داچه په هغه هسپتال کي بعض نرساني يا خادمان بنا پر حسن عقيدت چي ما به لمونځونه کوله او قرآن مبارك وظيفه به مي کوله دا کار په هسپتالو او روغتونو کي يو نادر کار معلوميدی نو ددوی دا خيال سو چي دا يو بزرګ سړی دی. مطلب داچي دخلکو آمدورفت د دَم و چُف ډير سو. نو په داخله ځانګه کي ددغه روغتون يې د هرات څخه يوه پيغله پلار راوستلې وه چي هغې کومه داخله مريضي درلوده، خير ډاکټرانو چي دهغې پيغلي د داخليه مريضی علاج کاوه قدرت دخدای ﷻ هغه پيغله په دواړو سترګو ړنده سوه.

د ډاکټرانو هرڅونه کوشش چي ددې پر علاج د سترګو د روندوالي وکړه سو، ناکام سوه، نو پلار دپيغلي د روغتون د ملازمانو څخه چا ورته ويلي وه چي د جراحی په ځانګه کي يو بزرګ سړی سته (ددوی په عقيده سره) نو پلار يې ماته راغلی او زه ورسره ورغلم، پيغله مي وليدله، هرڅو چي مي ګوتي ورته ونيورولې هغې وويل زه ستا لاس نه وينم، ته دګوتو غم کوې. نو ما يې پلار ته وويل چي ته ولاړ سه او د بازار څخه څو داني پوڅکی راوړه. هغه وويل چي لندې پوڅکی خو اوس نسته، ما ورته وويل چي وچي پوڅکی راوړه. وچي پوڅکی چي يې راوړې، ماخښتې کړې پلار ته مي وويل چي سبا راسه! هغه پوڅکی چي خښتې سوې ما دخاصې په ټکره کي دهغو اوبه و ايستلې او په يو کوچني ښيښه کي مي ورواچولې. او ورته ومي ويل چي هر يو ساعت وروسته په هره سترګه کي يو يو څاڅکی ور اچوه. چونکه زما د عليه السلام پر قول ټينګه عقيده او باور وو چي وايي مائها شفاء للعين. درې ورځي چي پلار د پيغلي هغه کار وکړی پيغله په سترګو خدای ﷻ بينا کړه. او په ګرده روغتون کي لويه هنګامه پيدا سوه چي د جراحی په شعبه کي يو ستر بزرګ داسي وکړه.

لکن دوی نه پوهیده چې کار خو خدای ﷻ عظمت قدرته وکړی دپاره د تصدیق دخپل حبیب صلی الله علیه وسلم. عبیدالله څوك دی او بزرګي دکمه ده؟

كُلُوا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ۖ وَمَا ظَلَمُونَا وَلٰكِنْ كَانُوٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۵۷﴾

په تقدیر دقول یعني موږ وویل و بني اسرائیلو ته چي تاسي خورک کوئ د حلال او لذیذ شیانو څخه چي من او سلوی وه، لکن دا يې ورته وویل چي د سبا ورځي دپاره به ذخیره نه کوی، نو ددوی د سست توکل د سببه دوی ذخیره اندوزي شروع کړه. نو ددوی ذخیره کړی شئ به صبا ته بدبویه او وروسته به وګرځیدی. نو خدای ﷻ هغه رزق ځني قطع کړی. وفی الحدیث النبوی ﷺ الذی رواه البخاری رحمه الله ومسلم رحمه الله واحمد رحمه الله عن ابي هريره ﷺ قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لو لا بنو إسرائيل لم يخبث الطعام ولم يخنز اللحم ولولا حوا لم تخن انثی زوجها قط. نو دوی ظلم وکړی په ناشکري د نعمت طیبه لذیذه د خدای ﷻ او پر موږ يې ظلم نه دی کړی. بلکه پر خپلو ځانو يې ظلم وکړی. چي هغه رزق چي په دنیا کي مشقت نه وو او په آخرت کي حساب نه وو پر ځانو قطع کړی.

---

**مسئلة**: فی الأشباه والنظائر چي طعام یعني غوښې وغیره چي سخت تغیروخوري او بدبویه سي نو مرداري دي او خورك يې حرام دی. او شیدې یاغوړي چي بدبویه سي خورك يې حرام نه دی اومردارهم نه دي.



Scanned by CamScanner

# وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ

په یادکړئ هغه وخت چې موږ درته وویل یعني ستاسي اسلافو تـه، چـې تاسي داخل سئ دغي قریې ته.

**پوه سه!** چې ابن عباس رض وایي چې دا قریه اریحا وه چې د جبارینو د بقایـاوو ځـخـه وه. عاديـانو چـي عمالقـه يـې بلـل دهغـو بقايـا وه پکښـې اوسیدله. او مجاهد رحمه الله وايي چې ددې قـریې څخه مراد بیت المقدس دی. او بعض وایي چې ایلیا وه. او بعض وایي چې شام مراد دی.

# فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا

او خورک کوی دهغې قریې څخه یعني د میوو وغیره څخه هرځـای چـې مو خوښه وي پراخه خورک، نو رغداً مفعول مطلق دی. یعني اکلاً رغداً.

# وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا

او داخل سئ و دروازې دهغې قریې ته په داسي حال کې چې تاسي به خضوع کوونکي یاست. یعني سرونه به کښته کوی.

# وَقُولُوا حِطَّةٌ

او په خوله تاسي واياست (حِطَّةٌ)

پوه سه! چي حطه خبر د محذوفي مبتداء دی. ای سئلتُنا زموږ حطّةٌ ده يعني زموږ ګناهونه راوبخښئ؛ او ابن عباس رض وايي چي مراد د حطه څخه کلمه د لااله الاالله ده لأنها تحط الذنوب

# نَغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ

موږ به وبخښو ستاسي ته ګناهان ستاسي. پوه سه چي نغفر مجزوم دی جواب د امر دی.

# وَسَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٨﴾

او موږ به ډېر وکړو اخلاص درلودونکو ته ثواب.

پوه سه! چي د قريې څخه دلته متعارفه معنا چي مقابل د ښار مراد نه ده. بلکه روح البيان وايي چيځ قريه مايجتمع فيه الناس.

پوه سه! چي که مراد د قريې څخه بيت المقدس وي، نو د بيت المقدس اوه دروازې وي په آيت کي مراد دوهمه دروازه د بيت المقدس ده. چي په اوسنی زمانه کي په باب حطه سره مشهوره ده. او يا مراد باب القبه ده چي په هغه کي موسی عليه السلام او هارون عليه السلام سره د بني اسرائيلو دخدای ﷻ عبادت کاوه.

**پوه سه!** چي خطایا جمع د خطیةٌ ده خطیةٌ ضد ته د صواب وایي. مراد ځني دلته ذنوب ددوی دی. یعني زه به ستاسي د ذنوبو عذاب نه درکوم په سبب د دخول سُجداً او په سبب د دعاء د حطة

**فائدة:** لعل المراد من نغفر لکم آه هغه بني اسرائیل دي چي عبادت د عجل یې کړی وو. او مراد د محسنینو هغه بني اسرائیل دي چي عبادت د عجل یې نه وو کړی.

**فائدة:** د (إحسان) تفسیر علیه السلام په هغه طویل کي چي متفق علیه دی داسي کړی دی (أن تعبدالله کأنك تراه فإن لم تکن تراه فإنه یراك) وهذا جمع تفاسیر الاحسان وقد فسره المفسرون رح بغیر ذالك والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب. درویش و روح

**فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ**

نو بدل کړی هغه کسانو چي ظالمان وه پر ځپلو ځانو، په سبب د ګناه هغه قول چي ودوی ته وېل سوی من التوبة والإستغفار چي مضمون د (حطةٌ) وو په بل قول چي په هغه کي خیر نه وو.

---

**فائدة:** (غیرالذی) صفت دی قولاً.

**سوال:** مغایرة خو د تبدیل څخه فهمیږي، ولي چي تبدیل خو بې مغایرة دمعنا امکان پذیر نه دی؟

**جــواب:** نعم، لکن تصریح په غیرالذی سره ددې دپاره دی چي دلالت وکړي پر دې چي ددوی مبدل لفظ دمامور لفظ څخه من کل الوجوه

مخالف وو.

**فائدة:** تبديل كوونكي ټوله بني اسرائيل نه وه، بلكه بعض جاهلان وه والقرينة على ذالك انهم لو كانوا كلهم مبدلين لإكتفى بالاضمار بأن يقال: (فبدَّلُوْا) فالتصريح بالذين ظلموا دليل واضح على ان المبدلين كانوا بعضهم. رُوى چي دوى په ځاى كي د حطّةٌ سمراء وايه. او دا استخفاف دى په امر دخداى ﷻ والإستخفاف بأوامره تعالى كفرٌ.

**پوه سه!** چي په آيت شريف كي كه څه هم يوازي تبديل د قول راغلى او تبديل ته د فعل يعني (أدخلوا الباب سجداً) اشاره نه ده سوې. لكن ټوله مفسرين رح په اتفاق وايي چي دوى فعل هم بدل كړى، ولي ظالمانو ددوى مشوره سره وكړه چي سركښته دپاره څه وكو نو عزم وكړى چي سرونه به كښته كوو، نو جبرئيل په امر الهي دروازه دونه راكښته كړه چي بېله سركښته كيدو امكان د ننوتو نه وو. دوى چي راغله او دروازې ته يې وكتله، نو ورته معلومه سوه چي بېله سركښته كيدو نسو داخليداى، نو د ډير ضديت د امرالهي پر كُنه كښيناستله او په دروازه ننوتله. وهذا منهم كفرٌ بواحٌ و انكار صريح مِن امرالله عزوجل.

فَأَنزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿٥٩﴾

نوموږ نازل کړی پر هغو کسانو چې ظلم يې وکړی په تبديل د امر الهي قولاً وفعلاً بما قالوا وفعلوا كما مرَّ آنفاً يو عذاب د آسمان دخوا څخه په سبب ددې چې دوی کارونه د فسق وکړه.

**فائدة:** که څه هم (ذکرالذين ظلموا) په آيت کريمه کې وسو نو څه حکمت الهي دی چې (الذين ظلموا) يې بيا راوګرځاوه او داسي يې نه ووېل: (فأنزلنا عليهم)

**جواب:** چونکه ذکر د محسنينو هم دمخه راغلی وو، نو که (عليهم) ويل سوی وای، نو چا به توهم ددې کاوه چې ضمير دواړو ته راجع دی، يعني محسنينو ته او (الذين) ته، ولي ګاهي خدای ﷻ داسي هم کوي چې يو عذاب لکه قحط وغيره په سبب د ظالمانو نازل سي، مګر صالحان کسان هم په لپيټ کې ونيسي ثم يبعثون يوم القيامة على اعمالهم. درويش وايي چې داسي مضمون په حديث کې هم راغلی دی. او هم ددې مضمون ته پښتانه اشاره کوي او وايي چې ځنګل اور واخلي، وچ او لانده نه ګوري. حاصل دا چې په تصريح د الذين ظلموا دا معلومه سوله چې دا عذاب عمومي نه وو.

او بعض مفسرين رح وايي چې ظلم عام دی صغائر او کبائر دواړو ته شامل دی بخلاف الفسق فإنه يختص بالكبائر، نو د اول ظلم څخه مطلق

مراد دی او د دوهم ظلم څخه ګناه کبائر مراد دي بقرینة قوله (بماکانوا یفسقون)

**پوه سه!** چي (رِجْز نازل) طاعون وو. په صحیح روایت کي راغلي دي چي په دې طاعون کي اویازره ۷۰۰۰۰ کسه مړه سوه. په حدیث صحیح متفق علیه کي راغلي دي چي طاعون یو عذاب وو چي پر بني اسرائیلو مسلط سوی وو. وفي روایة علی من کان قبلکم، نو که تاسي واورېده چي په یو وطن کي طاعون مسلط دی، نو هغه وطن ته مه ورځئ، او که طاعون پر داسي وطن مسلط سو چي تاسي هلته واست، نو دطاعون د بېرې دهغه وطن څخه مه وزئ، ترڅو چي په دواړو صورتو کي په عقیده کي دي تاوان رانسي. فافهم فی زیغ العقیدة فی الصورتین.

**المسائل المتعلقة بالطاعون:** په حدیث مبارك کي راغلي دي چي ماته جبرئیل ﷺ تبه او طاعون راوړی، یعني اطلاع یې راکړه او اختیار یې راکړی. فأمسكتُ، نو ما خوندي کړه تبه په مدینه کي او طاعون مي شام ته واستاوه. بیا علیه السلام زیاته کړه چي طاعون شهادةٌ لأمتی او رحمت دی زما د امت دپاره. او عذاب دی پر کافر باندي.

درویش وایي چي دا به په ابتداء الامر کي وه، ولي چي په بل حدیث کي راغلي دي چي ما په خوب ولیدل تبه د مدینې منورې څخه په ډول د بېرسرې ښځي ووتل او جحفې ته ولاړل.

واعلم! چي علماء وایي چي څوك چي په طاعون کي صبر وکړي او بیله طاعونه په بل مرض مړ سي، نو دی هم د عذاب څخه د قبر خلاص دی. نو مطعون شهید دی او صابر په حکم کي د مطعون دی. او دغه رنګه

مطبون چې د مرض څخه د نس مړ سي شهيد دی. او همداډول صاحب الاسهال شهيد دی.

**پوه سه!** چې مرض د بطن دا هم دی چې د ډير قبضيت څخه مړ سي او يا د إنسداده څخه مړ سي. يعني چې کلمې سره واوړي. او يا د آپنديسي څخه مړ سي. او د استسقاء مريض داخل په مبطون کي دی. ولي ددې دواړو مريضانو د دواړو عقل پر ځای وي تروختـه د مرګ. او دغه رنګه شهيد دی هغه څوک چي د سل په مرض مړ سي. او اعلی د شهداوو شهيد في سبيل الله دی. او دغه رنګه شهيد دی هغه څوک چي د سکاروي يا په محرقه تبه مړ سي. او دغه رنګه شهيد دی چي په اور وسوځل سي. او چي په اوبو کي غرق سي هغه هم شهيد دی. بـل هغه څوک شهيد دی چي خونه يا ديوال پر راونړيږي او مړ سي. او همدغه رنګه شهيده ده هغه ښځه چي د لنګيدو په وخت کي بچی يې په نس وي او مړه سي.

**پوه سه!** چي هغه سړی چي جوړ تيار وي، ناببره مړ سي هغه حکم د شهيد نه لري.

**پـوه سـه!** چي فرار د طاعونه څخه حرام دی. وفی الحديث چي فرار کوونکی د طاعونه څخه لکه فرار کوونکی د لښکر څخه د مسلمانانو په وخت کي د جنګ د کفارو سره.

**فائدة:** پوه سه چي دهرچا مرګ اجل مقرر لري لايستأخرون ولايستقدمون. که د مرګه څخه څوک په قرب الهي خلاصېدای، نو انبياء عليهم السلام خصوصاً سيدالبشر به خلاص سوی وای. او که په جاه و جلال او په حکمراني د نړۍ څوک دمرګه خلاصېدای، نو د دنيا فرعونان به خلاص

سوي واى. او كه په ډير غنا او ذهب او فضه څوك د مرګه خلاصيداى نو د دنيا اغنيا او قارونان به خلاص سوي واى. او كه په طبابت او ډاكټري څوك د مرګه خلاصيداى، نو لوى لوى حكيمان او طبيبان خصوصاً سيد الاطباء لقمان الحكيم الذى ذكره الله ﷻ بقوله : ( ولقدآتينا لقمان الحكمة) او يا نور لكه افلاطون اليونانى او جالينوس.

تاريخ وايي چي د جالينوس چي وخت د مرګ نژدې سو، نو ده وخپلو شاګردانو ته دوې دانې ګولى وركړې لكه كوچنى مردكي. او دوى ته يې وصيت وكړى چي زه چي مړ سم دا يوه ګولى پر هغه اوسپنه كښيږدى چي آهنګران اوسپني پر ټكوي او دا بله ګولى يو خُم ته واچوى چي د اوبو ډك وي او يو ګړى وروسته خم مات كړى، نو چي دى مړ سو نو شاګردانو يې هم دده وصيت پر ځاى كړى ، نو هغه ګولى چي په سخته اوسپنه يې كښيښول هغه اوسپنه ويلي سوه. او په مخكه ننوته چي هيڅ شى يې پاته نه سو. او هغه بله ګولى چي يې خُم ته واچول او خُم يې مات كړى، ټولي اوبه يخى ولاړي وې. نو تاريخ پوهان وايي چي د جالينوس دا غرض وو چي شاګردانو ته وښيي چي ماته دونه قدرت طي راكړه سوى وو چي په دواء مي اوسپنه ويلي كړه او اوبه مي په يخى كړې. لكن دمرګ دواء مي نه كړه پيدا آخر مړ سوم. قال الشاعر :

ألآ يا ايها المغرور تُب من غيرتاخيرٍ ✣ فإن الموت قد يأتى ولو صُيرت قاروناً
به سِل مات آرسطاليس بقراط بافلاج ✣ و افلاطون به برسام و جالينوس مبطوناً

حضرت الامام شافعى رحمه الله وايي چي ښه د دواوو څخه د طاعون تسبيح ده ولي چي په ذكر يرفع العقوبة والعذاب قال الله جل ذكره فى دفع البلاء عن يونس عليه السلام فى بطن الحوت: (فلولا أنه كان من المسبّحين)الآية

او ډیر درود ویل پر رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دافـع د طاعون او وبـاء او الـم دی، لکـن دا تسـبیح یـا درود یـا نـور اذکـار هلتـه مـوثر او پـه دربار کي د خدای ﷻ شفیع ګرځي چي د قلب حاضره څخه وي. او یقین خاص هم ورسره ملګری وي. قال المولوی الرومی رحمه الله فی المثنوی:

ګر نداری تو دم خوش در دعا ✤ رو دعا میخواه از اخوان الصفا

هرکه از دل پاك از اعتدال ✤ آن دعایش میرود تا ذوالجلال

آن دعایي بیخودان دیګر است ✤ آن دعا از وینست ګفت داور است

# خاتمة الجلد الاول من تفسیرالایوبی

درویش وایي چي ما دا تفسیر د شوال د میاشتي په آخره نیټه کي په سنه ۱۴۲۴ه ق کي شروع کړی، او دخدای جلت رحمته په توفیق د ربیع الاول پر اوله نیټه دا جلد په تخمیناً ۵۰۰ صفحو کي پای ته ورسیدی. او د اولي پارې شپږ رکوعي پکښي شاملي سوي.

**پوښتنه**: ولي ډیري میاشتي پکښي تیرې سوې؟

**جواب**: اول عذر خو دادی چي تفسیر د قرآن عزیز ډیر احتیاط غواړي. دوهم عذر دادی چي ما درویش د سهار تر لمانځه وروسته یو ساعت ترجمه د قرآن کریم وطالبانو ته کوله او چای مي هم په مسجد کي چیښلې، وروسته مي دوره حدیث څلور ساعته کوله، نو تخمیناً یوولس بجو ته کور ته راتلم. او په عین حال کي مراجعین د مختلفو مقاصدو دپاره کور ته راتلل، په هر صورت تفسیر وځنډېدی.

**پوښتنــــه**: : ستا دا تفسیر قیاساً علی هذا الجلد باید ۶۰ جلدو ته ورسیږي او کلونه به پکښي تیر سي او طالبان او شائقان به د انتظار سره مخامخ سي؟

**جواب**: قیاس دنورو جلدو پر دې جلد نه دی صحیح، ولي په دې جلد کي خطبه، مقدمه او نوري ډیري ورقي په زائدو فائدو سره ډکي دي. په نورو جلدو کي خو دا مزیدات نسته، نو په توفیق د رب جل شانه هغه نور جلدونه که د صحت نعمت باقي وو، تر دې جلد ژر ژر چاپ ته سپارل کیږي انشاء الله.

**تمنـــا:** د مطالعـه کوونکو څخـه ددې تفسـیر د درویـش آرزو داده چي تفسیر دي دمحبت او وروړګلوی په سترګو مطالعـه کوي، نه د حسـد او عناد پـه سـترګو. درویش خپلـه ټولـه سعی مبـذول کړېده، لکن بیا هم د سهوې او نسیاني او خطا احتمال ډیر دی. مطالعـه کوونکي بایـد پـه ۹۹ صوابه کي یوه خطا عفوه کوي

او زما ټولـه تفسیر کـه څـه هـم بعض ځایونـه مـا حوالـه و کتـاب تـه یـا و تفسیر ته نه وي کړې لکن انشاء الله تعالی مطالعـه کوونکي کـه یـو ځـای شك سي په صحت او غلط کي ددې تفسـیر، نـو د نـورو تفاسیرو مطالعـه دي وکړي، شك بـه یې لیري سي.

درویـش وایـي چـي د مطالعـه کوونکـو څخـه د مزیـد توفیـق او د ښـه صحت او عافیت طمع د دعـاء لـرم (و أماالسائل فلاتنهر)

غرض نقشیت کزما باز ماند که هستی را نمی بینم بقائی
مگر صاحبدلی روزی برحمت کند درحق این مسکین دعائی

وروړو اصل کارونه په قـدرت کـي دخـدای ﷻ دي. د بنـده دخـوا صـرف او صرف همت او قصـد او اراده غـواړي. ورنـه د درویـش عمـر ۸٦ کلـو تـه تخمیناً رسیږي، نو دونه درونـد کار لکـه تفسـیر د قـرآن عزیـز پـه دې عمـر کي بېله توفیق الهي انجام پزیر نسي کیدای، خـو بیـا هـم خدای جل شانه لـره دي حمد او ثنا وي چي سره د کلان سالی زما ټولـه حواس او اعضـاء او قوت پر خپل قرار ساتلي دي او بیا دي حمد وثناء خدای پـاك لـره وي چي بنده په آخر د عمر داسي ستري او عزیزي وظیفې ته متوجـه کړی. فللّه الحمد اولاً و ثانیاً والصلوة علی سیدنا محمد ابداً و سرمداً

مرزا غالب رحمه الله همت بلنددار که نزد خدا و خلق ✤ باشد بقدر همت تو اعتبار تو

# خبرتیا او اعلان او د ورور ګوی او د تجارتي چارو مراعات

درویش وایي چي چونکه ورور او مخلص او خوشنویس قاري محترم فضل الحق صائب ددې تفسیر په کتابت کي ډیره عرق ریزي کړېده او په عین حال کي یې مالي مصارف هم ډیر کړي دي، ولي چي درویش به خو ورقي د تفسیر تحریر کړې، هغه به قاري صاحب یو ورې فوټو کاپي به یې کړې او کتاب به یې بیرته درویش ته راوړی چي نور نوشته او تفسیر پر ولیکل سي. او هغه فوټوکاپي ورقي به یې د کمپیوټر وحافظې ته وسپارلې، نو هغه د فوټوکاپي ورقي به لغوه سوې. او وروسته چي به کمپیوټر دخپلي حافظې ورقي وایستلې، نو قاري صائب به هغه ورقي د تصحیح دپاره او دکمپیوټر د سهوي او خطا د لیري کولو دپاره بیرته درویش ته راوړې، نو درویش به په غور مطالعه کړې او د بعضي نواقصو د کمپیوټر به یې تدارك وکړی او بعض سهواً زیادات به یې خني محوه کړه. دا تصحیح شده ورقي به بیرته قاري صائب ته وسپارل سولې او قاري صائب به هغه پر روڼ کاغذه یعني د چاپ په نیت بیا کمپیوټر ته وسپارلې او سابق کمپیوټري ورقي به لغوه سوې.

او بل د تعجب وړ خبره خو داده چي قاري صاحب د قرآن مبارك ټوله آیتونه د تصحیح شده قرآن مبارك څخه د عکس په ذریعه په دې اوراقو کي شامل کړي دي کما تراه انشاء الله. نو سره سره د دونه تکلیف او محنت چي قاري صاحب کړی او کوي یې آئنده هم، هیڅ تاجر الکتب او یا مطبع والاحق نه لري چي ددې تفسیر عکس واخلي او یا په تغییر د کتابت یې چاپ کړي.

بنده راسه د خدای خپل سه لکه پرخان داسي پر بل سه
او که څوك ددې خبرتیا څخه سرغړونه وکړي شاید د ډیرو قانوني ستونځو سره به مخامخ سي.

## اعلان علی الاعلان

هیڅ څوك دې دا ګمان نه کوي چي زه به د حسد دلاري څو ورقي د تنقید پر دې تفسیر نوشته کړم، هو ورقي خو به نوشته کړي، لکن چي درویش ژوندی وي لکه امین الله سلفي داسي به يي رسوا او انګشت نما کړم انشاءالله . وماعلینا الاالبلاغ وعلی الحساد الانقیاد.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹



Scanned by CamScanner

# د تفسیر ایوبي پښتو اول جلد فهرست

Scanned by CamScanner

د مکتبة القرائت والتجوید له علمی
خدمتونو یوه بله فقهی ذخیره

# زبدة الفقه

تالیف: سید زوار حسین شاه
صاحب تصانیف کثیرة وعمدة الفقه

پښتو

الناشر
مکتبة القراءة والتجوید
کاسی روډ، شال در، کوئټه

۹۰ م

پر علم تجوید باندی یو لوړ قیمتی
او پر علمی بحثونو باندی مشتمل

# انوار الفرقان
خوږ شریک

## پښتو شرح جمال القرآن


د قاری محمد رمضان صاحب

پښتو ژباړه
قاری فضل الحق حقانی



الناشر
مکتبة القراءة والتجوید
کانسی روډ شالدره کوټه

۴۹۱

پر سوچه عقائدو باندې مشتمل
پر کوم کښې چه د مختلفو سوالونو ځوابونه
موجود دي

# تعليم العقائد

پښتوله اردو څخه

ژباړه
محمد فضل الحق حقاني

الناشر
مكتبة القراة والتجويد
کانسی روډ شالدره کوئټه

د مکتبة القراءة و التجوید له ښکلو خپرو نوې نسخه
یوه ښکلې او پرځائي تخريجي تفصيل مشتمله

شرحه

# نورِ ظُلَم

سره د دوو ترجمو پښتو او فارسي

تالیف

ابوالفضل مولانا محمد عبید الله الایوبی

ناشر

مکتبة القراءة و التجوید

کانسی روډ، شالدره، کوئټه

۹۳۷

دهر زده کونکی طالب علم لپاره ضروری
دهری دینی اداری لپاره یوه بنکلی تحفه

# دوې ملغلرې

خوشحال

پښتو

د تعلیم المتعلم او اداب المتعلمین
یو جلد ښائسته مجموعه

الناشر

مکتبة القراة والتجوید
کانسی روډ، شالدره، کوئټه

# تجویدونه په هره ژبه

حمد اشم وچپلو خدمتونو ته ادامه ترڅو په پښتو ژبه هغه خدمت سر ته
کړي کوم چې دنیا والو ورته شاکر ځولی ده او د علم تجوید د مینه والو
ته هر قسم اسانتیاوي برابر کړي په دنیاوي

مکتبة القراة والتجوید
کانسی روډ شالدره کوئٹه

Scanned by CamScanner

۱۹۹۱ ۳

پر کورني بنځينه زر کونو مسئلو باندي
مشتمل ډېر کور ضرورت یعني

# تعليم النساء

پښتو

دقاري شريف احمد صاحب تصنيف
چې د معلم الدين مصنف دئ

الناشر

مکتبة القراة والتجويد
کانسي روډ شالدره کوئټه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

ا ب ج د ر س ص ط ع ف

كَتَبَهُ اَحقر حقانى بقلمهٖ ١٤٢٥ھ

ق ک ل م ن و ہ ھ لا ء ی

مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ

تفسیر ایوبي حنفي 1 ټوک

د نصیراحمد احمدي لـخوا

سکین او pdf سـو.

تاریخ. ۱۲-۴-۱۳۹۹

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا په هیله احـمـدي!